


پروفیسور رسول امین
د ژوند په بېلابېلو پړاوونو کې







## منته او کور ودانی

د افغانســتان ملي تحریک فرهنګي څانګه له ښاغلي قدرمن (اتل امین) څخه ډېره منته کوي او کور ودانی ورته وايــي، چــې نه یوازې ددې کلیاتو د چاپ مالي لګښــت يې پر غاړه واخيســـت، بلکې د ګڼو نورو فرهنګي کارونو په بشـــپړتیا او ترسره کولو کې يې هم وخت پر وخت خپله ونډه اخيستې ده.

بسم الله الرحمن الرحيم

# د پروفیسور رسول امین کلیات

لیکوال: پروفیسور رسول امین
ترتیب او تدوین: ضیاءالرحمن ضیاء
خپرندوی: د افغانستان ملي تحریک، فرهنګي څانګه
چاپکال:۱۴۰۱ل/۲۰۲۲م
چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه
چاپ وار: لومړی
د خپرندوی د خپرونو لړ: (۱۶۰)
برېښنايي پته: www.zhwandoontv.com

# نیولیک

# د افغانستان یو خدمتګار امین

پروفیسور رسول امین د افغانستان په اوسني تاریخ کې هغه لیکوال، سیاستوال، سیاستپوه، ادبپوه او ټولنپوه شخصیت و، چې نږدې پنځه لسیزې یې په منظم او متواتر ډول د علم، ادب او سیاست په ډګر کې افغانستان ته داسې خدمتونه ترسره کړل، چې جانبي عوارض یې نه درلودل؛ د کوم شخص، ګوند، سیاسي بهیر په امحاکې یې خپله بقا نه غوښتله او د یوې معتدلې، سوله ییزې لارې او تګلارې پلوی و. پروفیسور رسول امین تر لوړو زده کړو وروسته په کابل کې د پښتو ټولنې غړی او د کابل پوهنتون استاد شو، دا دندې یې په ښه ډول ترسره کړې، پر (۱۳۵۷ل) کال د سیاسي افکارو او د وخت د حاکمیت د مخالف لیدلوري د درلودو له امله له هېواده مهاجرت ته اړ شو.

د شوروي اتحاد د یرغل په کلونو کې یې قلمي جهاد ته ادامه ورکړه، په هېواد کې د شوروي یرغل له امله رامنځته شوې خونړۍ ځپې یې په خپل رسنیز فعالیت کې منعکس کړې او د هېواد واقعیتونه یې تر نړیوالو ورسول. ده پر دې مهال هم په افغانستان کې د شتو واقعیتونو او سیاسي شخړو حل په سوله ییز فورمول کې لټاوه او جګړه یې د حل وروستۍ لاره نه ګڼله. د جهاد تر اختتام او د تنظیمي جګړو پرمهال یې بیا هم د روغې جوړې او سیاسي حل لارې پر تګلارې ټینګار کاوه. له افغانستانه د روسانو د وتلو په وروستیو وختونو کې یې په پېښور کې فرهنګي کارونو ته زور ورکړ؛ د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنه (وفا) یې جوړه کړه، د (خپلواکۍ) مجله یې تاسیس او وروسته یې بیا د (وفا) په نامه یوه ډېره معتبره اوونیزه هم پیل کړه. د تنظیمي جنګونو پرمهال یې د بېلابېلو تنظیمونو ترمنځ په مستقل ډول او هم په پېښور کې د تفاهم شورا له لارې د روغې جوړې ډېرې هلې ځلې وکړې، خو کومه غوڅه نتیجه یې ور نه کړه. کله چې د طالبانو د اسلامي تحریک او مخالفو تنظیمونو

ترمنځ جګړې پيل شوې، نو بيا هم امين صيب او څو ملګرو يې د خپلمنځي خبرو اترو او سولې لاره غوره وبلله، د مخالفو ډلو ترمنځ يې پر روغې جوړې ټينګار وکړ، بېلابېلو ډلو سره يې د خبرو لپاره اړيکې ټينګ کړل، د سولې لپاره يې علمي سيمينارونه جوړ کړل، خو دې سترپاوو هم کومه غوڅه پايله ور نه کړه. د طالبانو د لومړي حاکميت په بهير کې يې د دې تحريک له مشرانو سره څو څو وارې وکتل او دا خبره يې ورته واضح کړه چې په يوازې ځان حکومت نه شئ کولای او افراطي نظريات د دې وطن په ګټه نه دي. کله چې د طالبانو تېر نظام د نړيوالو په مستقيم پوځي يرغل ړنګ شو او د بن کنفرانس د طرحې او پرېکړې پر اساس يوه موقته اداره رامنځته شوه، نو څو موده وروسته امين صيب د پوهنې د سرپرست وزير په توګه غوره شوه. دا مهال نو د افغانستان په تعليمي برخه کې کوم واحد نصاب نه و، د ډاکتر نجيب د وخت نصاب، د مجاهدينو په نوم د استاد رباني (جمعيت) تنظيم حکومت او په پېښور کې د بېلابېلو تنظيمونو او انجيوګانو تعليمي نصابونو څخه کار اخيستل کېده. په کار دا وه چې په موقت ډول يو واحد تعليمي نصاب جوړ او وروسته بيا پر يوه منظم تحصيلي نصاب کار پيل شي. د امريکا متحده ايالاتونو پرمختيايي ادارې (USAID) د دې کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه واخيست. د تعليمي نصاب دکتابونو دا شمېر دا مهال ټولټال(۱۱۷ ) عنوانونو ته رسېده. د امين صيب پر زيات ټينګار او څار دا ټول کتابونه د بېلابېلو متخصصينو له خوا ايډيټ او چاپ ته تيار شول او کله چې امين صيب د پوهنې د وزير په توګه عملاً خپله دنده پيلوله، نو دا (۱۱۷) عنوانه تعليمي اثار چې په مليونونو ټوکه چاپ شوي وو، هم د زده کوونکو د ګټې لپاره تيار شول.

امين صيب شپږ مياشتې په پوره صداقت د پوهنې د وزير په توګه خپله دنده ترسره کړه، بيا په هېواد کې حکومت نوې بڼه خپله کړه او له واکمن دربار سره د ده مناسبات هم پسې ساړه شول، ده خپل پخوانی دفتر له پېښوره

**کابل ته انتقال کړ، ( د افغانســـتان د مطالعاتو مرکز) په نوم يې نوی دفتر جوړ کړ، خپلـه بـډایه کتابتون يې هم کـابـل تـه ولېږداوه او دلتـه يې پر ټولنيزو او فرهنګي خدمتونو لاس پورې کړ.**

**د ژوند تر پايه يې بيا په حکومت کې رسمي دنده وانه خيسته او د حکومت د يوه منتقد او ټولنيز خدمتګار په توګه يې د خپل ژوند وروستي کلونه تېر کړل. امين صـــيب د (۲۰۰۹م) کال د د اکتوبر پر (۳۱)مه نېټه له وطنه لرې په استراليا کې د خپل ژوند پور پرې کړی، په دې ډول يې د ژوند هغه سفر چې ده پر (۱۳۱۸ل) کال په کونړ کې له خپل کلي (وټپور) څخه پيل کړی و، پايته ورســاوه. جنازه يې وطن ته راوړل شــوه او د کونړ په مرکز کې يې خپل ابدي کور خپل کړ. بډايه کتابتون يې، چې ده په ډېر زيار او زحمت په پېښــــور کې جوړ کړی و، د ده د يوه ستر معنوي امانت په توګه وروسـته د کونړ پوهنتون ته وسپارل شو، چې اوس د ياد پوهنتون محصلين او استادان ترې علمي ګټه پورته کوي.**

**پروفيســور رســول امين د خپل عمر په نيمه پېړۍ کې پر ټولنيزو او ســياســي فعاليتونو ســربېره ګڼ شــمېر فرهنګي خدمتونه هم ترســره کړي دي. ژباړې، متفرقه ليکنې او څو عنوانونه مســتقل اثار يې چاپ شــوي دي. په ګڼو کورنيو او بهرنيو علمي ســـيمينارونو، ورکشــاپونو او غونډو کې يې ګډون کړی او د هېواد د نن او راتلونکي پـه بـاب يې ويناوې کړي او د دې ترڅنګ يې پـه رسنيو کې ګڼ شمېر ليکنې او مرکې هم خپرې شوې دي.**

**اوسنی اثر (د پروفيسور رسول امين کليات) چې ستاسو په لاس کې دی، د ده د ژوند د بېلابېلو پړاوونو، په تېره بيا په هېواد کې د دېرشکلنو خونړيو پېښـو او حالاتو په باب د ده د ويناوو، متفرقه ليکنو، مرکو او همدارنګه مســـتقلو اثارو او ژباړو يوه لويه ټولګه يا کليات دي، چې ښـاغلي ضـياءالرحمن ضـياء راټول، ترتيب او تدوين کړي دي. زموږ هيله دا وه چې د امين صـــيب ټولې**

لیکنې او ویناوې باید راټولې شي او د کلیاتو په بڼه چاپ شي، خو دا ټولګه یا کلیات چې سړی ګوري، نو ورته ښکاري چې د امین صیب ټولې لیکنې په کې نه دي راټولې شوې، البته د لیکنو زیاته برخه په کې خوندي شوې ده. د امین صـیب ځینې هغه لیکنې چې تر ډېره بریده یې علمي بڼه لرله او پر خپل وخت په ورځپاڼو، کابل او نورو مجلو کې چاپ شوي، هغه هم په دې کلیاتو کې نه شته او د دې ترڅنګ چې ده د خپلو علمي او تحصیلي پوړیو لپاره کوم علمي اثار لیکلي، هغه هم په دې کلیاتو کې نه تر سترګو کېږي. که هغه لیکنې او اثار هم راټول شـــي، نو همدومره یو بل اثر ترې جوړېدی شـــي. د افغانســـتان ملي تحریک چې د ده د کورنۍ له غړو په تېره بیا د امین صـــیب د قدرمن زوی (اتل امین) ســـره یې په ګډه د دې اثر د راټولولو او تدوین پروګرام جوړ کړی و، دې نتیجې ته ورسېدل چې د امین صـیب د (دیارلسـم) تلین په مناسـبت اوس د دې کلیـاتو چـاپ ضـــروري دی. د دې اثر تر چـاپ وروســـتـه بـه لوسـتونکو، څېړونکو او د امین صـیب د کورنۍ غړو ته ښـه پته ولګي چې د امین صـیب کوم اثار او لیکنې پاتې دي، د هغو راټولولو لپاره باید هم یو پلان جوړ شي او د امین صیب د کلیاتو د دویم ټوک په توګه باید چاپ شي. په یو ټوک کې د ټولو لیکنو چاپ هم شـــونی نه و، په دې ډول به د هېواد د یو خدمتګار امین حق ادا شي.

دا اثر چې سړی ګوري، نو سړي ته د امین صیب فکري لیدلوری او تګلوری په ښه ډول څرګندېږي. امین صیب په دې نظر و چې د افغانستان ټول قومونه ســره ورونه او ټول افغانان دي، هېڅ ډول توپیر یې باید په منځ کې ونه شــي. هغه د خپلې ټولنې د یو ټولنپوه په توګه په دې نظر و چې د افغانســـتان د شخړې حل په لویه جرګه کې نغښتی دی. که څه هم د امین صیب د هیلو یوه برخه په وروسـتیو څو لویو جرګو کې افاده شـوه، خو بیا هم لکه څنګه چې د هغه هیله وه یادو جرګو په پوره ډول هغومره خپلواکي نه درلودله، لکه څنګه چې د امین صـــیب او ټولو افغانانو هیله وه. امین صـــیب په دې نظر و چې په

افغانستان کې سوله او ثبات د ټولې نړۍ او په تېره بیا د ګاونډیو په ګټه دی او د هغو د ثبات مانا ورکوي. پاکستاني چارواکو ته یې څو ځله مخامخ دا خبره کړې وه چې افغانستان کې د ګډوډۍ د جوړونې پر ځای سولې او ثبات ته کار وکړئ، داکار هم ستاسو او هم زموږ د هېواد په ګټه دی. امین صیب د عدالت د تامین په خاطر د جنګي جنایتکارانو د محاکمې غوښتونکی و، خو په خواشینۍ سره چې نړیوالې ټولنې جنګي جنایتکارانو ته د مجازاتو پر ځای مکافات ورکړل؛ په واک یې شریک کړل او په نتیجه کې د هېواد د بې ثباتۍ او د نړیوالې ټولنې د بدنامۍ او ناکامۍ سبب شول.

امین صیب د یوه ډیموکرات شخص په توګه د زورواکۍ مخالف و، دیکتاتوري نظامونه یې نه خوښول او دا یې د خپل ملت د فکري خپلواکۍ، روح او روان مخالف حالت ګاڼه او په دې نظر و چې د زور وروستۍ نتیجه مثبته نه وي. ده ولس د خپل هېواد د برخلیک ټاکلو اصلي مالک ګاڼه او د دې ترڅنګ یې د افغانستان په باب د نړیوالو د دوه ګونی متضاد سیاست غندنه کوله. ده د یو شمېر هغو ډلو ټپلو هغه ناوړه هیلې او غوښتنې هم غندلې چې دلته او هلته به یې کله کله د هېواد د تجزیې په موخه پټې او کله هم څرګندې چیغې وهلې، د ده په نظر افغانستان داسې یو طبیعي هېواد دی او جوړښت یې داسې مستحکم دی، چې هېڅکله تجزیه کېدلای نه شي، نو هغه ډلې چې دا ډول هیله لري هغوی باید پر خپل فکر له سره کتنه وکړي.

زه نه غواړم دلته د امین صیب د فکر پر بېلابېلو خواوو او لیدلورو اوږد بحث وکړم، ځکه خپله دا اثر د امین صیب د فکر ښه څرګندونه کوي.

زه په پای کې د امین صیب د کورنۍ له غړو، په تېره بیا د هغه د قدرمن زوی (اتل امین) څخه ډېره مننه کوم چې دا تېر دولس دیارلس کاله یې په متواتر ډول د امین صیب تلین ورځې په درنو غونډو سره یادې کړې دي. د امین صیب مقبره یې جوړه کړې، د قران کریم ختمونه یې کړي، د دې ترڅنګ یې

د امین صیب په نوم خیریه بنسټ هم جوړ کړی او له دې لارې یې د بېوزلو هېوادوالو لاسنیوی کړی او کوي یې او دا دی اوس یې د امین صیب د (دیارلسم) تلین په مناسبت د دې اثر د چاپ مالي لګښت ته هم اوږه ورکړه. قدرمن ورور ضیاءالرحمن ضیاء څخه هم مننه کوم چې د امین صیب دا لیکنې یې راټولې، کمپوز، ترتیب او تدوین کړې، په همدې هیله چې د امین صیب د لیکنو د کلیاتو په دې لومړي ټوک پسې د هغه دویم ټوک هم ترتیب او چاپ شي. له ټولو هغو دوستانو څخه هم مننه په کار ده چې په تېرو لسو کلونو کې یې د امین صیب تلین غونډې جوړې کړي، په هغو کې یې ګډون کړی، ویناوې یې کړي او د امین صیب په باب یې لیکنې کړې دي.

د امین صیب د روح د ارامتیا په هیله

په درنښت

محمد اسمعیل یون

کابل– افغانستان

د ۱٤۰۱ل کال د تلې ۱۸مه

# په افغانستان کې مېشت قومونه

# ټول افغانان دي

دا وینا د وفا جریدې په (۸۵) یمه ګڼې کې د (۱۳۷۲ل) کال د سلواغلې میاشتې پر شلمه نېټه خپره شوې ده.

د (۱۹۹٤) میلادي کال د فبرورۍ پر دویمه نېټه د پېښور پوهنتون استادانو د اتحادیې له خوا د افغانستان د ستونزو او روانو حالاتو په باب یوه د بحث او خبرو غونډه یا په اوسني تعبیر یو سمپوزیم جوړ شوی و. غونډه د مازیګر پر درې بجو او شلو دقیقو د قران عظیم الشان پر تلاوت پیل شوه. په بحثونو کې برخه اخیستونکي او پوښتنو ته ځواب ویونکي دغه لاندې ښاغلي وو:

د پېښور پوهنتون پخوانی رییس پروفیسور ډاکتر محمد انورخان، د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې مشر پروفیسور عبدالرسول امین، باچا صاحب، پخوانی افغان ډیپلومات او سیاستپوه حکیم اریوبي او د افغانستان د سولې او بې وسلې کولو د سازمان مشر امیر بهلول. دوی هر یو په خپل وار سره د افغانستان د تاریخ او روانو کشالو په باب خبرې وکړې، چې دا دی د دوی د ویناوو ځینې برخې د وفا جریدې د ګرانو لوستونکو د معلوماتو د زیاتولو په خاطر راوړل کېږي.

د پروګرام په سر کې د پروګرام د ستیج سکرتر د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال، شاعر او محقق او د پېښور پوهنتون د پښتو اکېډمۍ مشر علمي غړی ډاکتر

راج ولي شــــاه خټک پوښــــتنه وکړه، هغه کوم عوامل و، چې افغانســــتان یې تراوسه یو موټی او متحد ساتلی و؟

د ډاکتر راج ولي شاه خټک ددې پوښتنې ځواب د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې مشر پروفیسور رسول امین داسې ووایه:

په دې سیمه کې یو قوم پروت و، چې په مختلفو نومونو بللی شوی دی، خو ده ځان ته پښتون ویلی دی. د معاصر افغانستان په جوړوونکو کې د میرویس خان نوم هم راځي او لوی احمدشــــاه بابا هم راځي، لوی احمدشــــاه بابا په ځلمیتوب کې داســـې نبوغ درلود، چې هم په جنګ پوهېده او هم د خپلې ټولنې په نبض. د ده لوی بری په دې کې و، چې د افغانانو هرې قبیلې ته یې په درنښت سره کتل، په همدې نبوغ سره یې لویه امپراتوري جوړه کړه، چې تر هند او کشمیره رسېده. دا امپراتوري د ده تر مرګ وروسته د ده زامنو او لمسیانو ته پاتې شوه.

ډاکتر راج ولی شـاه خټک: که د افغانستان شمال له افغانستان څخه جلا شي، د افغانستان به څه حال وي؟

پروفیســور رســول امین: د افغانســتان جهاد او جنګ له روســانو ســره د افغانســــتان ټولو قومونو په ګډه پیل کړی او ټولو قومونو قربانۍ ورکړې دي. دې جګړو او قربانیو اول ځل د افغانســــتان قومونو ته دا وښــــوده، چې موږ افغانان یو. د روســانو پر ضــد د افغانانو د یو مخیز قیام جګړو او جهاد څخه مخکې به د افغانستان نورو قومونو یوازې پښتنو ته افغان ویل، مګر د شلمې پېړۍ په جریان کې افغاني حکومتونو (پرته له کمونیستي واکوالو څخه) دا زیار وویســـت چې د افغانســــان هر اوســـېدونکی ځان افغان وبولي، په زیاته کچه څوارلس کلن جهاد دغه بهیر لا پسې ګړندی کړ. د روسانو پرضد د افغانستان

د ټولو قومونو قیـامونو مجـاهـدو او جګړو د افغـان نوم ډېر وځلاوه، د افغانســـتان د هر قوم اوســېدونکي ځان افغان وباله او د افغان پر نوم يې وياړ کاوه.

دکمونیســتان او روســانو پرضــد د افغانســتان مجاهدې، جګړې او قیامونو د افغانانو د خپل وطن د ازادۍ او د خپلو ديني، عقايدو او عنعنو د ســاتلو لپاره پيل کړې او بري ته يې ورسولې.

زه ويلای شــم چې د افغانانو دا جهاد د دين او وطن د دوو مقدسو نومونو له يوځايوالي جوړ شــوی و. دا چې له ځينو خلکو ســره د افغانســتان د تجزيې سوالونه پيداکېږي. زه به د علامه اقبال دا شعر راوړم:

اسيا يک پـيکر آب و ګل است

ملت افغان در ان پيکر دل است

از فساد او فساد اسيا

از کشاد او کشاد اسيا

دا يو حقيقت دی چې که په افغانستان کې ارامي او خوشالي وي، ټوله اسيا به خوشـــاله او ارامه وي او که خدای دې نه کوي فســـاد راغی دا به بيا داســـې توپاني فســـاد وي چې نه به هند ورته ټينګ شـــي او نه پاکســـتان، نه ايران او نه منځنۍ اســيا. زه دومره ويلای شــم چې افغانســتان په ايډيالوژيو نه جوړېږي، دلته دکمونيستانو ايډيالوژي، په نړيواله سويه ناکامه شوه. زما ځينو دوستانو چې ځانونه اســـلامي بنيادګر بولي، ويل به يې چې موږ افغانســـتان په يوه نوي اسلامي شکل جوړوو. ما ورته ويل چې د پاکستان په څېر، ايران په څېر او که

**د اسلام د مرکز سعودي عربستان په شان. دوی به ویل چې نه دا یو شکل هم ښه نه دی، مونږ یې په داسې ښه جوړوو چې ټولې نړۍ ته یو مثال وي.**

**زما مطلب دا دی چې په افغانستان کې که هر ډول حکومت راځي، باید د افغانستان ټولو قومونو او اوسېدونکو ته حق ورکړي. اوس خو ټولو قومونو د افغانستان په تېر اوږده جهاد کې وینې تویې کړي، کلي او کورونه یې ړنګ شوي.**

**هېڅ ایډیالوژي حق نه لري، چې افغانستان یوازې او یوازې په خپله خوښه او یا د خپل ګوند په خوښه د ځان لپاره جوړ کړي.**

# يو باثباته حکومت دکوکنارو دکر مخنيوی کولای شي

دا وينا د وفا جريدې په (۱۰۵) مه ګڼه کې د (۱۳۷۳ل) کال د چنګاښ مياشتې پر پنځلسمه نېټه خپره شوې ده.

تر هغې چې په افغانستان کې د خلکو په خوښه باثباته حکومت نه وي رامنځته شوی، دکوکنارو دکرنې مخنيوی ګران دی، ملګري ملتونه بايد د افغانستان د بحران حل ته پاملرنه وکړي.

د (۱۹۹٤) ميلادي کال د جون د شپږ ويشتمې په مازيګر د افغان مهاجرينو د عالي کمېشنرۍ له خوا د نشه يي توکو د مخنيوي او کنټرول نړيواله ورځ د کچه ګړۍ په مهاجر کمپ کې ونمانځل شوه. دې غونډې ته د صوبه سرحد مشر وزير ښاغلی افتاب احمدخان شېرپاو هم راغلی و. د UNDCP د موسسې کارکوونکو او مشرانو د افغان کمېشنرۍ مشر رستم شاه مومند او نورو هم په غونډه کې برخه اخيستې وه. د دې غونډې ترتيبات کمېشنرۍ د UNDCP او د نشه يي توکو د مخنيوي او کنټرول د نورو موسساتو په همکارۍ نيولي وو.

دغه مبلغين په باقاعده ډول خپل ورسپارل شوي کارونه پرمخ بيايي. نوموړي د خپلو خبرو په پای کې د کچه ګړۍ په کمپ کې د افغان مهاجرو موجودې ستونزې هم يادې کړې. ورپسې د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر پروفيسور عبدالرسول امين خبرې وکړې. دوی لومړی د جون د شپږويشتمې

د ارزښـــت په باب مطالب څرګندکړل، بيا يې په اســـلامي لحاظ د مخدره او نشـــه يي توکو د بنديز په باب خبرې وکړې او د خپلو خبرو په ترڅ کې يې په افغانستان کې د کوکنارو د کرنې په ارتباط خپل نظر داسې څرګند کړ:

تېر کال د ملګرو ملتونو له خوا د خپرو شـــويو احصـــايو له مخې د کوکنارو د کرنې له پلوه افغانستان تر (برما) وروسته دويم هېواد و، خو راغلي معلومات دا ښـــيي چې ســـږ کال افغانســـتان تر (برما) هم دمخه دی. په افغانســـتان کې د نشـــه يي توکو د توليد ورځ پر ورځ زياتېدنه خپل عوامل لري. د دې مســـلې اساسي عامل جنګ او په هېواد کې د يوه باثباته قانوني حکومت نه موجوديت دی. که څه هم په افغانســـتان کې پخوا هم کوکنار کرل کېدل، خو د ثور تر کودتا دمخه د مخکنيو حکومتونو د ممکنو طريقو له لارې د کوکنارو د کرنې د مخنيوي لارې چارې ســـنجولي او مور خپله په کونړ او ننګرهار کې ليدل چې د کوکنارو کروندې به په بل مخ واړول شـــوې. تر کمونيســـتي کودتا وروســـته چې په هېواد کې جنګ پيل شـــو، کمونيســـتي رژيم د افغانســـتان په اطرافي سيمو او زياترو ولاياتو خپل تسلط له لاسه ورکړ. په افغانستان کې د کوکنارو د کرنې يو بل پړاو پيل شو او هم په دې وروستيو شپاړسو کلونو کې له يو کال څخه بل کال ته پراختيا پيداکوي او نږدې ده چې په ځينو ســـرحدي ولاياتو کې ټولو ځمکو کې کوکنار وکرل شـــي. کوکنار او له هغو څخه راوتلي مرکبات له افغانستان څخه پاکستان ته راوړل کېږي او هم له افغانستان څخه تاجکســـتان او ازبکســـتان ته وړل کېږي او له دې ځايونو څخه د نړۍ نورو سيمو ته انتقالېږي، ترې لاسته راغلې پيسې د څو تنو بانفوذه ټوپکوالو جيبونو او حســـابونو تـه ورځي او بـالمقابل ازار او افت يې د نړۍ ځوانانو تـه ور رســـېږي. دغه بانفوذه ټوپکوال هېڅکله هم دې ته نه حاضـــرېږي چې له دې ناوړو کټو لاس په سر شي. دوی اخلاقي توصيو ته توجه نه کوي.

**بهترینه لاره دا ده چې ملګري ملتونه تر ټولو دمخه د افغانســـتان ســـیاســـي مســـلې ته پاملرنه وکړي او دا زیار وباســـي چې هلته د ټولو افغانانو د منلو وړ یو داسې حکومت جوړ شي، چې هم قانوني حیثیت ولري او هم وکړای شي چې پر ټول افغانستان خپل حاکمیت ټینګ کړي. په هغه صـورت کې کېدلای شـــي، د کوکنارو د کرنې مخنیوی وشـــي او د افغانانو ملي حکومت به د نویو لارو چارو په اختیارولو او خلکو ته د کار د زمینو برابرولو له امله له دې کار ســره مبارزه کوي. د ملګرو ملتونو مالي مرســتې به هغه صــورت کې ګټورې واقع کېدای شي.**

# د افغانستان په روانه شخړه کې

# د لويې جرګې ونډه

دا وينا د (افغانان) جريدې په (۲–۳) يمه ګڼه کې د (۱۳۷۹ل)کال د سرطان مياشتې پر (۷)مه نېټه خپره شوې ده.

د (۲۰۰۰م) کال د جون د مياشــتې په نولســـمه نېټه په پېښــورکې د افغان ځوانو محصــلينو له خوا، د افغانســتان د رواني شــخړې په ســياســي حل کې د لويې جرګې ونډه، تر سرليک لاندې يو ورځينی سيمينار جوړ شو.

په دغه ســيمينارکې د افغاني ســياســي، علمي شــخصــيتونو، ســپين روبو او ځوانانو څخه علاوه ځينو بهرنيو ډيپلوماتانو هم ګډون کړی وو. ســـيمينار د سهار پر لسو بجو د عظيم الشان قران د څو مبارکو ايتونو پر تلاوت پيل شو، وروسته د افغاني ځوانو محصلينو د ټولنې مشر اجمل سهيل راغلو مېلمنو ته هرکلي ووايه او د دغه ســـيمينار په جوړونه کې يې له هغو خلکو څخه مننه څرګنده کړه، چې دوی سره يې په دې هکله مرسته کړې وه. اجمل سـهيل د افغانستان په روانو ستونزو خبرې وکړې.

د سيمينار بل وينا وال پروفيسور رسول امين د خپلو خبرو په پيل کې وويل: د لويې جرګې په ټولو اړخونو علمي بحث وشـــو، خو زه دلته يو ټکی ويل غواړم، هغه دا چې د پخواني پاچا وړانديز لويه جرګه نه، بلکې اضطراري لويه جرګه ده. په دې کې شک نه شته چې د جهاد په دوره کې يو شمېر دوستو او مخصوصاً دوو ګاونډيو هېوادونو؛ پاکستان او ايران زموږ سره هر راز نظامي،

اقتصـادي او ډيپلوماتيکې مرستې کړې دي، که چېرې د دوسـتو هېوادونو له خوا نظامي، اقتصـــــادي او ډيپلوماتيکې مرســـتې نـه وای او زموږ ګاونډيو هېوادونو پاکسـتان او ايران راته په خپلو خاوروکې ځای نه وای راکړی، نو په دې صورت کې افغانانو ته د شوروي اتحاد د وحشي نظامي ماشين ماتول او د سور پوځ د افغانستان څخه ويستل ډېر ګران کار و. ټول افغانان د دوستو او مخصــوصـاً د ګاونډيو هېوادونو له دغو مرســتو څخه د زړه له کومي مننه کوي. خو افغانان په دې واقعيت هم ډېر ښــــه پوهېږي چې ځينو دوســـتو او مخصــوصـاً زموږ ګاونډيو هېوادونو د افغانســتان په ارتباط خپلې پاليســـۍ د افغانانو د ملي ګټو پرځای يوازې د خپلو ملي ګټو لپاره جوړې کړې وې او تراوســــه د ګاونډيو هېوادونو د ملي ګټو په ارتباط دوام لري او د افغانانو او افغانستان ملي ګټې هېڅ په نظر کې نه نيول کېږي. که چېرې زموږ دوستان او ګاونډيو هېوادونو د خپلو ملي ګټو ترڅنګ د افغانســـتان ملي ګټې په نظرکې نيولې وای او افغانانو ته يې د خپل زعامت د ټاکلو حق ورکړی وای، زما په نظر زموږ ملي غميزې دوام نه کاوه او د افغانستان مسله به افغانانو لا د وخته حل کړې وای. په لنډه عبارت کې د يوې خوا زموږ دوســتانو او مخصــوصـاً ګاونډيو هېوادونو د افغانانو ســره نظامي، اقتصــادي او ډيپلوماتيکې مرســتې کړې دي، له بلې خوا همدغو هېوادونو د افغانانو څخه سياسي واک اخيستی دی او په سياسي ډګرکې يې له پيله تراوسه افغانان هېڅ واک نه لري.

ښــاغلي امين وويل: په افغانســانکې درې ډلې وجود لري؛ يوه ډله د طالبانو نهضـــت او بله ډله د شـــمال اتحاد دی. دريمه ډله د افغانســـتان در په در خاورې په سر افغان ولس دی. دغو دوو جګړه مارو ډلو د افغانستان بېچاره ولس چې په ســلوکې اته نوي د افغانانو شــمېر تشــکيلوي، د ټوپک په زور يرغمل نيولی دی او د هر راز بدبختيو، مرګ ژوبلې، اواره ګۍ، ســپکاوي،

تحقیر او غیر انســـاني کارونو ســـره یې مخامخ کړي دي او حتی د افغانانو ناموس او د هېواد موجودیت یې په خطر کې اچولی دی. ښـاغلي امین وویل: پوښـتنه دا ده چې اضـطراري لویه جرګه د څه لپاره دایرېږي؟ ایا یوازې جرګه د جرګې لپاره او که دغه اضطراري جرګه د یو خاص هدف لپاره دایرېږي؟که جرګه یوازې د جرګې لپاره وي، نو بیا خو به یو شـــمېر افغانان راټول شـــي، تقریرونه به وکړي، ډوډۍ به وخوري او بیا به هر یو په خپله لار ځي. او که جرګـه د یو هـدف لپـاره وي، نو بیـا خو ټولو افغـانـانو تـه بـایـد چې د دغې اضـطراري لویې جرګې اساسي هدف او دې هدف ته د رسېدو ټول اساسي وسایل معلوم وي. د پخواني پاچا د سولې پروسه یو مشخص هدف لري او دغه هدف د افغانانو د حق خود ارادیت حاصلول دي. افغانان د نړۍ د نورو اسـلامي هېوادونو د ولسـونو په شـان پوره حق لري، چې د خپل جنګ ځپلي هېواد روانه ملي غمیزه د ټوپک، توپ، طیارې او وینو تویولو پرځای د خپلو رایو له لارې حل کړي او دا د افغانانو پوره حق دی، چې خپل زعامت او حکومت د رایو له لارې وټاکي، نه د برچو په زور د ټولې نړۍ د اســـلامي هېوادونو ولسونه - پاکستان، ایران، مصر، ترکیه، مالیزیا، اندونیزیا او نور - د زعامت او حکومت په اړوند خپلې رایې استعمالوي، ولې افغانان د دې مسلم حق څخه محروم شـــي؟ د حق خود ارادیت د اعادې کولو لپاره اضـــطراري لویه جرګه او په خپله د پخواني پاچا وجود دده موثره وسایل دي. لویه جرګه د افغانانو تاریخي موثره وسـیله ده او دوی تل د دې موثرې وسـیلې له لارې خپلې داخلي او خارجي لانجې او مســـلې حل کړي دي او ضـــطراري لویه جرګه د افغانســتان د روانې ملي غمیزې د پای لپاره یوازینۍ اسـاسـي او ملي وســـیله ګنل کېږي. همداشـــان د افغانانو لوی اکثریت او ځینو باندنیو دخیلو حکومتونو، ګوندونو او موســـســـو ته دا واقعیت جوت شـــوی دی، چې د

افغانستان په تېرو دوه ويشت کلونو کې يو داسې شخصيت، ګوند يا تنظيم منځته نه دی راغلی، چې هغه دې د ايډيالوژي، ګوند، تنظيم او يا د محلي، ژبني او نژادي مسايلو پرځای په افغان او افغانستان فکر وکړلای شي او د افغانستان د ملي هويت او ملي ګټو لپاره دې ملا وتړي. اوس د افغانانو لپاره د افغاني ګوندونو او تنظيمونو ټول مشران، ګوندونه او تنظيمونه تجربه شوي واقعيتونه دي او افغانان يې پېژني، چې څوک څوک دي؟ او چا د افغانانو او افغانستان لپاره څه کړي دي، څه کوي او په راتلونکي کې ترې څه توقع کېدای شي؟ د افغانانو د ترخو تجربو په نتيجه کې د افغانستان د خلکو د اميد مرکز پخوانی پاچا ګرځېدلی دی، پخوانی پاچا په افغانستان کې د سلطنت اعاده کول نه غواړي او يوازې د يو سپين ږيري په توګه په افغانستان کې د سولې د راوستلو لپاره رول لوبول غواړي. پخواني پاچا څلوېښت کاله په افغانستان حکومت کړی دی، هغه د هېواد په داخلي او خارجي مسايلو پوره پوهېږي او هغه د افغانستان د درې سوه کلنې پاچاهۍ موسسې غړی دی او تراوسه د يوې موسسې حيثيت لري.

ښاغلي امين وويل: د افغانستان ستراتيژيک موقعيت او د قومونو ترکيب يو ګاونډي هېواد ته دا اجازه نه ورکوي چې هغه دې د خپلې خوښې لاسپوڅی حکومت په افغانانو او نورو ګاونډيانو تحميل کړي او نه يو ګاونډي هېواد هم دا توان لري چې د بين المللي قوانينو، د افغانانو د خپلواکۍ او د نورو ګاونډيانو د ملي ګټو خلاف دې په ټول افغانستان خپله واکي. د افغانستان موقعيت د افغانانو د قومونو ترکيب او سالم سياسی فکر دا حکم کوي چې په افغانستان کې دې د خلکو په رايې يو دوست حکومت منځته راشي او دغه دوست حکومت به حتماً د خپل هېواد د ګاونډيانو، حوزې او بين المللي ټولنې په ملي ګټو فکر کوي او د افغانستان له ستراتيژيک موقعيت څخه په

**استـــفاده به د جنوبي، مرکزي او لویدیزې اســـیا ترمنځ د تجارتي لویې لارې لوی رول لوبوي.**

**پروفیســور رســول امین وویل: پخواني پاچا هېڅکله دا نه دي ویلي چې دی به خپل ټیم جوړوي او دغه ټیم به افغانســـتان ته د حکومت کولو لپاره لېږل کېږي. د پخواني پاچا د سولې فورموله ډېره ساده ده. د هغه په نظر د افغانانو اضـــطراري لویه جرګه به په افغانســـتان کې دایرېږي، دغه جرګه به موقتي زعامت او حکومت ټاکي او دغه زعامت او حکومت به د نورو مسـایلو سـره په افغانســـتان کې د انتخاباتو لپاره کار کوي. د اضـــطراري لویې جرګې د دایرېدو لپاره د افغانانو، ګاونډیانو، ملګرو ملتونو، اســـلامي کنفرانس او نورو دخیلو هېوادونو ګډه همکاري ضروري خبره ده.**

# د افغانستان سوله د ګاونډيو هېوادونو او سيمې په ګټه هم ده

دا وينا د (افغانان) جريدې په (۹-۱۰) مه ګڼه کې د (۱۳۷۹ل)کال د سنبلې مياشتې پر (۲٤)مه نېټه خپره شوې ده.

د (۲۰۰۰م) کال د سپټمبر مياشتې پر نهمه نېټه د افغانستان د تفاهم او ملي يووالي شورا په نوبت د افغانانو د مختلفو قومونو يو شمېر استازو، جهادي قوماندانانو او روښانفکرانو په اسلام اباد کې د پاکستان د سرحدونو د چارو وزير عباس سرفراز خان سره چې په عين حال کې د کشمير د چارو او د سفران وزير هم دی، ليدنه کتنه وکړه، په دغه ليدنه کې د صوبه سرحد افغان کمېشنر او يو شمېر نورو چارواکو هم برخه درلوده.

جرګه د ورځې په يوولسو بجو د عظيم الشان قران د څو مبارکو ايتونو پر تلاوت پيل شوه، په سر کې د تفاهم او ملي يووالي شورا رييس حاجي حيات الله د جرګې غړي ورمعرفي کړل.

پروفيسور عبدالرسول امين همددې جرګې غړی و، هغه په خپلو خبرو کې وويل: زموږ غوښتنه دا ده چې تاسو خپله يو ځلې د افغان مهاجرينو کمپونو ته ولاړ شئ او د هغوی نظر معلوم کړئ، چې څه غواړي، بله خبره داده چې په کمپونو کې افغانان له ډېرو مشکلاتو سره مخ دي، له افغانستان څخه خلک اوس له جنګونو او وچکالۍ څخه نوي رامهاجر شوي، هغوی له ډېرو سختو ستونزو سره لاس او ګرېوان دي، بايد چې له هغوی سره مرستې وشي، ځکه که د دوی ستونزې ډېرې شي، بيا نور مشکلات پيداکېږي.

# مسایل په احساساتو نه، بلکې په مفاهمه حلیږي

دا وینا د (افغانان) جریدې په (۲۷) مه ګڼه کې د (۱۳۸۰ل) کال د جوزا میاشتې پر (۹)مه نېټه خپره شوې ده.

د پاکستان د بشري حقونو د کمېسیون له خوا د افغان مهاجرینو په اړه جوړ شوي سیمنار ته د پروفیسور رسول امین وینا:

د (۲۰۰۱م) کال د مې میاشتې پر دېرشمه نېټه د پاکستان د بشري حقونو د کمېسیون له خوا د (( Afghan Refugees Responding to Humanitarian Crisis)) تر سرلیک لاندې د پېښور په ((سپرینګ نایټ هال)) کې یو سیمنار جوړ شو، چې ګڼ شمېر ټولنیزو او سیاسي شخصیتونو، د ملګرو ملتونو ځینو استازو او خبریالانو ګډون په کې کړی و. په سر کې د پاکستان د بشري حقونو د کمېسیون مشر افراسیاب خټک او ګڼ شمېر نورو خلکو ویناوې وکړې.

په پای کې پروفیسور رسول امین، چې د سیمنار په بهیر کې یې د انانسر دنده هم درلوده، خپله وینا داسې پیل کړه:

درنو حاضرینو! تاسو ټولو ته معلومه ده چې دلته افغانان دوه ویشت کلن شوي دي، په دې مانا چې دلته پیدا او رالوی شوي دي. دوی په حقیقت کې د دې ځای سفیران دي، سوچ په کار دی، ولې دغو سفیرانو ته تکلیف پیدا شي او خوږه ورورولي یې په ترخو بدله شي؟ هېڅ مسله په احساساتي ډول

نه حل کېږي، مسایل په مفاهمه حل کېږي، ز په دې عقیده یم چې مهاجرینو له مسلې سره دې سم برخورد وشي. په هر هېواد کې حکومتونه او سیاسي څېرې بدلېږي رابدلېږي، اما د دغه هېواد ملت تل ژوندي وي او هر ملت د بل ملت په اړوند د ښــو یا خرابو خاطرو تاریخ لري. د یو ملت هوښــیار چارواکي د خپل ملت لپاره د نورو ملتونو سره دوستۍ او خو خاطرو ته وده ورکوي. زما په نظر د پاکستان اوسني ځینې چارواکي په دې نه پوهېږي چې د افغان مهاجرینو په اړوند د دوی روانه پالیسي په اینده کې خپله پاکستاني ملت ته تاوان رسوي او د جهاد له دورې څخه تراوسه د افغان او پاکستان د ملتونو نږدېوالی او دوســتي په ترخو خاطرو بدلوي. افغانان په دې پوهېږي چې له دښمن سره څه وکړي اما دا چې د دوستانو سره څه وکړي، له ډېرو ځورولو وروسته تصــمیم نیســي. زه د افغانانو په نمایندګۍ کې د پاکســتان د بشــري حقونو د کمېسیون د مشر او ټولو غړو څخه مننه کوم چې په داسې حساس وخت کې یې د مظلومو افغانانو غږ اوچت کړ.

# جګړه ماران باید د جنګي جنایتکارانو په توګه محاکمه شي

دا وینا د (افغانان) جریدې په (۲۸) مه ګڼه کې د (۱۳۸۰ل)کال د جوزا میاشتې پر (۲۵)مه نېټه خپره شوې ده.

د (۲۰۰۱م) کال د جون د میاشـتې پر اتمه نېټه د پېښــور په افغان ایورګرین هوټل کې د افغانانو د ځینو مسایلو د حل په باب یوه غونډه رابلل شوې وه.

غونډه د یو ځوان وطندوسـت افغان شـاهي سـعادت په مالي لګښـت، د دې مقصـد لپاره جوړه شـوې وه، چې افغان پوهان، سپین ږیري او ځوانان د خپل هېواد په روانه غمیزه او د هجرت په چاپېریال کې افغانانو ته په وړپېښــو مسایلو خبرې اترې وکړي.

غونډه د مازیګر په څلورو بجو د عظیم الشـــان قران د څو مبارکو ایتونو پر تلاوت پیل شـوه. وروسـته افغاني هنرمندانو له خوا ملي ترانه (ای زما وطنه د لعلونو خزانې زما– ستا هره دره کې دي د تورو نښانې زما) واورول شوه.

د غونډې د لومړۍ برخې په پای کې پروفیســور رســول امین ته بلنه ورکړل شوه چې د غونډې نتیجه ګیري وکړي، پروفیسور امین وویل: په غونډه کې د افغانستان او د افغانانو په مختلفو ستونزو باندې خبرې وشوې، ځینې ماضي ته ولاړل او په ماضي کې چې موکومې ستونزې لرلې، په هغو یې رڼا واچوله، ځینو د افغانانو پر اوسنیو ستونزو رڼا واچوله. خو دغه ټول مسایل په څلورو ټکو کې مطرح کېدلای شي:

لومړی دا چې دا د افغانستان مسله ده، په افغانستان کې باید سړی پوه شي چې افغانستان څه شی دی؟ افغانستان خپله جغرافیه لري، افغانستان خلک لري، افغانانو د تاریخ په اوږدو کې حکومتونه لرل او د افغانانو حکومتونو د تاریخ په اوږدو کې خپلواکي لرله. اوس چې موږ ګورو، د جغرافیې په لحاظ افغانستان موجود دی، د خلکو په حیث، هلته افغانان اوسېږي، خو اساسي خبره دا ده چې افغانستان کې دوه شیان نه شته، یو د افغانانو حکومت نه شته، لکه مخکې چې اشاره ورته وشوه، د امیر عبدالرحمن خان، یا امیر حبیب الله خان او نورو امیرانو حکومتونه د امارت په نوم موجود وو، خو کله چې امان الله خان راغی، د امارت نوم یې پر مستقل افغانستان کې بدل کړ او د افغانانو جنجال په دې خبرو کې وو، چې هلته حکومتونه وو، خو هغه حکومتونه د بل چا د لاس لاندې وو، اوس هم موږ وینو چې نه د شمالي اتحاد له خوا اعلان شوی حکومت د افغانانو حکومت دی او نه د طالبانو حکومت د افغانانو حکومت دی، بلکې هر لوري ته په غارو کې یو څو ټوپکې اچول شوې دي چې دوی د افغانانو د ګټو لپاره نه، بلکې د پردو د ګټو لپاره په خپلو کې سره جنګېږي. نو باید ووایو چې موږ حکومت نه لرو، فلهذا کله چې حکومت نه شته، نو افغانستان خپلواکي هم نه لري.

ورونو! اساسي خبره دا ده چې تر څو افغانان نه شو، نو افغانستان نه شو ګټلای، افغانستان نه د پښتون په نامه ګټل کېدای شي، نه د تاجک په نامه، نه د ازبک په نامه او نه د هزاره، ترکمن او نورو په نامه، یوازې او یوازې د افغان په نوم یې ګټلای شو. موږ ګورو چې اوس د افغانیت د ختمولو لپاره هغه خلک راپاڅېږي او ماته وایي چې مسلمان شه چې د هغه پلار او نیکه ما مسلمانان کړي دي، چې دا د افغانانو توهین دی، ځکه چې کله موږ د افغان خبره کوو، نو دا هم مسلمان دی، هم پښتون دی، هم تاجک دی، هم هزاره

دی، هم ازبک دی او هم ترکمن او نور دي اوکوم خلک چې بېلتونونو ته لمن وهي، دا ټول افغانستان ته غله دي. علامه اقبال وایي:

اسیا یک پیکر اب و ګل است

ملت افغان در ان پیکر دل است

ازکشـــاد اوکـــشـــاد اســـیا

از فـــســـاد او فـــساد اســـیا

دا عظیم او متفکر شخصیت د افغانستان پر اهمیت پوهېده، چې افغانستان ته داسې د زړه حیثیت ورکړي. نو دغه خلک چې د افغانستان لپاره ډېره غلطه او ناقصه پالیسي پر مخ وړي، هغوی ته به ښه دا وي چې افغانستان کې په یو دوست حکومت فکر وکړي. ځکه چې په افغانستان کې دوست حکومت، هم د افغانستان په ګټه دی، هم د پاکستان په ګټه دی او هم د ایران، مرکزي اسیا او نورو په ګټه دی. دغه دوست حکومت هغه وخت منځته راتلای شي، چې لویه جرګه جوړه شي او افغانانو ته حق خود ارادیت ورکړ شي.

د غونډې دویمه برخه مشاعرې ته وقف شوې وه، چې ځوانو شاعرانو په وار سره خپل شعرونه واورول او ورپسې د غونډې درېیمه برخه، موسیقي وه چې د افغاني ځوانو هنرمندانو له خوا چې مشري یې (بریالي) کوله، په پښتو او دري ژبو سندرې واورول شوې.

# د افغانستان روانه غمیزه او افغانان

**دا وینا د (وفا) جریدې په (۹-۱۰) مه ګڼه کې د (۱۳۷۵ل) کال د حوت میاشتې پر (۲۵)مه نېټه خپره شوې ده.**

**د (۱۹۹۷م) میلادي کال مارچ د میاشتې په یوولسمه نېټه د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې د کنفرانسونو په تالارکې د افغانانو او د پېښور د سیمې د شاعرانو، لیکوالو، پوهانو، سیاسي او اجتماعي شخصیتونو په ګډون یوه غونډه جوړه شوې وه. په غونډه کې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې په رغنده کارونو خبرو سربېره د افغانستان د رواني غمیزې په باب هم ډېرې خبرې وشوې. غونډه د ټولنې د رهبري هیئت، د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې له مشر پروفیسور رسول امین سره د خدای پاماني او د ټولنې د نوي رهبرۍ هیئت د معرفۍ لپاره رابللې و. د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې مشر پروفیسور عبدالرسول امین د ۱۹۹۶م کال د اکتوبر پر شپاړسمه نېټه له یوه اوږده سفره بېرته پېښور ته راغی او د ټولنې د کارونو په سمبالتیا او د افغانستان د رواني کشالې په اړه یې د خپلو ملي مکلفیتونو د سرته رسولو لپاره کار پیل کړ او اوس د ځینو صحي معاذیرو له امله بېرته استرالیا ته روان دی. پروفیسور امین په پېښور کې د خپلې څه دپاسه پنځه میاشتنۍ استوګنې په دوران کې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې د پروژو د فعال ساتلو لپاره هلې ځلې وکړې؛ د افغانستان د رواني غمیزې د حل د لارو چارو د لټون لپاره له نورو منورو افغانانو سره یو ځای کابل ته ولاړ؛ د افغانستان د ملي یووالي او تفاهم شورا په غونډو کې یې فعاله برخه واخیسته؛ د ملګرو ملتونو له خوا د افغانستان لپاره د مرستو جلبولو په هغه سیمینار کې یې ګډون وکړ،**

چې د روان کال په جنوری کې د ترکمنستان مرکز عشق اباد کې جوړ شوی و. د جنرال عبدالرشید دوستم په بلنه یې مزارشریف ته سفر وکړ؛ په پېښور او اسلام اباد کې یې له ډېرو افغاني او پاکستاني موثرو شخصیتونو سره ملاقاتونه وکړل او په پای کې یې د افغانستان د لیکوالو ټولنې د چارو د پرمخ بیولو لپاره د رهبري او مشاورانو هیئتونه وټاکل چې په جوړه شوې غونډه کې یې حاضرینو ته معرفي کړل. د غونډې په پیل کې د ټولنې مشر پروفیسور امین ټولو راغلو مېلمنو ته ښه راغلاست ووایه او بیا یې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې پر کارونو لنډې خبرې وکړې او د ټولنې اوسنی صورتحال یې وڅېړه.

پروفیسور امین وویل: په اوسنیو شرایطو کې چې د افغانستان مساله په یوه حاده مرحله کې واقع ده او د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې کارونو ته زیاته اړتیا لیدل کېږي، خو له بده مرغه چې زموږ ځینې پروژې په روان کال کې د بودیجې د نه موجودیت له امله ودرېدې او څه چې لرو، پر هغو مو د ټولنې ټول کاروبار روان کړی دی.

د اخبار لپاره سږ کال تراوسه له موږ سره چا مرسته نه ده کړې، خو موږ اخبار نه دی ودرولی او د پخوا په شان په میاشت کې دوه ځله چاپېږي، ده زیاته کړه: د ټولنې د رهبری هیئت تاسو ته ځکه دلته د راتلو تکلیف درکړی دی، چې له یوې خوا د موسسې په مشکلاتو خبر شو او له بلې خوا زه د دې ټولنې د مشر په توګه له تاسو ښاغلو مننه وکړم، چې په خپلو قلمي همکاریو، مشورو او هر اړخیزو مرستو مو دا موسسه تراوسه ژوندۍ ساتلې ده. زه له تاسې څخه د مننې په ترڅ کې د وفا له غړو او د ټولنې د پخواني رهبري هیئت څخه مننه کوم، چې زما د یو نیم کلن قیادت په دوران کې یې دا موسسه وچلوله او څه چې یې په وس پوره و، هغه یې له افغانانو ونه سپمول، د

تحدید، تخویف او د مرګ د اخطارونو ترڅنګه یې خپله دنده پرېښــودله په مېړانه او هســـکه غاړه د خپلو خلکو ترڅنګ ودرېدل. اوس چې زه د خپلو ځینو روغتیایي معاذیرو له امله په عارضي ډول له تاسو او له دې ټولنې بېلېږم، د ټولنې د کارونو د پرمختګ لپاره یوې ډلې ته واک سپارم، چې زما تر راتګه به دا واک له دوی ســـره وي او د ټولنې لپاره به د مرســـتو جلبولو ترڅنګ، خپل روان کارونه پرمخ بیایي:

۱– د رهبرۍ ډله: دوکتور محمد رحیم پښـــتونیار د موقتي مشـــر په توګه، پوهاند دوکتور ودېر ســـاپی او ښـــاغلی ســـید محمد میوند د غړو په توګه، ســـرمحقق زلمی هېوادمل د رهبرۍ هیئت د غړي او د ټولنې د ټولو علمي پروژو او د وفا اخبار د علمي او تخنیکي چلوونکي په توګه.

۲– د مشـــاورانو ډله: د ټولنې د رهبرۍ هیئت لپاره د مشـــاورانو یوه ډله هم ټاکل شـــوې ده، چې په هغو کې مېرمن نینســـي دوپري، اوتریشـــي ډاکتره پېغله ایولن او– شامل دي.

# هغه څوک چې ځانونه په افغانستان کې مشران ګني، دوی افغانانو نه دي ټاکلي، بلکې نورو پر افغانانو تحمیل کړي دي

د (۱۹۹۷م) کال د مارچ د میاشتې پر څلورویشتمه نېټه د مازیګر پر څلورنیمو بجو د صوبه سرحد ګورنر ریټایرډ جنرل محمد عارف بنګښ د افغانانو په هغه غونډه کې ګډون وکړ، چې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې د کنفرانسونو په تالار کې جوړه شوې وه. په دې غونډه کې منورو افغانانو، لیکوالو، شاعرانو (چې ښځې لیکوالې او شاعرانې هم په کې شاملې وې) د افغانستان د تفاهم او ملي یووالي شورا د مشرۍ هیئت، قومي مشرانو او پخواني قومندانانو او د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې د رهبرۍ هیئت او غړو په کې ګډون کړی وو.

له ګورنر جنرل بنګښ سره صوبه سرحد چیف سکرتر ښاغلی رستم شاه مومند، د صوبه سرحد هوم سکرتر د افغان مهاجرینو کمېشنر او ځیني نور موظفین هم راغلي وو.

د غونډې په پیل کې مې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې د مشر په توګه راغلو مېلمنو ته ښه راغلاست ووایه او خپله وینا مې داسې پیل کړه:

ما دمخه هم د صوبه سرحد له ښاغلي ګورنر سره لیدلي و او دا مې هیله وه چې دی په پېښور کې د مېشتو افغانانو د اقشارو له نمایندګانو سره وګوري او

**د افغانستان پر مسله ورسره خبرې وکړي. ښاغلي ګورنر زمونږ دا غوښتنه ومنله او دا دی نن یې د افغانانو د مشرانو، لیکوالو، شاعرانو، منورینو او د ځینو نورو فرهنګي او سیاسي موسسو د مشرانو او منصوبینو په غونډه کې برخه اخیستې ده.**

**تاسې ته معلومه ده چې افغانستان د اسیا په زړه کې یو داسې هېواد دی چې ستراتیژیک موقعیت د خلکو اجتماعي او رواني جوړښت یې هر چاته ښکاره دی. ددې هېواد موقعیت داسې دی، چې هېڅ بېګانه قوت پرې قبضه نه شي کولای او که څوک دا هوش وکړي، نتیجه یې هغه څه راوځي چې د پېړیو په اوږدو کې د غاصبانو او متجاوزو لښکرو له تجاوزه راوتلې ده او د خلکو رواني خصوصیات یې دادي، چې دا خلک لاسپوڅی حکومت نه مني. په داخل او خارج کې مېشت افغانان حکومتونه په دریو کټګوریو وېشي:**

**۱– دوست حکومتونه**

**۲– مخالف حکومتونه**

**۳– لاسپوڅي حکومتونه**

**په افغانستان کې د یو داسې حکومت منځته راتګ چې هغه له ګاونډیانو سره په مخالفت کې وي، هغه نه د افغانانو په ګټه دی او نه افغانان د مخالفت توان لري او نه یې غواړي.**

**دغه راز لاسپوڅی حکومت افغانان په هېڅ صورت نه مني، ځکه چې داسې حکومتونه نه خپلو خلکو ته څه ورکولای شي او نه په افغانستان کې سوله او ثبات ټینګولای شي، افغانان یو دوست حکومت غواړي، داسې حکومت چې هغه د بین المللي نورمونو پر اساس د ګاونډیانو او د نړۍ له دولتونو سره**

روابط ټینګ کړي، له ګاونډیانو سره دوستي او ورورولي ولري، خو د ډېرې خواشینۍ خبره ده، چې زموږ ګاونډیان د دوست حکومت په مفهوم ځان نه پوه کوي، د دوست او لاسپوڅي ترمنځ توپیر نه کوي.

همدا علت دی چې دوی خپلې روزلې ډلې افغانستان ته لېږي او د دوی په اصطلاح غواړي د دوی په وسیله حکومت جوړ کړي، چې دا به ګواکې یو دوست حکومت وي، حال دا چې دا خلک د افغانستان خلک پېژني، د دوی ماهیت او صلاحیتونه ورمعلوم دي او په دې پوهېږي چې دوی دوست حکومت نه شي جوړولای.

پاکستان له افغانانو سره په دې اتلسو کلونو کې ډېرې مرستې وکړې، پناه یې ورته ورکړه او د همدې انساني مرستو له امله افغانانو وکولای شول، چې د مقاومت صفونه پیاوړي کړي او د نړۍ یو ستر قدرت ته ماتې ورکړي، خو د افغانانو ګیله دا ده چې د جهاد او مقاومت له بریالیتوب وروسته افغانان خپل اختیار ته پرېنښودل شول، چې د خپلو منلو عنعنو له مخې خپل مشر او خپل سرنوشت وټاکي. موږ له تاسو هیله لرو، چې د افغانانو دا اواز پاکستاني مشرانو ته ورسوئ او افغانانو سره دوی ته د دوی د مشروع حق ورکولو کې مرسته وکړي. اوس زه نوبت نورو افغانانو ته ورکوم، چې دوی خپلې خبرې وکړي.

# افغانها باید بجای مسایل گروهی و منطقه یی در باره افغان و افغانستان باندیشند

دا وینا د (وفا) جریدې په (۱–٤) مه گڼه کې د (۱۳۷٦ل) کال د سلواغلې میاشتې پر (۱۱)مه نېټه خپره شوې ده.

د ایران د اصفهان په کنفرانس کې د پوهاند رسول امین وینا:

بسم الرحمن الرحیم

مجاهدین بزرگ، برادران عزیز!

از همه اولتر بحضور برادرم کوشکی صاحب به عرض میرسانم: جلسه راکه شما در باره اعاده صلح در افغانستان دایر فرموده اید، قابل تحسین و ستایش فراوانی بوده. درست زمانی دایر شده است که مسله افغانستان و ضعیت غیر عادی را به خود اختیار نموده است. همینسان از کشور همسایه ما - ایران– که در تدویر این سیمینار دست پیشی نموده - اظهار سپاس قلبی میدارم.

طوریکه از گفته های مجاهدین بزرگ و علمای کرام اشکار گردید، نه تنها مجاهدین، بل همه افغانها تشنه صلح و خواهان هر چه زود تر، تامین صلح سراسری در کشور شان استند. این که چرا در کشور جنگ زده ما صلح تامین نمیشود عوامل گوناگون مانع برقراری صلح می گردند و من نمی خواهم در این کوتا گفتار به همه این عوامل پیچیده اشاره کنم. همانسان که

**جناب ایت الله محسنی در بیانیه شان به ان اشاره کرده اند، مجاهدین و سران آن از دوران جهاد گرفته تا هم اکنون به سهوه شان و به خطاهای شان اعتراف نمیکنند. اما مردم دیگر اگر جلسه را دایر مینمایند به ارزیابی آن می پردازند، پهلوی های خوب و کاستی های آن را نشان میدهم، ولی ملت ما که جهاد حماسه سازی را براه انداخت ابر قدرتی را به زانو در اورد و جهاد را جانبازانه به پیروزی رساند، متاسفانه کسی به ارزیابی این جهاد قهرمانانه نه پرداخت و تا امروز ارزیابی درست نشد. ولی بالمقابل بدگوی ها و دشنامهای زیاد رد و بدل گردیده اند، کتاب ها و برگ های رسانه های گروهی مملو از این گونه ناسازاگفن ها است. درست به یاد دارم در سال ۱۹۸۰م در دنمارک سیمینار فرامون مسله افغانستان - که تازه مورد تجاوز قیشون سرخ قرار گرفته بود– دایر شد. در این گردهمایی متخصصان افغانستان و مسایل افغانی از چهار گوشه جهان حضور به هم رسانیده بودند و من هم در این سیمینار اشتراک داشتم. اشتراک کننده گان خارجی سیمینار همه باورمند بودند که از افغانستان باید دست بشویم، این کشور جز خاک شوروی گشت، چون انها از روان مردم ما، از ساختار اجتماعی کشور و ارزش های ملی و عنعنه یی مردم ما آگاهی کافی نداشتند، با تجاوز یک ابر قدرت به یک کشور کوچک این مسله را مسلم میپنداشتند که افغانستان دیگر هویت و حیثیت اش را از دست داد و حتی تصور آن را کرده نمیتوانستند که یک مملکت فقیر با یک ابر قدرت و نیروهای آن مقاومت خواهد کرد. اما من با باور کامل در همان کنفرانس اظهار داشتم که این جنگ تنها جنگ بین افغانها و شوروی ها نیست، بل این جنگ، جنگیست بین دو ساختمان اجتماعی و دو اندیشه افغانی و کمونیستی. من در گفته های خود افزودم– انچه را به حیث یک شاگرد جامعه افغانی از مردم خود از روان شان**

و خواسته های شان اموخته ام - به شما به عرض میرسانم و آن اینکه: مردم ما مسلمان استند، اسلام و ارزشهای اسلامی در رگ و پوست شان جا گرفته، اساسات این دین مقدس با ارزشهای ملی و عنعنی شان چنان امیزش یافته است که در بسی موارد ارزشهای عنعنه یی را از رهنمود های اسلامی تمیز کرده نمیتوانند. افغانها که به خداوند واحد عقیده دارند، کمونیزم او اندیشه های کمونیستی را بنام ائین الحادی میشناسند و هرگز آن را نمیپذیرند، از سوی دیگر ویژه گیهای روانی و ساختار آن ها با دیکتاتوری استبداد سلطه بیگانه گان سازگاری نشان نمیدهد. انانکه از ساختار روانی و اجتماعی افغانها آگاهی دارند، میفهمند که افغانها دیکتاتوری خانواده ها، ملک روستا، خان منطقه و رهبر را نمیپذیرند، حکمران که به زور سر نیزه بر انها حکومت میکنند، در باره اش قیام میکنند. تاریخ افغانستان گواه است، اگر شهزاده بی زور شمشیر خود را بر مردم افغانستان تحمیل نموده، خیزشهای در برابر او سر بالا کرده اند.

نکته دیگری که با روان و ارزشهای ملی افغانها بسته گی دارد این است که افغانها از سلطه بیگانه و دست نشاندگان اجنبی نفرت دارند.

برادران عزیز!

ایا ما این موضوع را به بررسی گرفته ایم که چرا ملت ما علیه سلطه تره کی، امین و کارمل– که یکی شان روس نبودند– به پا خاستند و خیزشهای سرتاسری را در سراسر کشور قوام دادند. ملت ما به خاطری تره کی، امین، ببرک و نجیب را نپذیرفتند، که انها یک ساختار حکومتی بیگانه، سلطه بیگانه گان و یک ایدیولوژی بیگانه را به ملت ما تحمیل میکردند.

با دریغ باید یاداوری کرک که وضع سیاسی در کشور ما طوری تکامل نمود که با شرایط کشور ما سازکار نبود، سیاستی که بار نخست چهره افروخت بازیگران آن چپیها بودند، چپیهایی که نه به خدا(ج) عقیده داشتند و نه به ارزشهای ملی و عنعنی و نوامیس ملی به ارزشی قایل بودند و باورمند بودند که ایدیولوژی کارگری یگانه ره گشاییست که سراسر جهان را تسخیر میکند و سیاه بختان جهان را از بد روزی نجات میدهد.

در همان دورانی که استبداد کمونستی در کشور ما بیداد میکرد در جبهه مقاومت نیز احزابی عرض وجود نمودند و پرچم مبارزه را علیه بیدادگران کمونست و حامیان خارجی شان و نیروهای متجاوز بلند کردند، اما به صراحت باید گفت که در این احزاب نیز حزبی عرض وجود نکرد که اندیشه ها و کارکردهایش از ویژه گیهای اجتماعی افغانها و ارزشهای ملی مردم آن مایه گرفته باشد.

احزاب و گروههای کمونیستی، سران قومی و روحانیون را به نام فیودالان و کهنه پرستان؛ درسخوانده گان و منورین را به نامهای مرجعین و غربزده گان و ملیگراها را به نام تنگنظران و کوتاه اندیشان میکوبیدند. کوتاه این که میگفتند کسی با ما است از ماست و اگر کسی با ما نیست دشمن ماست و جنگی را به نام طبقه و ایدیولوژی علیه همه یی مردم افغانستان به راه انداختند.

افغانها ارزو داشتند که روشهای به گزینش گرفته مجاهدین و برخوردهای انان با مردم افغانستان باید عکس روش گزیده کمونستها باش، اما متاسفانه در عمل دیده شد که مجاهدین نیز سیاستهای شان را چنان عیار کردند که عملگرد شان در بسی جهات با روشهای کمونستها همسویی نشان میداد.

افغانها مجبور بودند و از این مجبوریت انها کشورهای کمک دهنده سودهای فراوان برداشتند و این روش کمک دهنده گان ویا حمایتگران روشن ساخت که هیچ کشوری بالای گروهی یا گروههای عندالله و عندالرسول سرمایه گذاری نمیکند، بل چیزی راکه میدهند استفاده دو چند از ان را توقع دارند. انچه در این ارتباط در این جا ایران– و ان جا - پاکستان– رخداده است عیان به همه گان ا ست و نیاز به بیان بیشتر ندارد، ما از دور و برون نگاه میکردیم و شما از درون گواه این همه رخدادها بودید.

خوب به یاد دارم چند سال پیش در ان زمان نجیب الله در کابل حاکم بود– کنفرانس بزرگ از علمای اسلامی در اسلام اباد دایر شد و اموضوع ان این بود که چگونه حکومت اسلامی در افغانستان به وجود بیایید؛ ویژه گیهای ان چه خواهد بود؟ من در همان روز نقشه پاکستان را روی دیوار گذاشتم و به دوستان گفتم: محمد بن قاسم تا این منطقه سند– غرض پخش و نشر دین مقدس اسلام– امده بود. شمار لشکریان و تجهیزات جنگی اش را برشمردم و افزودم: محمد بن قاسم تنها تا همین محدوده رسید، در مطباقی هندوستان پخش و نشر اسلام از سوی افغانها صورت پذیرفته است. از دوران سلطان بزرگ غزنه گرفته تا دوران احمدشاه ابدالی در مدت حدود بیش از هشت صد سال افغانها برای نشر و پخش دین اسلام در سرزمین پهناور هند روی اوردند، هزاران کشته و زخمی دادند تبلیغ تلقین و کار خسته گی ناپذیر صوفیایی افغان بود که دین اسلام در سراسر شعبه قاره هند پخش شد. افزون بر آن ما شخصیت های اداری به هند داده ایم. نیاکان مسلمانان امروزی هند و پاکستان و بنگله دیش از سوی افغانها مسلمان شده اند. انانکه نیاکان شان را افغانها مسلمان کرده اند امروز حق خواهند داشت با ما اسلام باموزانند نمونه های حکومت اسلامی را با ما توصیه نمایند؟ همه افغانها بخاطر دارند

زمانی‌که ۷٤ گروه و حزب در پشـــاور پدید امدند. حکومت انجای همه را منســـوخ نمود و تنها به هفت حزب و تنظیم اجازه فعالیت داد. من در آن زمان باکسی گفتم چرا هفت؟ چرا به بیســت حزب اجازه داده نمیشـود و یا اگر میخواهندکه زعامت واحدی را برای حل قضـــایای افغانســـتان به وجود اورند، چرا به هفت تنظیم و حزب اجازه داده شـــد، بایســـتی با یک حزب اجازه فعالیت میداد و زعامت واحد واقعی ســـیاســـی به وجود میامد، تا همه امور سیاسی، اجتماعی و اقتصادی جهاد و اواره‌گان را سامان می بخشید. همســـان با پاکســـتان در جمهوری اســـلامی ایران نیز گروههای متعددی به وجود امدند و مســـله به میان امدن زعامت واحد و طرف قبول مردم افغانستان را به دشواری مواجه ساخت. اگر با سوابق موضوع بسیار نیپچیم مختصـــر باید عرض‌کنم‌که اگر‌کشـــورهای همجوار ما در دوران جهاد با ما کمک‌کردند، خرابی های را نیز در افغانستان وجود اورده اندکه متاسفانه تا هنوز ادامه دارد. در این بخش مثالی میاورم، زمانی در ســـال ۱۹۹٤م در کویته مجلس مشـوطی افغانها به سـرپرسـتی هیئت ویژه ملل متحد دایر شـد، روزی مســـله مداخله های خارجی مورد بحث قرارگرفت، یکی از اشـــتراک کننده‌گان گفت: پاکســـتان مداخله میکنند. حامیان و طرفداران پاکســـتان بر اشـفته شـده اند و به دفاع از پاکستان زبان‌گشـوده گفتند: کشـورکه سالهای سال با ما جای داد، نان داد، آب داد و ازما حمایت نمود، چگونه میتوان آن را مداخله‌گر نامید؟ دیگری‌گفت: ایران مداخله میکند. طرفداران ایران نیز به تردید آن پرداختند و دیگران را ملامت مینمودند، که ایران‌کشـور اسلامی و برادر ما اســـت، هیچگاه در امورکشـــور ما مداخله نمیکند. من در آن مجلس به شـوخی گفتم، کشـور مداخله‌گر را من میشـناســم، آنها گفتندکدام کشـور استند؟ در جواب شـان‌گفتم: موزنبق در افریقا. به سـراحت و پوسـت

کنده باید بگویم که در امور کشور ما پاکستان، ایران، هند، عربستان سعودی، تاجکستان، ازبکستان، روسیه و امریکا مداخله میکنند از هر چمن سمتی. اگر به کشوری گفته شود که مداخله نکن! فوراً جواب دریافت میداری: برادر ما که مداخله میکنم آن کشور دیگری مداخله مینماید. موضوعات دیگری را که بایستی در اینجا با عزیزان خود در میان گذارم، یکی مسله موقعیت ستراتیژیک افغانستان و دیگری واقعیتهای ساختاری مردم آن است. افغانستان موقعیت جغرافی و ستراتیژیک حساس و ویژه دارد و افغانستان همیش قربانی همین موقعیت اش گردیده است و به حیث شاهراه فاتحین در درازنای تاریخ همین موقعیت ویژه مردم ما را به دشواری های فراوان رو به رو ساخته، روحیه جنگجوی و سلاح شوری را در انان پرورش داده است.

مسله دومی ساختار اجتماعی این کشور است که اقوام گوناگون با هم برادر در آن زنده گی میکند و به شکل مجموعی ملت ما را بوجود اورده است. کمونستها داد از کارگران سراسر جهان میزدند و به انترناسیونالیزم کارگری باور داشتند اما ما دیدم که زیر تاثیر واقعیتهای ساختاری جامعه افغانی خلقی ها کتله بزرگی از پشتون ها را دور خود گرد اوردند، پرچمی ها در بین شهر نشینان و شعله یی ها در اقلیت ها و ستمی ها در تاجکان نفوذ کردند. همینسان در گروهها و تنظیمی های جهادی نیز واقعیت همینگونه است. در تنظیم های کی رهبری آن را برادران هزاره بدوش دارند، پشتون و تاجک به ندرت یافت میشود و تنظیم های که در مناطق پشتو زبان و تاجک نیشین نفوذ دارند، در بین آن ها شماری افراد مربوط به اقوام دیگری اندک است. اینگونه ساختار اجتماعی واقعیت است و آن را باید پذیرفت، اما به شرط که هویت ملی کشور ما و وحدت ملی مردم ما را خدشه دار نسازد. ما کشوری

داریم بنام افغانستان. هیچ ((ستان)) دیگری مانند: پشتونستان، تاجکستان، ازبکستان، بلوچستان، هزارستان... در وجود واحد آن نمیگنجد.

من به حیث یک شاگرد جامعه خود این موضوع را درک کرده ام که پس از اغاز بحران درکشور ما مسله افغانستان راکسی بر اساس منافع افغانستان و افغان مطرح نکرده است، اگر چپیها بودند با ایدیولوژی خود میپیچند و گروههای تنظیمی نیز در طرح مسایل از حوزه کوچک شان با فرارتر نمیگذارند. اگر ما واقعاً خواهان حل مسایل کشور خود استم بایستی از حلقه های کوچک خود برایم و به حیث یک افغان در باره مسایل افغانستان بپیچیم.

در این جا یکی از دوستان فرمودند، که فدرالیزم میتواند ره گشای مردم ما باشد.

نمیدانم این معمول پسندیده است یا نی، که شماری از نویسنده گان یا خودشان بر کتاب خود مقدمه مینویسند و یا این که از قلم به دستان و فرهنگیان نامور دیگر برای اثار شان– رساله، کتابواره و کتاب– نبشته یی میگیرند و زیر نامهای مقدمه و دیباچه در اغازین برگهای اثر شان میگنجانند.

در مقدمه ها، اکثر خود نویسنده درباره نبشته خود سخن میگوید و گاهی هم به لاف زنی میپردازد و از یکی دو درست خود ابراز سپاس مینماید.

نویسنده پخته و کار اگاه نیز زمانی با چنین معضله یی رو به رو میشود و مجبور باشد تا نبشته یی را مقدمه گونه تهیه کند. نخست از همه درباره نویسنده اثر فکر میکند و با خود میسنجد، که ایا نویسنده به توصیفهایش خوش میشود و یا به ارزشیابی علمی اثرش؟

اگر نویسنده اثرب به توصیب خودش شادمان میگردد در ان صورت نویسنده ماهر و پخته‌کار به جای کتاب درباره شخصیت، شرافت، صداقت، خدمت، علمیت، زحمت، اهلیت، ذکاوت و فراست او تاحدی به توصیفها میپردازد که حتی در دریف (ت) هیچ واژه توصیفی را فرو گذاشت نمیدارد.

نویسنده، که خود را در نبشته یک نویسنده دیگر توصیف باران مییابد بیچاره در لباسش نمیگنجد و در تمام عمرش اسمان را به دو پایش ایستاده نگاه میکند و خودش را محور علم و عرفان تصور مینماید و با همه‌گان در میدان دانش به پهلوانی میاغازد و همدرین غلط فهمی چشم از جهان میبندد.

اما نویسنده‌گانی که باورمند به انکشاف و ژرفایی علوم اسند، اگر کسی ایشان را اندک توصیف میکنند با این توصیف - از سوی دیگران– انها پیش از همه متوجه خود میشوند و به ارزیابی خودشان و اثار شان میپردازند و زودتر به این واقعیت پی برده میتوانند که گستره دانش نهایت وسیع و عمیق است و انان در برابر این بحر بی پایان به قطره یی نیز نمیمانند و بنا به گفته یی:

((انان که خبر شد خبرش باز نیامده))من تا هم اکنون نه بر رساله و کتاب خود مقدمه یی نوشته ام و نه از دیگران خواهش کرده ام که به کتابم مقدمه بنویسند و نه هم خودم بر اثار دیگران دیباچه یی نوشته ام و در این بخش به فضل خداوند(ج) باز سفیدم.

با نگارش این مقدمه شاید شماری از خواننده‌گان بپرسند که: چرا خلاف موقفت این مقدمه رانوشته ای؟

به منظور ارائه پاسخ به چنین پرسشهای احتمالی ناگزیرم پرده از رازی بردارم–که باعث نگارش این مقدمه شده است– و همینسان در همین مقدمه عواملی را نشان بدهم که مرا از نگارش مقدمه ها باز میدارد.

نخست در باره نه نوشتن دیباچه ها بر اثار دیگران:

کړی دی، نو اوس د دغه منشـــور یوه زیاته برخه زړه شــوې ده او نور له موجوده وضـعې سـره تطابق نه لري، نوې وضـعه نوي اهداف رامنځته کوي، څو چې د افغانســتان او حتا به پراخه پیمانه په سـیمه کې د سـترو مسـلو او جریاناتو لپاره نوی تفکر ترسـره شـي. همدا اسـاسـي وجه ده چې وفا باید په نوي نوم یانې د افغانسـتان د مطالعاتو د مرکز په نامه ونومول شـي، څو چې د افغاني ټولنې د راتلونکو کلونو د نویو غوښـتنو او تقاضـو سـره سـمون ولري. اجازه راکړئ چې د افغانستان د مطالعاتو مرکز اساسي استقامتونو او دندو په اړوند په لنډه توګه څو کلیمې عرض کړم.

اساسي هدف دا دی چې یو داسې مطالعاتي او د ریفرنس مرکز جوړ شي، چې په هغه کې افغاني اکاډمیسنان، سکالران، ماهران او متخصصان د یو ګډ فلاټ فورم ګډې اجنډا لاندې راغونډ شــي، څو چې د ســولې د ویجاړو ټولنیزو، اقتصــادي، فرهنګي او سـیاسـي موسـسـو او بنیادونو د بیا جوړونې د واقعي دموکراتیک سـیسـتم لپاره - چې په افغاني عنعناتو او دودونو ولاړ وي–کار وکړي. د افغان د مطالعاتي مرکز ( ا.م.م) نور ستر استقامتونه دا دي:

- د مختلفو پرمختیایي ســاحو او د اکاډمیکو او فرهنګي فعالیتونو د تبادلې لپاره د ټریننګ د تازه اسانتیا رامنځته کول.
- د خپل هېواد او نورې نړۍ د پرمختیاوو په هکله ځوان نسـل اګاهي او خبرتیا.
- د افغانسـتان په اړوند د ملي او نړیوالو سـیمینارونو، کنفرانسـونو او نورو غونډو انعقاد.
- د افغاني ټولنې د بېلابېلو اړخونو په اړوند د ریســرچ دکار ســرته رسول.

- په یو مشـــورتي چوکاټ کې له راتلونکو ضـــرورتونو ســـره ســـم، پرمختیـــایي پروګرامونو لپـاره پـه بېلابېلو برخو کې، د کومـک ورکوونکو فعالیت.

ډېر محترم وزیر اعلی، خویندو او وروڼو!

تاســو ټول له هغو ډراماتیکو بدلونونو څخه خبر یاســت، چې له ســاړه جنګ څخه رامنځته شــوي دي. دا بدلونونه د مرکزي اســیا او هغو ســره د جوختو پرتو هېوادونو لپاره پرته له شکه دورنمایي عواقب لري. دا بدلونونه د نړۍ د دې برخې او همدغه شـــان د نورو ســـیمو د ســـکالرانو او پوهانو لپاره نوې تقاضاوې او غوښتنې رامنځته کوي.

لومړنۍ مسـله چې ورسـره مخامخ یو، هغه دا ده چې زموږ د هېوادونو واقعي ستونزې څه دي؟ هغه به څنګه په هوښیارۍ سره په کومو لارو او طریقو سره حل شـي؟ کله به د منځنۍ اسیا ولسـونه او نور د خپلو هېوادونو پرابلمونه او مسـلې حل کړای شي؟ تر دې وروسـته به موږ د دې توان ولرو، چې د هغو د حل لپاره ســـم فارمول ومومو. د دې مقصـــد او هدف لپاره د ســـیمې روښـانفکران باید په سـمه لاره خپل د پوهې طاقت په کار واچوي. دا اوس د سکالرانو مسولیت دی، چې په دې پوه شي چې زموږ منفرد کار، ځانګړې او ګډې ســتونزې کومې دي او څنګه کېدلای شـــي چې د دې ســتونزو د حل له لارې زموږ ملتونه راغونډ کړای شـــي، هغه قومونه چې لا تراوســـه هم په انفرادي ډول د خپلو ملي هدفونو لپاره د نورو ملي ګټې تر پښو لاندې کوي. په اوســـني دوران کې ایډیالوژیکي، فرهنګ یاو مذهبي قیودات زاړه او وخت پرې تېر شـوی دی او موږ باید دې پوهې ته چمتو شـو چې نن څه پېښـېږي او ســـبا ورځ بـه څـه عواقب او حـالات رامنځتـه کېږي؟ موږ پـه ډېره چټکـه

بدلېدونکې نړۍ کې ژوندکوو او د مداخلې، ډامپنشن، محکومیت، دیکتاتوري، تبعیض، تفنن او استعمار وخت اوس تېر شوی دی. اوس د هر هېواد خلک تر پخوا څخه زیات د خپل هېواد د سرنوشت د ټاکنې د حق په اړوند فکر مند دي. د بېلابېلو هېوادونو خلک له خپلو ګاونډیانو سره نېک او دوستانه اړیکي غواړي، نه دا چې د تظاهر او د چل او فریب اړیکي وي. دا زموږ د پوهانو لپاره یو تحرک دی چې د ګډو ګټو او ښه والي لپاره خپلې جوړونکې هلې ځلې په کار واچوي. دغه جوړونکې هلې ځلې باید زموږ د ټولنو د اصلي اړتیاوو او ټولنیزو سایکالوژۍ سره سمون ولري. ریفورمونه او بدلونونه هر ځای او په ځانګړي ډول زموږ په سیمه کې د پاملرنې وړ دي او د دې لپاره د ټولو هغوکسانو مرسته ضروري ده، څوک چې د سولې، همکارۍ، ترقۍ، سوکالۍ او د ګاونډیانو سره د دوستانه اړیکو مفکورې ته قایل دي.

د مرکزي اسیا د ټولو هېوادونو او نورو لپاره زیات امکانات اوس رامنځته شوي دي. په تېره بیا د سوداګرۍ، ټکنالوژۍ، ښوونې او روزنې او فرهنګ په ډګرونو کې. زه فکرکوم چې د راتلونکې همکارۍ محتوا باید د سولې، دوستانه اړیکو د ټینګښت او د خلکو د ژوند د معیار د پورته کولو پر اساس ولاړه وي. هغه نکات چې په راتلونکي وخت کې به د افغانستان د مطالعاتو مرکز خپل فعالیت وربانديې متمرکز کړي، دا دي:

الف: د سیمې د هېوادونو، د ځمکني تمامیت او ملي حاکمیت پوره احترام.

ب: د مرکزي اسیا د هېوادونو ترمنځ د فرهنګي، ټولنیزو، اقتصادي، تجارتي، تعلیمي او ټکنالوژي همکاریو پراختیا.

ج– همکاري او د یو بل په کورنیو چارو کې عدم مداخله.

**د– په یو بل باندې د سیاسي او سیاسي سیستم عدم تحمیل او..**

**هـ: مذهبي، ایډیالوژیکي او فرهنګي عدم تحمیل.**

**دا به پرځای وي چې د دې یادونه وکړم، چې ګاونډي مســـلمان هېوادونه دا دنده او مکلفیت لري، چې په صـادقانه توګه له افغانانو سـره د دوی په جنګ ځپلي هېوادکې د امنیت او سـولې په راوسـتلوکې بې دریغه مرسـته وکړي. په افغانستانکې باید سـولې ته ارجحیت ورکړل شي، د پاکسـتان او ایران خلک باید په افغانستانکې د سـولې د قوام او ټینګښـت لپاره راپورته شـي، لکه چې د بهرني اشغال پر ضـد زموږ په جهادکې دغه‌کار تر سره‌کړی دی. نو په دې توګه به یو سـوله ییز او دوسـت افغانسـتان په واقعي ډول خپلې سـرحدي پولې د ټولو سره د همکارۍ او دوستانه اړیکو لپاره خلاصې‌کړي. د افغانستان د مطالعاتو د مرکز د انعقاد په مناسبت په دې غونډه‌کې سـتاسـو له ګډون څخه د زړه له‌کومې مننه‌کوم.**

# طالبان باید برای تدویر لویه جرگه و تشکیل حکومت ملی ابتکاری از خود نشان بدهند

دا وینا د (ازاد افغانســـتان) جریدې په (٦) گڼه کې د (۱۳۷۷ل) کال د وږي پر میاشت خپره شوې ده.

جریده ازاد افغانستان به منظور ارزشیابی رخداد های که در یکی دو ماه اخر در افغانستان بوقوع پیوستند و همینسان تحلیل وضع سیاسی، نظامی کشور در شرایط کنونی، بشماری از شخصیت های سیاسی، اجتماعی افغانستان دعوت داد، تا در این زمینه ها نظر شان را ابراز نمایند.

در گروه دعوت شـده: پروفیسـور عبدالرسـول امین، رئیس مرکز مطالعات افغانستان نیز شرکت کرده بودند.

پروفیسور عبدالرسول امین:

مساله افغانستان را در این برهه زمان ما میتوانیم به دو بخش از هم جدا کنیم، یکی بخش نظامی و دیگری هم بخش سـیاسـی. چنانکه به همه ما و شـما اشـکار اسـت پیش از ظهور طالبان در دوران سـلطه تنظیم ها در هر ده و روسـتا، در هر کوچه و بازار و در علاقه داری، ولسـوالی بلاخره در همه اطراف و اکناف کشـور هزاره ها مرجع قدرت وجود داشـت و به اصـطلاح قومندان سالاری، تفنگدار سالاری بر تمام کشور حکم میرند.

تحریک طالبان برای از بین بردن این همه مراجع قدرت و اعمال نفوذ و مرکزیت بخشـیدن به افغانسـتان، کارهای انجام داد و به سـر رسـاندن این معمول جز از گزینش نظامی چاره دیگری نداشـت. همه ما و شـما آگاهی

داریم که ملل متحد، چندین بار برای حل سیاسی قضایای افغانستان طرح ها و برنامه های را به پیش کشید. اما این همه طرح ها و برنامه ها عملی نشدند و ضد راه عملی شدن آن انانی بودند که قدرت دولتی در اختیار شان بود و به حل نظامی قضیه باورمند بودند. به بیان دیگر انانکه به جنگ و ستیزه جویی باور دارند انها جنگ را یگانه وسیله حل قضایا میدانند و زبان دپلوماسی و حل سیاسی قضایا را نمیدانند. همانسانکه دوکتور بورگی در سخنان شان به آن اشاره کرد، ظهور طالبان عکس العمل بود، در برابر اعمال ناشایسته، اداره تنظیم ها، اکثریت افغانها در بخش نظامی کارکردهای اداره طالبان را تائید میدارند، و میگویند اگر طالبان در این شرایط مواجه به شکست شوند افغانستان دچار خانه جنگی مدهشی خواهد گردید. و اما در بخش سیاسی بایستی با توجه و دقت ویژه مسله را ارزشیابی قرارداد. همه افغانها اگاهی دارند که طالبان در اغازین روزهای ظهور شان میگفتند که ما مامور تامین امنیت، گرداوری سلاح ها و باز نمودن راهها و شهراه ها و دفع شر و فساد استیم و پس از ختم ماموریت ما دوباره به مدرسه ها میرویم. اما طوریکه در عمل دیده شد، پس از پیشرفتها و زیر تسلط اوردن شهر ها طالبان وعده های پیشین شان را فراموش کردند، انها اکنون خود مدعی حکومتداری و حکمرانی استند و دوباره به مدارس نمیروند. اگر شیوه حکومتداری طالبان نیز مانند رژیم های پیشین- متکی به ایدیالوژیها چپ و راست- بر اساس اعتماد بر اعضای حزب استوار باشد و اینان نیز همه کار ها را به طالب بسپارند و از مردم افغانستان و کارمندان دولتی افغانستان کار نگیرند و از صلاحیتهای شان سود نبرند، اینان نیز با مقاومت مردم رو برو میشوند و حتماً روبرو میشوند.

اگر احیاناً فکر شـود که طالبان از نرمش کار خواهند گرفت. در این صـورت پرسش که در ذهن ادمی سربالا میکند این خواهد بود که طالبان شریعت را به حیث سیستم پذیرفته اند، ایا در دایره این سیستم ازادیهای فردی، اجتماعی، سـیاسـی، ازادی بیان، برنامه های رشـد اقتصـادی، اجتماعی و فرهنگی همینسـان برنامه اموزش و پرورش و تحصـیلات عالی دختران و پسـران و جوانان گنجایشـی دارد، ایا به گروههای سـیاسـی و نهاد های اجتماعی - فرهنگی اجازه فعالیت ازاد داده خواهد شد؟ بنا بر آن و دشواریها را به مردم و کشور افغانستان ایجاد نکند و از خاک افغانستان برای اموزش تروریستها کار نگیرند.

پروفیسور امین:

زمانی روسـها بر کشـور ما یورش اوردند و افغانها علیه تجاوز شـوروی ها با مقاومت اغاز کردند، در آن دوران امریکا یگانه سـیاسـت راکه به پیش گرفته بود ضـربه زدن به روسـها واضـمحلال آنان بود. امریکا برای براورده سازی این هدفت گروههای عرب و عجم را با افغانسـتان داخل نمود و امریکا با افغانها تا سـرحدی جنگ به روسـها علاقمندی نشـان داد و به حل سـیاسـی مسـله افغانسـتان تا هم اکنون علاقه نگرفته اسـت و نه کمکی به انان نموده است. همین عدم علاقه مندی امریکا - با مسایل سیاسی افغانستان - بودکه مسـله افغانسـتان در اختیار بنیادگراها قرار گرفت، احزاب و گروههای که در پاکستان و ایران ساخته شده بودند برنامه یکی از آنها از روان مردم و ساختار اجتماعی - فرهنگی مردم افغانستان مایه نمیگرفت به همین اساس اشخاص و افرادی مانند اسامه به افغانستان امدند و جاگزین شدند.

اگر امریکا واقعاً به پهلو های سـیاسـی مسـله افغانسـتان فکر میکرد و در تشـکیل یک حکومت ملی افغانها را یاری میرسـاند، دشـواری های از این ناحیه امروز وجود نمیداشـتند. این که امریکه بیدون نظرداشـت به روحیه و عنعنه افغانها، خاک افغانستان را هدفت موشک های خود قرار دارد، موشک پراگنی راه حل قضـیه نیسـت و افغانها با اینگونه حملات موشـکی عکس العمل نشان میدهند. افغانها حمله و یورش بیگانه را به کشور شان نمیپذیرند ولو این یورش از سوی هر کشوری باشد. افزون از اسامه، ما دیدم که پس از سقوط کمونستها رژیم های که در افغانستان به وجود امدند همه شان افراطی بوند، جنگهای عرب و عجم را به کشـور ما اوردند و به خاطر منافع بیگانه خون هزاران هزار هموطن ما را ریختاند و گروههای جنگی و اجیر شـان را بخاطر جنگ و ادم کشی با اذربایجان و بوسنیا فرستادن. نبود یک سیستم سـالم سـیاسـی اینگونه نا بسـامانیها را به بار میاورد. افراد و بنیادگرای منشا تروریزیم و قاچاق مواد مخدر است. تنها و تنها یک سیستم سالم سیاسی و پایدار میتواند جلو تروریزیم و قاچاق و مواد مخدر را بیگیرد.

پروفیسور امین:

اگر ما مسـله سـیسـتم و یا نظام اینده افغانسـتان را مورد بحث قرار میدهم، پرسش در ذهن ما سربالا میکند که چرا مردم افغانستان خواهان برگشت شاه سـابق استند؟ در پاسخ به این پرسـش بایستی گفته شـود که نظام شـاهی خود حیثیت موسـسـه یی را داشـت، و این موسـسـه بالاتر از مناسـبات حزبی، ایدیولوژیکی و مسایل قومی و زبانی بود. همه ساکنان این کشـور اگر پشتون بودند یا تاجک، ازبک، هزاره، بلوچ و ترکمن خود را افغان میگفتند و افغانسـتان خانه مشـترک شـان بود و در این خانه خودشـان را مصـون حس میکردند. اما بدختانه چپی ها در بین اقوام ساکن درکشور تنشاها و تفرقه ها

ایجاد کردند و تعصبها را دامن زدند. اما تجربه نشان داد که مردم ما طی بیست سال گذشته از خلقیها گرفته تا دوران سکانداران تنظیمان تسلیم انحصار و دیکتاتوری تک حزبی نشدند. پس از کودتای ثور افغانستان با کشورهای همسایه اش روابط نیک و حسنه داشت و مسله مداخله مطرح نبود، حکومت افغانستان در امور داخلی کشورهای دیگر مداخله نمیکرد و به دیگران نیز حق نمیداد که در کشور ما مداخله کنند و در مسایل بین المللی نیز افغانستان سیاستهای مشخص داشت. اگر ما در باره نظام اینده افغانستان می اندیشم به صراحت باید بگویم که در شرایط موجود افغانستان یک حکومت وسیع النظر میتواند بر این همه دشواریها و ناملایمات فایق اید. حکومت وسیع النظر از ساختار داخلی کشور خود اگاهی میداشته باشد و همسایه گان خود را نیز میشناسد و برای رشد اقتصادی، اجتماعی و فرهنگی کشور برنامه همگون با شرایط طرح ریزی کرده میتواند. شماری از همسایه گان ما و کشورهای ذیعلاقه دیگر همواره از حکومت با پایه های وسیع سخن میگویند و اگر این حکومت از سوی چند تنظیم و گروه تشکیل میشود؟ اعضای این حکومت منافع احزاب و گروههای شان را نسبت به منافع افغانستان مرجع میپندارند و نسبت به افغانستان به رهبر گروهش بیشتر وفادار میباشند، تجربه حکومت تنظیمی در افغانستان این حقیقت را به همه ما و شما روشن ساخت. ما باور داریم هر حکومتی که از سوی خارجیان بالای افغانها تحمیل میشود، موقعیت کسب کرده نمیتواند و نه هم صلح سراسری و پایدار در کشور استقرار یافته میتواند. پاکستان، ایران، عربستان و کشورهای غربی باید این واقعیت را درک کنند، نخست اینها باید بین هم جور اینده و با ملل متحد همکاری نمایند تا از مجاری ملل متحد به همکاری افغانها حکومت قابل پذیرش به مردم، در افغانستان تشکیل شود. این

**حکومت منافع ملی خود و دیگران را در نظر خواهد داشت و به همه کشورهای همجوار در شرایط صلح و دوستی به روابط وکارش ادامه خواهد داد.**

# مسله افغانستان در یک مرحله نهایت حساس و جدی قرار دارد

دا وینا د (ازاد افغانستان) جریدې په (۷)مه گنه کې د (۱۳۷۷ل)کال د تلې پر میاشت خپره شوې ده.

چهارم میزان سـال (۱۳۷۷هـــ.ش) مرکز مطالعات افغانستا به شـماری از فرهنگیان افغان دعود داد، تا پیرامون مسایل کشوری و فرهنگی با هم تبادل نظر کنند.

پیش از اغاز نشـــست پروفیسـور عبدالرسـول امین رئیس مرکز مطالعات افغانســتان، فرهنگی نامدار و غزلسـرای چهره دسـت کشـور شـاغلی محمد صدیق پسرلی را به بحیث رئیس مجلس تعین کرد و مجلس زیر ریاست او به کارش اغاز نمود. نخست پروفیسور امین به شاملان نشت خوش امدید گفت و از تمام فرهنگیان که با اخبار مرکز همکاری کرده اند ابراز سـپاس گذاری نمود و پس از آن کوتاه گفتاری پیرامون کتابخانه مرکز داشت.

پروفیسـور امین به فرهنگیان گفت: ارزومندم در سـال روان کتابخانه مرکز را مجهز و غنی بسازم، در قدم اول کتابهای را گرداوری میکنم که از افغانستان بیرون شده اند و در بازار های پشاور و کویته بفروش میرسند و در قدرم دوم کتابهای را گرد میاوریم که به زبان های خارجی در باره افغانســتان نگارش یافته اند. افزون بر ان ما برای ســهولت مراجعین، کتابها نه را با کمپیوتر،

ماشین فوتوکاپي مجهز و فنی میسازم و کتابدار فنی و کارفهم را نیز استخدام خواهیم نمود.

پروفیسور امین در ادامه سخنانش مسایل افغانستان را به بررسی گرفته افزود. مسله افغانستان در یک مرحله نهایتی حساس و جدی قرار دارد. انکشاف وضع سیاسی- نظامی کشور در ارتباط با پیشرفتهای اخری طالبان به تعمق ویژه یی نیاز دارد. از نظر من پیشرفتهای نظامی گروه طالبان قابل تائید است، اما در بخش سیاسی مایه اندیشه و نگرانی، زیرا طالبان پیرامون مسایل سیاسی، اجتماعی، اقتصادی و فرهنگی کشور سیاست روشن ندارند.

پروفیسور امین:

اکنون در کشور ما شرایط جنگی نافذ است، اگر ما این همه مسایل را با طالبان مطرح میسازم انها بهانه تراشی میکنند و میگویند شرایط جنگی است و یا به شنیدن اینگونه سخنان و نظرهای فرصتی ندارم. به نظر من در شرایط کنونی روشنفکران و اهل دانش و فرهنگ بایستی موقف واحدی داشته باشند و در رابطه به کاربرد مفاهیم وحدت ملی نظر پیداکنند، از هرگانه گیها بپرهیزند. مسله دیگری راکه من در رابطه یاد اوری میکنم موضوع احراز کرسی های دولتی است. هر شخص که کرسی را احراز میکند چیزی را بدست خواهد اورد، اما ازادی فکری خود را از دست خواهد داد. من فکر میکنم که دانشمندان، فرهنگیان و روشنفکران به گونه گروه فشارکار نمایند و زمینه ها را برای به میان امدن شرایط بهترکار تحمیل، اموزش و پرورش بازسازی نهادها تدارک ببیند و اگر به کرسی روی بیاورند، کاری مثمر به سود مردم و میهن انجام نخواهند توانست.

**پروفیسور امین: تمام حکومت ها و اداره های‌که پس از کودتای ثور ۱۳۵۷ هــ . ش به میان امده اند نقاب از چهره همه شان را نویسنده‌گان، شاعران و دســت اندرکاران فرهنگ برداشــته اســت، تا این‌که زمینه برای ظهور طالب اماده شد. در شرایط‌کنونی باید مسله افغان و افغانستان در راس همه اندیشه ها و گرایش های ما قرار داشته باشد.**

**پروفیسـور امین: تفرقه ها و تنش های ناشی از برتری جویی قومی، گروهی و زبانی را چپي ها دامن میزنند. ما شـاهد اسـتم‌که چپی ها مبارزه طبقاتی شـان را با مبارزه قومی و نژادی عوض‌کردند و اکنون نیز از مردم ما درسـت بردار نیستند و درکشورهای اروپایی با تفرقه افگنی مصروف استند.**

# روان مردم افغانستان با دکتاتوری، استبداد و سلطه بیگانه گان سازگار نیست

دا وینا د (ازاد افغانستان) جریدې د لومړي کال په (۷) گڼه کې د (۱۳۷۷ل) کال د تلې په میاشت کې خپره شوې ده.

مرکز مطالعات افغانستان مساله اموزش و پرورش جوانان افغان را به روحیه افغانی شامل برنامه کارش ساخته است. با نظرداشت به همین اصل ساعت دو (ی) پس از ظهر روز اول میزان شماری از محصلین پوهنتونهای افغانی و شماری از متعلمین مکاتب افغان در پاشور به مرکز مطالعات افغانستان امده بودند و در کتابخانه مرکز مطالعات افغانستان گفته ها و سخنان پروفیسور عبدالرسول امین رئیس مرکز مطالعات افغانستان را در ارتباط به افغانستان و مسایل امروزین کشور شنیدند.

پروفیسور امین در آغاز گفتارش موقعیت ستراتیژیک افغانستان را به شاگردان توضیح نمود:

تاریخ نویسان و سیاستمداران ناموری که در باره کشورهای اسیای مرکزی صاحب مطالعه و پژوهشهای وسیع استند. افغانستان را باداشتن موقعییت حساس جغرافی و ستراتیژیک آن از مناطق بسیار پُر ارزش اسیای مرکزی وانمود میسازند و این کشور را گذرگاه فاتحان و کشورکشایان، دروازه شبه

قاره هند حلقه اتصال کشورهای منطقه نام داده اند و هم کشور ما را با ظرفی مانند کرده اند که اقوام گوناگون در آن ذوب شده است.

گروههای اتنیکی و اقوامی که به سرزمینهای وسیع شبه قاره هند سر ازیر شده اند، اکثر شان از کشورها وارد شبه قاره گردیده اند.

به شما جوانان خاطر نشان میسازم که مردم ما در بهنای تاریخ قربانی موقعیت ستراتیژیک کشور شان شده اند، جنگها و یورشهای جنگاوران را متجمل گشته اند، نهادهای فرهنگی کهنسال آن زیر نام ستوران فاتحان لگدمال گردیده است و هزاران هزار مصیبت والام دیگر را مردم ما متقبل و متحمل شده اند، اما با وصف این همه همین موقعیت ستراتیژیک افغانستان در درازنای تاریخ مجودیت این کشور را نگهداشته است.

موقعیت حساس و ستراتیژیک افغانستان و روحیه افغانها با هم روابط کسب بایدیری دارند. افغانها روحیه قربانی را از موقعیت ستراتیژیک کشور و ارزشهای عنعنی و تاریخی شان اموخته اند. با نظرداشت به ساختار اجتماعی قومی، اتنیکی و زبانی مردم افغانستان، در نوده های وسیع ملت ها تعصب به انواع و اقسام آن وجود نداشت. مردم با هم روابط، علایق و بستهگیهای فراوانی دارند. تعصبها را عناصر راستگرا و چپ گرا دامن زدند، محض به خاطر طولانی ساختن منطقه شان. اما ما در عمل دیدم که منت ما از این گونه گرایئهای مسمی سخت بیزاراست. چپیها و هم راستیها نتواستند از این حربه کهن استعماری به نفع شان سود برند.

ویژه گیهای روانی و ساختار مردم افغانستان با دکتاتوری، استبداد و سلطه بیگانه گان سازگاری شان نمیدهد.

**انانی که از ســـاختار اجتماعی و روانی افغانها آگاهی دارند به این حقیقت پی برده اند که افغانها دکتاتوری خانواده ها، ملک روســـتا، خان منطقه وهیچ رهبری را نمیپذیرند، حکمرانی که نه روز سـر نیزه بر انها حصـومت میکنند، در برابرش به ما میخیزند. در برابر سـلطه هر دکتاتور خیزشـهای در سـراسـر کشور سر بالا کرده اند.**

**با تاسف فراوان بایستی یاد اور شد که در دو دهه پسین درکشور ما همه یی حکومتها چه چپی و چه راســتی از روحیه مســاوات طلب مردم افغانســتان آگاهی نداشـتند، انها به روز سـریزه خودشـان را بر کشـور و مردم آن تحمیل کردند، شعارها و ایدیولوژي و برنامه های کاری انان از فرهنگ کشور ما مایه نمیگرفت، بل دکته شـده از سـوی دیگران بود. گروههای چپی و راسـتی از چشمه های دیگران سیراب میشدند، بیگاه گان را رفیق و برادر میگفتند، اما بالمقابل افغانها را به توب و تفنگ میبســـتند و یا هم زنده به گور مینمودند وی ا زیر انک میکردند.**

**پروفیســـور امین در پایان گفته های خود موضـــوع را به بحث گذاشـــت و از جوانان خواهش نمود، اگر پرسشی دارند میتوانند طرح بسازند.**

**چند جوان پرســشــهای داشــتند که ما برخی از این پرســشــها را با پاســخهای پروفیسور امین در این جا به گزینش میگیریم:**

**جوانی به نماینده گی از اتحادیه جوانان افغانستان: از این اقدام مرکز مطالعات افغانستان ابراز خوشنودی و سپاس کرد و پس از آن پرسش را اینگونه مطرح ساخت:**

شما در سخنرانی خود در جایی گفتید چپیها و راستیها از روحیه، ساختار و روان مردم افغانستان آگاهی نداشتند ویا به بیان دیگر افغانستان را نمیشناختند، پس کیها افغانستان را میشناختند؟

پروفیسور امین: به صراحت میتوان گفت که چپیها و راستیهای ما از کشورهای دیگر و از جنبشهای کشورهای بیگانه آگاه بودند، اما متاسفانه از کشور خود و مردم آن اطلاعی نداشتند، اگر اطلاعی میداشتند این همه خدادهای گجسته و تامیمون دو دهه پسین در کشور ما به وقوع نمیپیوستند.

در نصاب اموزش و تحصیلی کشور ما افغانستان شناسی جایکه ویزه یی نداشت، از ساختار اجتماعی و سایر ویژه گیهای ملی و عنعنه یی فرهنگ افغانی به طور عام و از اقوام گوناگون به گونه خاص ارج گذاشته نمیشد.

افزون بر آن سطح زنده گی مردم ما در شهرها و روستاها از اسمان تا به زمین از هم تفاوت داشت، کابل و فرهنگ حاکم بر آن مانند کشورهای اروپایی بود، بالمقابل روستاها وضع بهتر از فقیرترین کشورهای افریقایی داشت. روشنفکرانی که گرویده ایدیولوژیهای اجنبی بودند، الگوی شان در تحلیهای اقتصادی، اجتماعی و فرهنگی کشور، شهر کابل و چند شهر دیگر بود. انها از روستاهای دور دست افغانستان و وضع زنده گی مردم آن روستاها آگاهی نداشتند.

محصل از پوهنتون احمدشاه ابدالی: دیکتاتوری راستیها و چپیها از همدیگر فرقی دارد یا خیر؟

پروفیسور امین: گروههای راست و چپی که در دوران بیست سال گذشته بر مردمان ما حکومت کردند، همه شان دیکتاتور بودند، مایه و پایه یی از ملت

**نداشــتند. هر دو گروه برای تحکیم قدرت شــان از هیچگونه تلاش مذبوحانه دریغ نکردند و ملت در دوران ســلطه شــوم آنها در اتش و دود بارود زنده گی کرد، خون ناحق ریختند و صــدها هزار انســان این ســرزمین را به نابودی کشاندند. در نهایت دیکتاتوری هر دو گروه تنها تفاوت سلیقه یی داشت ور نه هر دو گروه معتقد به دیکتاتوری، جبر، ظلم، ترور، اختناق و دهشت بود.**

**محصــل از پوهنتون هیواد: در این روزها از حکومت وســیع البنیاد حرفهای زیادی شـنیده میشـود اگر درباره این گونه حکومت روشـنی انداخته شـود، بد نخواهد بود؟**

**حکومت وسیع البنیاد باعث دشواریها و مشکلات زیادی به میهن و مردم ما گردیده اســت. حکومت تنظیمی کابل الگوی خوبی از حکومت وســیع البنیاد بود وزرای حکومت به جای این که از صــدراعظم مملکت دســتور بگیرند، تابع اوامر او باشـــند و یا هم خود را پابند قوانین و مقررات دولتی بدانند، از رهبری حزب و گروه شـــان امر میگرفتند از ســـران گروهی شـــان اطاعت میکردند و دستورهای رهبرش را میپذیرفتند.**

**حکومت وســیع البنیاد تنظیمها در کشــور از ازمونگاه زمان ناکام برون شــد. بایســتی از این روش در اینده دوری گزینیم. به فکر من عوض وســیع البنیاد حکومت وسیع النظر میتواند دشـواریها و مسـایل کشـور را خوبتر حل نماید، زیرا این گروه تابع اوامر رهبر نبوده، به میهن و مردم آن میاندیشـــندو منافع ملی را در نظر میگیرند.**

**متعلم یکی از مکاتب افغانی: چرا شما اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد را بستید و به جای آن مرکز مطالعات افغانستان را بنیانگذاری نمودید؟**

**پروفیسور امین: اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد زمانی تاسیس شده، که کشور ما از سوی ارتش بیگانه اشغال شده بود و رژیم دست نشانده کمونستی در کابل حکومت میکرد، ما به اتحادیه همگون با شرایط آن وقت اسانامه و برنامه کاری درست نموده بودیم. پس از گذشت چهارده سال شرایط کشور ما و منطقه تغییر یافته بود. ما مجبور بودیم که همسان با شرایط امروزی کار ها و برنامه خود را طرح ریزی کنیم، با نظرداشت به این گونه دشواریها هیئت رهبری اتحادیه فیصله به عمل اورد که به جای اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد مرکز مطالعات افغانستان تاسیس شود.**

**دختری از اتحادیه جوانان افغانستان: شما در دفاع از حقوق زن چه کاری انجام داده اید؟**

**پروفیسور امین: کار و برنامه کاری ما با نشر کتاب، مجله و اخبار ارتباط میگیرد. ما در نشرات خود و برنامه کاری خود به زنها سهم میدهیم، چندین کتاب و رساله در باره حقوق زن در جامعه به نشر سپرده ایم. در مجله ها و اخبار ما در باره زن، موقف او در جامعه و حقوق بشری زنان مطالب فراوان به نشر رسیده اند.**

**جوانی از پوهنتون سید جمال الدین افغان: برای ایجاد پوهنتون واحد افغانها در پشاور چه کاری باید صورت بگیرد؟**

**پروفیسور امین: چهار سال پیش طرحی در باره ایجاد یک پوهنتون واحد اما با داشتن معیارهای بین المللی رویدست بود، مجالس ابتدایی آن در پوهنتون پشاور دایر گردیدند و شماری از دانشمندان و استادان میهن ما در آن شرکت جستند.**

دو ســـه مرجع به‌کمک به این‌کانون علمی اماده‌گی نشـــان داده بودند، اما متاسـفانه‌که اداره اسـتاد ربانی مانع تاسـیس آن پوهنتون‌گردید. زمانی طرح تاسـیس آن پوهنتون ناکام‌گردید، از این ســو و آن ســو پوهنتونهای تاســی گردیدند، که مشـکل امروزین شـما مداخله بی جای اداره اسـتاد ربانی ناشـی میشود.

گفت و شـنودها تا سـه سـاعت ادامه پیداکرد و سـاعت پنج خاتمه پذیرفت. محصلین و متعلمین در عصریه یی اشتراک‌کردندکه از سوی مرکز مطالعات افغانستان تهیه‌گردیده بود.

# د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې لسمه کاليزه ونمانځل شوه

دا وينا د (وفا) جريدې په (۱۱–۱۲) ګڼه کې د (۱۳۷۷ل) کال د ورې مياشتې پر (۱۰)مه نېټه خپره شوې ده.

د (۱۹۹۸) د مارچ پر ۲۱مه نېټه د پېښور پوهنتون د استادانو د اتحاديې د کلوپ په تالارکې د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې د جوړېدو لسمه کاليزه د يوې غونډې په ترڅ کې ونمانځل شوه. د نمانځنې د دې غونډې مشر مېلمه د پېښور پوهنتون پخوانی رئيس پروفيسور دوکتور انورخان او د غونډې رييس ښاغلی سيد اسحق ګيلاني و. د نمانځلو په مراسمو کې ګڼو افغاني پوهانو، ليکوالو، روښانفکرانو، مخورو، ملي، سياسي شخصيتونو، په پېښور کې مېشتو بهرنيو ډپلوماټانو، د خيريه موسسو مسوولينو يا غړو، او پاکستاني مېلمنو برخه واخيسته. غونډه د قران کريم د څو مبارکو ايتونو په تلاوت پيل شوه، بيا د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر ښاغلي پروفيسور امين د افتتاحيه وينا وار راورسېد، خو دوی دمخه تر دې چې خپله وينا پيل کړي، د غونډې ټول برخه وال يې د افغانستان لپاره د ملګرو ملتونو د بشر حقوقو د ځانګړي راپورتر پروفيسور ارمکورا د مړينې له امله يوې دقيقې سکوت ته وبلل او تر دې يو دقيقه يي سکوت وروسته يې خپله وينا واوروله. پروفيسور امين د خپلې وينا په ترڅ کې د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې د جوړېدو پر تاريخچه څه وويل او هم يې هغه ستونزې يادې کړې چې د تېرو شپاړسو، اوه لسو کلونو په جريان کې افغان تعليميافته ورسره مخامخ وو.

**ده د خپلې وینا په ترڅ کې د لیکوالو ټولنې پر اهدافو هم خبرې وکړې او د خپلې وینا په یوه برخه کې یې وویل:**

**((تاسې ټول د افغانستان په مساله کې له بهرنیو هېوادونو سره د ځینو تنظیمونو په سیاسي معاملو خبر یاست، د دغو معاملو له نتایجو هم ښه خبر یاست او په دې هم پوهېږئ چې دغو عواملو زموږ د هېواد په روان کړکېچ څومره بده اغېزه پرېښې ده، خو زه په ډاډه سره دا وایم چې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې تراوسه پورې له هېچا سره د افغانستان د ازادۍ او زمکني تمامیت پر سر معامله نه ده کړې، نه یې کوي او نه به یې تر دې وروسته وکړي.**

**وفا لکه څنګه چې د افغانستان د ورونو قومونو د اتحاد پلوي کړې، داسې د نورو هېوادونو د قومونو اتحاد پلوی هم دی، وفا به تر هغې خپل فعالیت ته دوام ورکړي، څو په افغانستان کې د افغانانو په خوښه یو ملي اسلامي حاکمیت جوړ شي...)).**

# د افغانستان په کلتورکې راغلي بدلونونه او بيا رغاونه يې

دا وينا د (وفا) جريدې د لومړي کال په (۲) يمه گڼه کې د (۱۳۷۰ل) کال د قوس مياشتې پر (۲) يمه نېټه خپره شوې ده.

د ازاد افغانســـتان د ليکوالو ټولنې ((وفا)) د (۱۳۷۰ل) کال د عقرب پر اتلسمه نېټه د سيمينارونو څانگې د خپلو سيمينارونو په لړکې د افغانستان په کلتورکې راغلي بدلونونه او د هغوی بيا رغاونه يې، تر عنوان لاندې سيمينار د وفا په دفترکې پرانيســـت. په دې ســـيمينارکې چې يو شـــمېر افغاني او پاکستاني پوهانو او ليکوالوگډون کړی و، په پيل کې د قران مجيد څو مبارک ايتونه ولوســـتل شـــول، ورپســـې د ازاد افغانســـتان د ليکوالو ټولنې مشـــر پروفيسور عبدالرسول امين پرانيستونکې لنډه وينا وکړه ويې ويل: لکه چې تاسو ته معلومه ده چې د ازاد افغانســـتان د ليکوالو ټولنه وخت پر وخت څه لوی او واړه سيمينارونه جوړوي، د سيمينار لويوالی اوکوچنيوالی په دې معنا چې لږ او ډېر خلک ورته راغوښـتل شـوي دي، خو نننی ســيمينار په معنوي لحاظ ډېر لوی ځکه دی، چې موضـــوع يې ډېره مهمه ده په دې معنا چې افغان مهاجرينو د هجرت په دې اوږده موده کې د پاکســـتان او يا نورو ټولنو څخه څه زده کړل او څه يې هېرکړل او پاکستانيانو له موږ څخه څه زده کړل او څه به ورسره پاتې شي.

د دغه ســـيمينار په پای کې د وفا مشـــر پروفيســـور امين اختتاميه وينا وکړه او ويې ويل: د افغانانو او روســـانو ترمنځ جنگ د دوو اجتماعي ســـاختمانونو

ترمنځ جګړه ده، افغاني ټولنه یوه مسلمانه او مساوات طلبه ټولنه ده او د خارجیانو د اجنټانو څخه کرکه کوي.

۱– روسانو یوه بې خدایه، د کارګرو په نوم دیکتاتوري او خپل اجنټانو په افغاني ټولنه تحمیلول غوښتل، چې په پای کې د افغاني ټولنې ساختمان د کمونستانو د ایډیالوژۍ او د روسانو د راتګ ځای نه درلود.

۲– د ټولې اسلامي نړۍ د هېوادونو په تناسب افغانانو د اسلام او د خپل هېواد هویت د ساتلو لپاره له هرچا څخه ډېره قرباني ورکړې ده، چې د سلطان محمود غزنوي څخه نیولې تر احمدشاه ابدالي پورې د اته سوه کلونو تاریخ د دې پوخ ثبوت دی. د عربو پوځ د محمد بن قاسم په مشرۍ تر سند پورې راغلی و او د اوسني بنګله دېش د هند او د پاکستان د ولسونو په مسلمانېدو کې یوازې د افغانانو د جهاد برکت دی او په ویاړ سره ویلای شم، هغه ځانګړي کلتوري خصوصیات چې زموږ د دین پروره او ازادي غوښتونکو ولسونو په خټه کې اغږل شوي، د نړۍ په ولسونو کې په دومره اندازه نه شته، په دې معنا چې د افغانستان مسلمان ولسونه د بل هر ولس څخه په خپل اسلامي کلتور کې تر ټولو زیات متحد او یو موټی دي. تاریخ شاهد دی چې د افغانستان بېلابېلو قومونو او قبیلو د هر یرغلګر او تېري کوونکي قوت پر وړاندې پرته له کومې سازماندهۍ څخه د ازادۍ په ویاړلي سنګر کې په اتحاد او اتفاق سره راټولېدل، زموږ د دې خبرې څرګند ثبوت دی. چې په افغاني ټولنه کې د اسلامي کلتور با ارزښته او ځانګړي خصوصیات ګڼلی شو. د افغانانو بل مهم کلتوري خصوصیت دا دی، چې هېڅکله د پردیو ایډیالوژۍ او کلتور ته غاړه نه ږدي او دا یې هم کلتوري توافق و، چې د اسلام سپېڅلی دین یې ومانه، په داسې حال کې چې د اسلام مبین دین چې له عربو څخه راخپور شوی دی، خو حتا داسې عرب شته چې

مســـلمانان نه دي لکه، په لبنان او ځینو نورو ځایونوکې خو چېرته چې افغان وي مســـلمان به هم وي، چې دا لوړ ارزښـــت د افغانانو په اســـلامي کلتورکې نغښتی دی.

بل مهمه ټکی چې د یادولو وړ دی، هغه دا دی چې د ثور د کرغېړنې کودتا څخه راوروسته دووګاونډیو او مسلمانو ورونو هېوادونو اسلامي اوکلتوري اړیکو ټینګ پیوند وموند او یو پر بل یې زیاتې کلتوري اغېزې پرې ایســـتې، بېلګې په توګه درې میلیونه مهاجرینوکه یو یو پاکستانی دوست پیداکړی وي، نو درې میلیونه دوســـتان شـــو. او په دې دومره اوږده موده کې داســـې کومه پېښه سره له دې د دومره وسلو د دواړو ولسونو ترمنځه هم نه ده پیدا شوې چې خدای مه کړه د مرګ او ژوبلې ســـبب شـــي، چې دا بل د اســـلامي کلتور لوړ ارزشت بللی شو.

# د افغانستان د مسلې سياسي حل او په راتلونکي کې د افغانستان او پاکستان اړيکې

| |
|---|
| دا وينا د (وفا) جريدې د لومړي کال په (۷)مه ګڼه کې د (۱۳۷۰ل) کال د کب مياشتې پر (۱٤)مه نېټه خپره شوې ده. |

د (۱۹۹۲م) کال د فبرورۍ پر درويشتمه د يکشنبې پر ورځ د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې له خوا د افغانستان د مسالې په اړه او په راتلونکي کې د افغانستان او پاکستان ترمنځ اړيکي تر عنوان لاندې د پېښور په انټرکانټيننټل هوټل کې يو سيمينار جوړ شوی و. په دې سيمينار کې چې د پاکستان ټولو سياسي ګوندونو ته بلنه ورکړل شوې وه، يو شمېر افغاني پوهانو، ليکوالو، سياستوالو، قومي او جهادي شخصيتونو، کورنيو او بهرنيو ژورنالستانو هم ګډون کړی و. د سيمينار په پيل کې له هغې وروسته چې د قران عظيم الشان څو مبارک ايتونه تلاوت شول. د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر پروفيسور عبدالرسول امين د افغانستان د کشالې او په راتلونکي کې د افغانستان او پاکستان د ولسونو ترمنځ د ښو علايقو په باب لنډه پرانيستونکې وينا وکړه، ويې ويل: موږ د پاکستان له ولس او حکومت څخه مننه کوو چې زموږ په ديارلس کلن جهاد کې يې نه يوازې دا چې افغان مهاجرينو ته يې ځای ورکړی دی، بلکې مالي او ځاني کومکونه يې هم پر غاړه اخيستې دي، زه باور لرم چې پاکستان، ايران، د مرکزي اسيا اسلامي هېوادونه او نور مسلمان هېوادونه او ملګري ملتونه به زموږ د مسلې د سياسي حل په رابطه د هېڅ راز هلو ځلو څخه ډډه ونه کړي. او د افغانستان د ازادۍ، امن، يووالي او سلامتيا په خاطر به خپل ټول امکانات د دردېدلو افغانانو او ژوبل هېواد څخه ونه سپموي.

# د افغانستان مسله او د هغې حل

**دا وینا د (وفا) جریدې د لومړي کال په (۲٤) ګڼه کې د (۱۳۷۱ل) کال د عقرب میاشتې پر (۹)مه نېټه خپره شوې ده.**

د (۱۹۹۲م) کال د اکتوبر د میاشتې پر یوویشتمه نېټه چې د میزان د میاشتې له نهه ویشتمې نېټې سره برابره ده، د چهارشنبې پر ورځ د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې ((وفا)) له خوا ((د افغانستان مسله او د هغې حل)) په نامه یو ورځینی سیمینار د پېښور پوهنتون د مرکزي اسیا د مطالعاتو په مرکز کې جوړ شوی و. په سیمینار کې دوو سوو په شاوخوا کې کسانو ګډون کړی و. سیمینار ته، د کابل، کندهار، ارزګان، هلمند، وردګو او کوېټې څخه هم ځینې مشران افغانان راغلي وو. په سیمینار کې ځینو پاکستان او بهرني خارجي پوهانو هم ګډون کړی و، چې یاد سیمینار د پروفیسور امین پر لاندې وینا پرانیستل شو:

بسم الله الرحمن الرحیم

درنو مشرانو، خویندو، ورونو!

ویاړم چې تاسو زموږ په سیمینار کې ګډون کړی دی. تاسو ته پته ده چې زموږ د وطن مسله تراوسه پورې پوره حل ته نه ده رسېدلې.همدا وجه وه چې موږ فیصله وکړه، چې په دې لنډ وخت کې تاسو ته تکلیف درکړو. زموږ سیمینار د افغانستان د مسلې او د هغې د حل په باره کې دی. موږ له تاسو څخه هیله لرو چې خپل ګټور نظریات، د افغانستان د مسلې د حل په اړه وړاندې کړئ. زه نه غواړم چې ستاسو ډېر وخت ونیسم، ځکه چې د افغانستان مسله ټولو ته معلومه ده، ډېر کسان ورباندې غږېدلي دي، صرف زه دومره عوض کوم

چې دې سـيمينار ته زموږ ځينو ورونو له کابل څخه تشـريف راوړی دی او ځينې له کندهار، هلمند او ارزګان څخه تشـريف راوړی دی. زه سـتاسـو په اسـتازی هغوی ته د زړه له تله ښـه راغلاسـت وايم. هغوی تر ډېرو اوږدو او سـترو مزلونو وروسـته دلته رارسـېدلي دي، د دوی په ديدن زموږ سـترګې خوږې شـوې دي. زموږ لپاره د ډېر وياړ ځای دی، چې موږ خپل افغاني ورونه څوارلس کاله وروسته وينو. له دوی سره د زړه خواله کوو، دوی ته يو ځل بيا په ډېره مينه او د زړه له کومي ښه راغلاست وايو.

که څوک داسې فکر کوي چې د افغانستان مسـله حل ته رسېدلې ده، رښـتيا هم چې ډېرو خلکو داسې فکر کاوه چې د روسانو تر تګ وروسـته د نجيب له راپرځېدو وروسته به په افغانستان کې سوله راشي او د افغانستان څوارلس کلنه تراژيدي به پايته ورسـېږي او خواره واره افغانان به خپل وطن ته راسـتانه شـــي، خو بدبختانه چې داســـې حوادث منځته راغلل، چې يوازې زموږ هغه خوږ ارمان، چې د افغانستان د مسلې د حل پورې تړل شوی و، پوره نه شو، بلکې نورې سـتونزې يې هم منځته راوړې. په دې تکليفونو باندې زه فکر کوم چې د هر افغان په کور کې، د هر افغان په هوجره او جومات کې، که دوه افغانان سره کېني، نو د خپل وطن د مسلې په باره کې به فکر او خبرې کوي. ټول افغانان دا غواړي چې دا مسـله بايد څنګه حل شي؟ موږ پروګرام داسې نيولی دی، هغه محترمام چې په سـيمينار کې يا خبرې کوي او يا مقاله لولي موږ له هغوی څخه هيله کوو،چې له نيم ساعت څخه زيات وخت ونه نيسي. موږ غواړو هغو خلکو ته هم وخت ورکړو، چې د سـيمينار د مقالو په باب يا د افغانســتان د مســلې په باره کې غوښــتنې، پوښــتنې او وړانديزونه لري. له هغوی څخه هم هيله لرو، چې زيات وخت و نه نيســـي. هغه څوک چې د مسـلې په باب تبصـره کوي، د هغوی لپاره پنځه دقيقې دي او هغه څوک چې

سوال کوي، د هغوی لپاره درې دقیقې دي، زه پوهېږم چې ستاسو د ټولو زړونه ډک دي، تاسې ټول پوښتنو او وړاندیزونو ته تږي یاست او دا ځکه چې دا مسله زمو د وطن مسله ده. ډېره مهمه ده خو زه یې یو ځل بیا له تاسې هیله کوم چې ډېر وخت به نه نیسئ. هغه څوک چې پوښتنې لري هغوی دې مخکې تر مخکې خپل نومونه د پروګرام انانسر ښاغلي عادل ته ورکړي، چې هر پوښتونکی په خپل وار سره خپلې پوښتنې وکړي او په خپل وار سره ځواب ورته وویل شي: د وخت د کم والي پر اساس یو ځل بیا تکراروم چې د نظر لپاره لس دقیقې دي، د تبصرې لپاره پنځه دقیقې دي او د سوال لپاره درې دقیقې دي.

د سیمینار په وروستیو شېبو کې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې غړي ښاغلي حکیم اریوبي صاحب د سیمینار پرېکړه لیک ولوست، د پرېکړه لیک تر لوستلو وروسته د ازاد افغانستان د ټولنې مشر پروفیسور رسول امین د سیمینار په پای کې یوه اختتامیه وینا وکړه. ده دا وینا په پښتو او انګلیسي ژبو وکړه، د دې اختتامیه وینا پښتو متن دا دی- ګرانو مشرانو او کشرانو!

زه د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې له خوا او د خپل ځان له خوا ستاسو درنو مشرانو او مېلمنو له راتګ څخه د زړه له کومې مننه کوم، چې تاسو زموږ سیمینار ته تشریف راوړ او تاسو په ډېره حوصله باندې زموږ د سیمینار مقالې او ویناوې واورېدلې. زه له هغو وروڼو چې له کابل، کندهار، هلمند، ارزګان، ننګرهار او وردګو څخه تشریف راوړی دی، ډېر ستړی او اوږد مزل یې کړی دی، ډېره زیاته مننه کوم، زه د پېښور پوهنتون له رییس ډاکتر صاحب انور خان څخه واقعاً مننه کوم، چې دوی په خپل علمي مرکز کې موږ ته د سیمینار د جوړېدو لپاره ځای راکړ. زه د اریا سټډي سنټر له ټولو غړو څخه او مخصوصاً د عبدالله جان خلیل څخه ډېره زیاته مننه کوم. همدارنګه د

**عظمت حیات خان څخه هم ډېره مننه چې په ډېر لنډ او تنګ وخت کې یې زموږ د سیمینار لپاره مقاله تیاره کړه، ستاسو ټولو مېلمنو یو ځل بیا مننه کوم، زموږ سیمینار پایته رسېږي.**

# د افغانستان د سولې په لاره کې پراته خنډونه

دا وينا د (وفا) جريدې د لومړي کال په (۲٤) مه ګڼه کې د (۱۳۷۱ل) کال د عقرب مياشتې پر (۹) مه نېټه خپره شوې ده.

دا چې افغانان په څه طريقه غواړي خپل مشـــکلات حل کړي، په دې اړه بايد ووايم چې موږ د مرکزي اسيا د مسلمانانو په څېر هم نه يو، چې هلته د کليسا او جومات ترمنځ شخړې پيدا شوې دي، موږه کليسا نه درلوده او نه يې لرو، په افغانستان کې خلک ټول مسلمانان وو او دي. موږ د پاکستان په شان هم نه يو، ځکه چې دلته هم د دوی او هندوانو ترمنځ شـخړې وې، په افغانسـتان کې زموږ افغانان څه نوی او اوســنی ملت نه دی، بلکې ډېر زوړ ملت او زوړ اسلامي مملکت دی، خو بدبختي دا ده که څوک د افغانستان نوم واخلي، نو وايي چې دا خو نشـنلسـت دی، که څوک ووايي چې افغانسـتان ملت دی، نو بيـا وايي دا خو کـافر دی. زه د افغانســـتـان د جامعې او د دوی د ټولنيزو خصـوصـياتو د مطالعې يو وړوکی شـاګرد يم، ما د خپلې مطالعې پر اسـاس په افغانستان کې څلور اساسي اصول پيداکړي دي.

اول د افغانســتان ټولنه يوه مســلمانه ټولنه ده، هېڅوک بايد په دې کې شـک ونه کړي او نه دا حق لري چې شک وکړي، ليکن دغه مسلمانه جامعه د ايران په څېر مســلمانه جامعه نه ده، ځکه چې په ايران کې په خپله هغوی يو مذهبي

ترتیب لري ، چې په افغانســـتان کې هغه موږ نه لرو، له هندوانو ســـره هېڅ شخړه نه وه، موږ خپله مسلمانان یو، ځینې خلک داسې وایي چې د سلطان محمود غزنوي څخه واخله تر احمدشاه دراني پورې تقریباً ټول (۸۱۰)کاله کېږي، تاســو ټول په خپلو ذهنونو فکر وکړئ، نعوذ بالله څوک چې په مکه باندې حمله کوي، نو د یو مســلمان مقاومت به څومره وي؟ دغسې کله چې د افغانســتان مســلمانانو د هندوانو پر مقدس مرکز یانې په ســومنات باندې د ســلطان محمود غزنوي پر وخت حمله کوله، تاســو فکر وکړئ چې په هغې حمله کې به هندوانو څومره مقاومت کړی وي او دا هم اصــول دي، څوک چې مقاومت کوي هغه ناست وي او څوک چې حمله کوي، نو هغه حمله اور ډېر مړه کېږي. دغه څومره شــهیدان چې موږ ورکړي، څومره جګړې چې موږ د اســلام د خدمت لپاره په دې حوزه کې کړي، ما داســې وویل چې د بنګله دېش، پاکستان او هندوستان مسلمانان دا د افغانستان مسلمانان دي، دا د عربو نه دي، موږ چې په دې حوزه کې د اســلام لپاره خدمتو نه کړي، هېڅ هم نه دي کړي.

مهمه خبره دا ده چې افغانان یو خصــوصــیت لري، د مشــرانو احترام کوي، د پلار د قوم د مشر د کلي مشر احترام کوي، د سیاسي مشر احترام کوي، لیکن دیکتاتوري نه مني. ولو که دا دیکتاتوري د ده د پلار شي، یا د کلي مشر یا په افغانســتان کې زموږ ســیاســي مشــر وي، امیر عبدالرحمن خان دوره موږ ته معلومه ده، هغه داســې نه چې ګوندې کافر یا کمونســت و، هغه مســلمان و، شهزاده و، لیکن کوم وخت چې ده دیکتاتوري شروع کړه، د افغانستان ټولو قومونو د هغه پر ضد قیام وکړ، دا په افغانستان کې یو واقعیت دی.

دریيمه خبره داده چې په افغانستان کې زما د مطالعې پر اساس هر قوم چې په هره منطقه کې پروت دی، یو قوم نه غواړي چې د بل قوم مشرتوب ومني، دا

د دوی د مساوات طلبۍ هغه خصوصیات دي، چې یو د بل حاکمیت نه مني.
او څلورمه خبره دا ده چې افغانانو د خارجیانو اجنټان نه مني، دا چې هر څوک په هر نامه راشي، لوی مثال یې د احمدشاه دراني لسمی شاه شجاع دی. اوس هم چې کله موږ د احمدشـاه نوم یادوو، نو بابا ورسـره وایو او د احمدشـاه مقام نه دی راکښـته شـوی، لیکن د هغه لسـمی نه یوازې دا چې افغانانو و نه مانه، بلکې مړ یې کړ. دا زما ایمان دی چې په افغانسـتان کې د خارجي اجنټانو لپاره ځای نه شته دی او د دیکتاتوران لپاره په افغانستان کې ځای نه شـته. افغانان په خپله یو میکانیزم لري، ما عرض وکړ چې موږ سـره پاکسـتان، ایران، امریکا، عربو حتی چین کومک کړی دی، خو موږ د دوی له کومکونو څخه ډېر مشـکور یو، ځکه چې کومک کومک دی او دا د افغان ځانګړنه ده، چې په سـخته کې دې ورسره کومک وکړ، نو هغه نه هېروي، اما د کومکونو معنا دا نه ده، چې هر سړي یو خپل ګوډاګی په ترخ کې نیولی وي او وایي چې دا زما دراخله، ماته یوه ټوکه یاده شـوه. کوم وخت چې اورنګزېب خپل پلار شاه جهان ونیو، نظر بند یې کړ، نو یوه ښځه وه چې شاه جهان له به یې ګلونه راوړل، شـاه جهان ورته وویل، چې ته ما له یو ښـکلی ماشوم راوله، نو د هغې ښځې یو تور ماشوم و، هغه به یې ورله راوست، خیر شـاه جهان ورته وکتل، بله ورځ یې بیا ورته وویل یو ښـکلی ماشـوم راوله، بیا به یې ورته هماغه راوست، په درېیمه ورځ یې بیا د یو ښکلي ماشوم غوښتنه وکړه، بیا یې هغه خپل تور ماشـوم راوسـت، نو شـاه جهان ورته وویل چې ما درته وویل یو ښکلی ماشوم راوله، هغې وویل چې شاهنشاه که زما په سترګو دې ورته ولیدل، نو له ده ښـکلی ماشـوم په دنیا کې نه شـته، نو دا چې هر یو خپل ماشـــوم په ترخ کې نیولی او وایي دا واخله دا هېڅکله هم افغانان نه مني، بل دا چې دوی تاسـو ته راځي او وایي چې صـاحب ټول افغانسـتان

ستاسو مشکور دی. دا به ټول دروغ او دوکه وي. افغان هغه ځيز غواړي کوم چې د افغانانو امن پرې راځي، افغانان سره يو موټی کوي، ګاونډي هېوادونه پاکستان، ايران، سعودي او نورو ځخه موږ يوه هيله لرو، هغه دا چې موږ سره دې د افغانستان په روغه جوړه کې کومکونه وکړي، نه دا چې په ورانولو کې.

# لویه جرګه د ستونزو د حلولو د یو مهم میکانیزم په توګه

دا وینا د (وفا) جریدې د لومړي کال په (٢٤) مه ګڼه کې د (١٣٧١ل)کال د عقرب میاشتې پر (٩)مه نېټه خپره شوې ده.

## اول– د لویې جرګې منشا او جوړښت:

### ١– منشا:

په افغانستان کې له ډېرو پخوا زمانو څخه بېلابېلو قومونو، قبیلو، نژادي، ژبني او مذهبي اتنیکي ګروپونو ســـره یوځای ژوند کړی دی. د دغه ګډ ژوند په اوږده تاریخ کې، دغو ټولنیزو ګروپونو، نه په ځانګړې توګه او نه د یو ملت په حیث تر ١٩٢٣م کال پورې نه لیکلي قوانین درلودل او نه مرکزي حکومتونو د دوی د حقوقی قضایاوو په حلولو کې کوم رول درلود. نو یې خپلې حقوقي قضایاوې او د ټولنیز ژوندانه نورې چارې لکه، خپل منځي شخړې او ورانۍ، د اسلامي (حنفي یا جعفري) فقهې په څنګ کې په مشخصـو شوراګانو کې په ســـلا مشـــورو او پرېکړو حلولې. د زمانې په تېرېدو ســـره د خپل ټولنیز جوړښت او روابطو له مشخصاتو سره سم، د مشخصو یا سره ورته قضایاوو او پرابلمونو د تشـــخیص او حلولو لپاره یې دودونه او کودونه رامنځته کړل، چې دوی د فرهنګ د یو مهم تشـکیلوونکي عنصـر په توګه له یوه نسـل څخه بل نسل ته د ټولنیز میراث په توګه منتقلېدل او له شرایطو سره سم یې تحول او تکامل موند. څرنګه چې د شـورا او سـلا مشـورې له لارې د قضـایاوو او

پرابلمونو حلول د اسلام د سپېڅلي دين يو مهم اساس هم دی، نو ځکه د افغانستان په مسلمانو خلکو کې د شورا او سلا مشورې ټينګښت او پايښت وموند. اصول، معيارونه او ميتودونه يې تثبيت شول او تر ننه پورې راورسېدل. د دغه ډول سلا مشورې غونډه او په هغې کې د قضاياوو څېړنه او په کې د پرېکړو صادرول، د افغانستان په ټولو ژبو کې ((جرګه)) وبلل شوه، چې دغه کليمه اصلاً ترکي ريښه لري او اوس زموږ د ټولو بېلابېلو ژبو مشترکه او منل شوې پانګه ګرځېدلې ده او د شکل او محتوا جوړښت او دندې په مفاهيمو باندې هم ټول خلک پوهېږي او هم يې جوړېدو او پرېکړو ته د درنښت او اعتماد په سترګه ګوري او عمل پرې کوي. جرګه د بحث د موضوع او د جوړښت او ترکيب له نظره دوه ډوله وي: عادي او محدوده جرګه، او لويه جرګه.

## ۲- جوړښت:

هغو کسانو ته چې د افغانانو کلتور او د دوی کلتوري مميزات معلوم وي، هغوی په دې ښه پوهېږي، چې د افغانستان د خلکو په هر قوم، هره قبيله، هره کورمه او هر کلي ولس کې د جرګو خلک او غړي معلوم دي. جرګې د بېلابېلو اهدافو د سرته رسولو په خاطر په مختلفو سطحو باندې جوړېږي، کله چې به قومونو، قبيلو، خېلونو، کورمو اوکليو او ولسونو کې شخړې او لانجې پيدا شي، د جرګو خلک ورته راځي او په ښه شوې مسله حل کوي. د کليو په جرګو کې د کلي مشران، بانفوذه سپين ږيري، د کليو ستانه، روحاني خلک او علما ګډون کوي، کله چې بيا لانجه د قومونو او قبيلو ترمنځ وي، د دغسې جرګو له پاره هم د هر قوم له مرکچيانو او جرګه مارو څخه ډېر دروند او محترم شخص په جرګو کې ګډون کوي. او که بيا جرګه لويه او د مملکت

په کچه وي، بیا یې هم غړي معلوم وي، له هر قوم، هرې قبیلې او هر ولس څخه هغه سـړي راځي، چې ټول قوم، ټولې قبیلې او ګرد ولس ته منلي وي. زموږ پخوانۍ لویې جرګې چې جوړې شـوې دي، په ټولو کې د قومونو مشـرانو، با نفوذه اشـخاصـو، قوم ته منلو سـپین ږیرو، علماوو او روحاني شـخصـیتونو په کې ګډون کړی دی. دغه ډله اشـخاص د افغاني جامعې هغه اقشار دي، چې افغانان د خپلو اخلاقي–ملي او کلتوري ارزښتونو او معیارونو له مخې ورته احترام لري او په دغسې مهمو مسـلوکې دغه اشـخاصـو لویو جرګو ته بلل کېږي، قومونه، قبایل او ولسـونه یې په جرګو کې له ګډون سـره موافقه لري، نه انتخابات غواړي او نه بل څه، ځکه دا خلک معلوم خلک دي او قومونه، قبایل پرې باور لري.

د نولسمې پېړۍ په اواخرو او د شلمې پېړۍ په جریان کې چې زموږ په هېواد کې لویې جرګې د منظمو دولتونو له خوا جوړې شـوي، نو په دغو جرګو کې له لوړو یادو شـویو قشـرونو سـربېره، د وخت له غوښـتنو سـره سـم، دولتي بانفوذه ارکانو او تعلیمیافته ګانو او مفکرو خلکو ته هم په لویو جرګو کې د شرکت حق ورکړل شوی دی. خو وروسته تر ۱۹٦٤م کال په اساسي قانون کې د لویې جرګې د غړو د جوړښـت لپاره د انتخابي او انتصـابي وکیلانو د سـره رغونډېدو یو نوی طرزالعمل ومنل شـو، چې د هغه پر بنا د ملي شـورا، یانې د ولسي جرګې او مشرانو جرګې غړي، د ولایتي جرګو رییسان، د کابینې هیئت، د سترې محکمې غړي او د پاچا له خوا یو ثلث انتصابي کسان د لویې جرګې په جوړښت کې شاملېدل. خو اوس چې زموږ سیاسي– ټولنیز اوضاع بل ډول ده، کېدای شـي چې د لویې جرګې د جوړښـت لپاره د ټولنې له واقعیتونو سره سم قومي مشران، سپین ږیري، علماء، تعلیمیافته ګان، پخواني باتجربه دولتي ارکان او د نن ورځې د غوښـتنې مطابق د ځوارلس کلن جهاد

**نومیالي قوماندانان او نور لازم عناصر راوبلل شي، لکه چې دمخه مو وویل دغه خلک زموږ په ټولنه کې معلوم دي، د افغانستان هر قوم او هره قبیله دغسې اشخاص لري. موږ کولای شو چې په افغانستان کې د ټولو مېشتو قومونو له مشرانو، سپین ږیرو، علماوو، روحانیونو، تعلیمیافته ګانو او قوماندانانو څخه یوه واقعي او د ټول ملت نماینده لویه جرګه جوړه کړو. دغسې اشخاصو په تشخیص کې هېڅ ډول ستونزه نه رامنځته کېږي.**

## دویم– د لویې جرګې دنده:

**هر ټولنیز جوړښت د ټولنې د ضرورتونو پر بنا منځته راځي او ځانته ټاکلې دندې لري، چې باید سرته یې ورسوي. لویه جرګه هم، د یو ټولنیز جوړښت په توګه ځانته وظایف لري. د لویې جرګې کلي وظیفه داده چې د ملي او هېوادني برخلیک جوړوونکو داخلي او خارجي قضایاوو او مسایلو د حل داسې سمې او مناسبې لارې وسنجوي او عملي یې کړي، چې د هېوادوالو لوړې ښېګنې په بهترینه توګه تامین او خوندي کړي.**

**دریېم– ځینې تاریخي لویې جرګې:**

**په افغانستان کې د لویو جرګو تاریخي څېړنه اوږد او مفصل بحث غواړي چې موږ اوس ورته وخت او فرصت نه لر، خو کېدای شي چې د هېواد د تاریخ د هغو لویو جرګو نمونه واخلو، چې په وروستیو دریو پېړیو کې ترکمونستي دورې دمخه جوړې شوې دي:**

## د میرویس نیکه جرګې:

**میرویس له پردیو څخه د هېواد تر خلاصون او د یو ملي دولت د تشکیل لپاره، تر ټولو دمخه د بېلابېلو قومونو استازي راغونډکړل او لویې جرګې یې**

جوړې کړې، چې يوه په کې د (کوکران) لويه جرګه وه، چې پر (۱۷۰۵م) کال جوړه شــوه، بله د (مانجې) لويه جرګه وه، چې پر (۱۷۰۷م) کال جوړه شوه. د دې دوو جرګو په نتيجه کې خلک يو موټی شول او د پرديو حکومت يې له منځه يووړ، خو ميرويس نيکه تر برياليتوب وروسته يوه درېيمه بله لويه جرګه په همدې وخت کې جوړه کړه او بېلابېل قومونه يې د هېواد او نوي ملي دولت ساتلو ته راوبلل.

د دغو دريو لويو جرګو نتيجې تاريخونو ثبت کړي دي او دا ښکاره ده چې د دغو لويو جرګو د پرېکړو د عملي کولو پر اســاس افغانان د پرديو له تســلطه خلاص او د يو ملي حکومت خاوندان شول.

## د شېر سرخ لويه جرګه:

دا جرګه هم په ډېرو اضــطراري او نازکو حالاتو کې جوړه شــوه. دا جرګه پر (۱۷۴۷م) کال د نادر افشار تر مرګ وروسته په افغانستان کې د يو خپلواک دولت د جوړېدو او د ملي زعامت د ټاکنې پر منظور جوړه شــوې وه. د دې لويې جرګې په نتيجه کې د افغانستان خپلواکي اعلان شوه، احمدشاه بابا ته د هېواد واګې وســپارل شــول او ده د خپلو خلکو په ملاتړ د افغانســتان حدود خپل کړل.

دغه راز پر (۱۸۴۱م) کال کې د نومبر پر لومړۍ نېټه د افغانانو ملي مشــرانو د کابل په عاشــقان او عارفان کې د خارجي يرغلګرو قواوو ســره د مقابلې لپاره يوه لويه جرګه جوړه کړه. د دې لويې جرګې د تدابيرو په نتيجه کې پرديو لښکرو ماتې وخوړه او له کابل څخه ووتل. امير شېرعلي خان د خپلې پاچاهۍ په دوارو دورو کې دوه لويې جرګې جوړې کړې، يوه پر (۱۸۶۵م) کال او بله پر (۱۸۷۳م) کال. په دې لويو جرګو کې ځينې مهمې مســلې حل

شـــوې. کله چې پر (۱۸۷۹م) کال انګرېزانو پر افغانســـتان حمله وکړه، امیر شــېرعلي خان مزارشـریف ته ولاړ، خلک او وطن بې سـرنوشـته پاتې شـول. دغه مهال هم د افغانانو مشـرانو یوه لویه جرګه وکړه چې درې زرو کسـانو په کې ګډون درلود. د دې جرګې د تدبیر په نتیجه کې یې د (۱۸۷۹م) کال په ډیسمبر کې خارجیانو ته ماتې ورکړه. پر (۱۹۱۵م) کال په افغانستان کې یوه بله لویه جرګه جوړه شوه، چې په لومړۍ نړیواله جګړه کې یې د افغانستان بې طرفي تایید کړه. دا وخت په افغانستان کې امیر حبیب الله خان پاچا و.

- د اعلیحضـــرت غازي امان الله خان د پاچاهۍ په دوره کې هم لويې جرګې جوړې شوې دي، چې مشهورې يې دادي:

د اساسي قانون لویه جرګه، چې د (۱۹۲۳م) کال د فبرورۍ پر ۲۶مه نېټه په جلال اباد کې جوړه شــوه او (۸۷۲) تنو په کې ګډون درلود او د افغانســـتان لومړنی اســـاســـي قانون یې تصــویب کړ. په همدې دوره کې بله لویه جرګه د (۱۹۲۴م) کال په جولای کې جوړه شـــوه. دا لویه جرګه چې په پغمان کې جوړه شـــوې وه، چې (۱۰۵۲) تنو په کې ګډون کړی و. د دولت د ټولو ټرونونو، روابطو او کورنیو مســـایلو او نورو موضـــوعاتو باندې یې خبرې وکړې. دغه ډول د اماني دورې دریمه لویه جرګه د ځینو هېوادنیو مســـلو د حل او فصـــل په منظور د (۱۹۲۸م) کال په اګســـت کې په پغمان کې جوړه شوه او (۲۰۰۰) تنو په کې ګډون درلود.

د اعلیحضـــرت محمد نادر شـــاه شـــهید د ســـلطنت په دوران کې هم پر (۱۹۳۰م) کال په ســـپتمبر کې د ځینو مهمو ملي او مملکتي مســـلو په باب لویه جرګه جوړه شـــوه. د دویمې نړیوالې جرګې په دوران کې د افغانســـتان د بې طرفه دریځ د تایید لپاره پر (۱۹۴۱م) کال لویه جرګه جوړه شـوه. تر دې

لويې جرګې وروسته، په همدې دوره کې دوه نورې لويې جرګې هم وشوې. يوه پر (۱۹۵۵م) کال او بله پر (۱۹٦٤م) کال د اساسي قانون د تصويب لپاره. دغه راز پر (۱۹۷۷م) کال سردارمحمد داود هم يوه لويه جرګه راوبلله چې خپل جوړ کړی اساسي قانون تصويب کړي او جمهور رييس وټاکي.

## شلورم– د لويې جرګې نفسياتي اغېزې:

د افغانانو د کلتور مطالعه دا څرګندوي چې دغه خلک د خپلو قبيلوي خصايصو له مخې په نفسياتي لحاظ هم د جرګو او لويو جرګو تر اغېز لاندې دي. څه شی چې جرګه فيصله کړي، دغه فيصلې پر ټولو افغانانو يو ډول روحي اغېز کوي او د هغو فيصلو مطابق چې کوم کارونه سرته رسي، له هغو سره روحي توافق لري او ځان هوسا احساسوي.

## پنځم– د لويې جرګې قانوني او حقوقي ارزښتونه:

د افغانانو د کلتور مطالعه دا راښايي چې د دوی ورې او لويې جرګې داسې نه دي، چې هلته څو تنه سره کېني، څو اخلاقي توصيې وکړي، که چا ومنله هم ښه او که يې و نه منله هم ښه، خبره داسې نه ده، جرګه د افغانانو په کلتور کې يوه داسې موسسه ده چې هم حقوقي ارزښت او هم قانوني صلاحيتونه لري. څوک چې د جرګې په نرخونو خبر وي، نو هغه پوهېږي چې د جرګو له فيصلو سرغړاوی سزا لري، د جرګو په حقوقي او قانوني صلاحيتونو خبرې کول اوږد او په زړه پورې بحث دی، چې زموږ مشرانو لکه، جناب پژواک صاحب، مرحوم خادم صاحب او نورو داخلي او خارجي پوهانو پرې ډېر کار کړی دی.

## شپږم– د لویو جرګو د رابللو طریقې:

د تاریخ له پاڼو ښــکاري، هغه وخت چې د افغانانو خپل حکومتونه وو او د خپل ملي حکومت د جوړولو او د پردیو له واکه تر خلاصــون لپاره دوی کومې لویې جرګې جوړې کړې دي، د بېلابېلو قومونو مشـران خپلوکې سـره ناســت دي، مهمې او تاریخ ســازې فیصــلې یې کړې دي. د مثال په ډول میرویس نیکه چې کومې لویې جرګې جوړې کړې دي او یا د شېر سرخ جرګه دغه لویې جرګې همدغه قومي مشـرانو د علماوو او روحانیونو په ګډون خپله جوړې کړې دي. په نولسمو او شلمو پېړیوکې چې کومې لویې جرګې جوړې شــوې دي، په هغوکې ځینې د قومي مشــرانو په بلنه جوړې شــوي او ډېرې دولتونو دعوت کړې دي. په اوســنیو شــرایطوکې چې مرکزي حکومت ډېر ضــعیف او پر اطرافو او ولایاتو واک نه لري، ولایتونه او د ولایتونو محلات، د بېلابېلو قوتونو له خوا اداره کېږي، په دغسې ګډوډو حالاتوکې بهترینه لاره داده، چې د افغانســتان د بېلابېلو قومونو ډېر نومیالي څو تنه مشــران، قوماندانان، روحانیون، علما او تعلیمیافته د لویې جرګې اواز اوچت کړي. د ملګرو ملتونو تر ســرپرســتۍ لاندې دې د لویې جرګې د جوړېدو لپاره د تدارک یوکمېسیون جوړ شي او داکمېسیون به په ډېرې واقعبینۍ د هر قوم د جرګې معلوم خلـک دې لویې جرګې تـه راوبلي، دغـه لویـه جرګـه بـه د افغانستان دننه په دغسې یوځای کې چې شرایط په کې مساعد وي، جوړېږي او جرګه به د روانوکشالو د حل لپاره د ټول ملت په خوښه پرېکړې کوي او د افغانانو د عنعنو مطابق به عملي کېږي.

## اووم– لویه جرګه او د اهل حل و عقد شورا:

**د اهل حق و عقد شـــورا د شـــورا لفظي ترکيب او د هغې مفهوم او معنا د افغانسـتان خلکو ته بېخي نامفهوم او اشـنا دي. دغه اوږده اصـطلاح زموږ د جهادي مشـرانو او علماوو له خوا په مکرره توګه اسـتعمالېږي، خو که څوک پوښـــتنه ورڅخه وکړي، چې د هغې په تاريخ باندې رڼا واچوي، يا يې د غړو او ترکيب او د رابللو طريقه او وظيفه راوښـــايي، نو د هغې بېلابېل پلويان بېلابېل توجيهات او تعبيرونه ورڅخه کوي، ځينې پلويان يې لـه لويې جرګې سره يو شان او ځينې يې بل شان ګڼي، ځينې جهادي مشران او علما شوراى حل و عقد د حل و عقد له اهله څخه مرکب ګڼي او د حل و عقد په اهل کې يوازې د اســـلامي ګوندونو اميران او واکداران او له ګوندونو ســـره متعلق عالمان شـاملوي او بل هېچاته په دې شوراکې د ګډون حق نه ورکوي. ځينې مشـران، مثلاً خپل ځان ته د شـورا د ټولو غړو د پنځه فيصـده انتصـاب حق ورکوي او نورو ګوندونو ته هم دغســې فيصــدي قايلېږي، چې نه د خلکو له خوا، بلکې د ګوندون له مشـرانو يا د ګوندي شـوراګانو له خوا انتصـابېږي. د اهل حل و عقد شورا زموږ په زمانه کې اسلامي پراخې دنيا په هېڅ کوم هېواد کې وجود او رواج نه لري او که وجود هم ولري، چې موږ ته نه دي معلوم، نو د شاذ حيثيت لري او هغه نادر ګڼلى شي، چې بيا د معدوم په حيث د ليس بشــئ بنه غوره کوي. د اهل حل و عقد د شـورا دغه لفظي ترکيب زموږ لپاره دومره نامانوس دى، چې حتى باسواده خلک يې نه شي تلفظ کولاى او نه يې سم ليکلى شي. پوه خلک هم د حل او عقد کليمې څوک د ((ح)) او ((ع)) په (زبر) او څوک يې په (زېر) تلفظ کوي، نو موږ څه حاجت او اړتيا لرو چې د تقليد يا اظهار فضـــيلت په وجه دغه لفظاً او معناً نااشـــنا شـــي پســـې دومره ټينګـار وکړو. مـا لـه ځينو علمـاوو څخـه اورېدلې دي، چې د حـل و عقـد ((اهل)) داســې کســان وي چې له کبايرو او صــغايرو ګناهونو څخه مبرا او په**

تقوا او اسلامي فضيلت مشهور او فرښته خويه سړی وي. موږ په خپله بايد وجداناً سوچ وکړو چې دغسې شخصيتونه يو، يا دومره ډېر دغسې شخصيتونه موندلی شو، چې ټول خلک د معصوميت او بې ګناهۍ شهادت پرې وکړي؟ اوکه بيا دغسې اشخاص، هغه هم د اسلامي ګوندونو له غړو څخه پيدا هم کړو، ايا د افغانستان د ټولو قومونو او قشرونو نمايندګي کولای شي او ټول خلک يا اکثره خلک د دوی پر پرېکړو قانع کېږي. يا ټولنيز عدالت په دې توګه تامينېدای شي؟ برسېره پر دې د لويې جرګې جوړښت، ترکيب او نمايندګي هسې چې په لويو جرګو معمول وي او موږ پېشنهادکړی دی، بالکل اسلامي او عادلانه او خلکو ته د منلو وړ دي اوکه رعايت يې وشي د هغې له فيصلو څخه هم څوک سرغړونه نه‌کوي. د دې ليکنې په پای کې بايد يادونه وکړو، چې په دې ورځوکې د لويې جرګې پر ځای د حل و عقد د شورا غوندې د يوې بلې نامفهومې او نا اشنا پديدې ((مجلس موسسان)) خبرې هم اورېدلې کېږي. موږ چې په دې ورځوکې د مجلس موسسان خبره واورېده، نو داسې راته وايسېده، چې زموږ دغه ورونه‌ګوندې نوی دولت جوړوي او نوی مملکت تاسيسوي. خبره دا ده چې : افغانستان يو مملکت دی. يو دولت دی، د دولت شکل يې بدلېږي رابدلېږي. موږ نوي څه نه جوړوو، بلکې د دولت يو داسې شکل جوړوو، چې ټولو ته د منلو وړ وي، نو ځکه موږ مجلس موسسان ته ضرورت نه لرو. که چاته د افغانستان د خلکو روحيات معلوم وي، هغوی يوازې د لويې جرګې پر پرېکړو قانع کېږي او هغو ته درناوی‌کوي. حل و عقد او ورسره مجلس موسسان دوه داسې مېکانېزمونه دي، چې زموږ ټولنه او زموږ خلک ورسره بلد نه دي.

# د افغانستان په هکله د ملګرو ملتونو وروستی وړاندیز د منلو وړ دی که نه؟

دا وینا د (خپلواکي) مجلې په (٤)مه ګڼه کې پر (١٣٧٥ل)کال خپره شوې ده.

د (١٣٧٥ل)کال د اسد پر ١٢مه د (١٩٩١م د اګست دریيمه) د شنبې ورځې د سهار پر نهو بجو د ازاد افغانستان د ټولنې (وفا) له خوا د افغانستان په هکله د ملګرو ملتونو د عمومي منشي د پنځه فقره يي وړاندیز په باب د پېښور په ګرین هوټل کې يو سيمينار جوړ شوی و. په دغه سيمينار کې د افغانستان د اسلامي موقت دولت مشر محترم پروفيسور صبغت الله مجددي او د افغانستان يو شمېر ليکوالو، پوهانو او ژورناليستانو ګډون کړی و.

په دې سيمينار کې لومړی د ازاد افغانستان د ټولنې مشر پروفيسور عبدالرسول امين د سيمينار ګډون کوونکو ته ښه راغلاست ووايه او بيا يې خپله وينا واوروله. پروفيسور امين په خپله ويناکې وويل: ((نن ټولو ته جوته ده چې نړيوالو او سيمه ييزو حالاتو په دې وروستيو کلونو کې ژور او کيفي بدلون موندلی دی. د تېرې لسيزې ترخو تجربو د نړۍ خلکو ته دا څرګنده کړه، چې د لانجو او کشالو حل يوازې او يوازې په سوځوونکو او ورانوونکو شخړو او جګړو کې نه، بلکې په ګډه او سوله ييز تفاهم کې نغښتی دی. اوس د ملګرو ملتونو له خوا د نړۍ د زياترو سيمو د اوږدو لانجو د حل لپاره سياسي حلې ځلې روانې دي. د ملګرو ملتونو هڅې او نړيوال بهير

دا په ډاګه کوي چې د افغانســـتان لانجه یوه انتزاعي او مجرده مســـله نه ده، بلکې په نړیوالو او ســـیمه ییزو جریاناتو پورې تړلې ده. همدا راز د نړۍ او د ســـیمې د خلکو او قوتونو تمایل او علاقه هم د افغانســـتان دکشـــالې د حل لپاره، د دغه نړیوال بهیر په رڼا کې زیاته شوې ده.

د ملګرو ملتونو د سرمنشی وروستنی پیشنهاد هم له همدې بهیر څخه الهام اخیستی دی او په داسې شرایطو کې د افغانستان خلکو او نړیوالو ته وړاندې شـو، چې زموږ د هېواد او خلکو سـرنوشـت، ژوند او د بقا مسـالې ډېر ژور اهمیت مونـدلی دی. دا پنځه فقره ییز وړانـدیز د امریکـا د متحده ایالاتو، شـوروي اتحاد، پاکستان، ایران او سـعودي عربسـتان له خوا هم تایید شـوی دی. وفا چې یوه علمي، فرهنګي او څېړونکې ټولنه ده، نننی ســـیمینار یې د خپلو فرهنګي نوښتونو په لړ کې، د افغانستان د لانجې د سیاسي حل په باب د ملګرو ملتونو د سرمنشي د پنځه فقره یي پیشنهاد په باب د بحث او خبرو اترو په مقصـــد جوړ کړی دی. تاســـو ټولو ته څرګنده ده چې د افغانســـتان اکثریت خلک د یوې لسیزې څخه د زیاتې مودې راهیسې له یو ستر مصیبت او فاجعې ســره مخامخ دی او دا فاجعه د روســانو او د کابل د کمونســتانو له خوا زموږ پر خلکو تحمیل شـوې ده، خو کله چې د افغانستان د سیاسي حل موضوع رامنځته کېږي، نو د دغه هدف یوازینی او اغېزمنه وسیله، ډپلوماسي او ګډ تفاهم ګڼل کېږي، او ملګرو ملتونو موســـسه چې یوه بې طرفه موســسه ده او د نړۍ د ولســـونو ملاتړ یې تر شـــا دی، په دې برخه کې اغېزمن عمل ترلاســـه کولای شـــي. د افغانســـتان مطلق اکثریت خلک په افغانســـتان کې یو اســـلامي، افغاني او منتخب حکومت جوړېدل، د هېواد بشـــپړه خپلواکي، د خاورې تمامیت او د افغانســـتان ناپېیلتوب غواړي. همدا ډول د افغانســـتان ټول جهادي قوتونه، مهاجر او ټول خلک په دې عقیده لري، چې د افغانستان

د کشالې لومړنی شرط د کابل د رژیم ګوښه کېدل او د اسې یو سیاسي مېکانیزم ګڼي، چې د افغانستان د ټولو خلکو لپاره د منلو وړ وي.

د ملګرو ملتونو د سرمنشي پنځه فقره ییز پیشنهاد د افغانستان د خلکو ترمنځ بیلابېل انتبهات راوهڅول، چا هغه ګټور وبلل، چا هم مبهم او بې اغېزې وګڼل او چا پرې په مثبتو او ګټورو اړخونو ټینګار وکړ او ځینې برخې یې د اصلاح او وضاحت وړ وبللې. دې لپاره چې د ملګرو ملتونو د سرمنشي د پیشنهاد اساسي او مهم ټکي څرګند شي او په هغو کې د افغانستان د خلکو اساسي غوښتنې او اهداف وڅېړل شي او همدا ډول د دې پیشنهادونو په باب ازاد او بې طرفانه قضاوت وشي، موږ دغه سیمینار جوړ کړ. د دې سیمینار څخه هدف د افغانستان د مسلې په باب د افغانانو ترمنځ د نظر د یووالي او نږدېوالي او تفاهم رامنځته کېدل دي...))

# د تنظیمونو او د دوی د حامیانو ټولې هلې ځلې د ملګرو ملتونو د سولې د عملیې د شنډولو لپاره دي

دا مرکه د (وفا) جریدې په (۱۰۵)مه ګڼه کې د (۱۳۷۳ل) کال د چنګاښ میاشتې پر (۱۵)مه نېټه خپره شوې ده.

پوښتنه: د استاد رباني د حکومت د شپږ میاشتې مودې د اوږدېدو په باب ستاسې نظر څه دی؟

ځواب: زما په نظر که دا موده شپږ میاشتې وغځوي، که یې یو کال وغځوي او که یې دوه کاله وغځوي، دا به مشکلات نور هم زیات کړي. جګړې به نورې هم پیداکړي، کابل او شاوخوا غیر له هغې نه هم ټوټې ټوټې شوی دی. خلک مړه دي، نو زه فکرکوم چې دا د مسلې حل نه دی، بلکې مسلې به نورې هم مشکلې کړي.

پوښتنه: له بله پلوه مولوی صاحب یونس خالص هم ځان د جمهور رییس په توګه اعلان کړی دی، ستاسو په نظر ایا د هغه په خبره کې به څومره وزن پروت وي؟

**پروفیسور رسول امین: دا خو سړی په کلکه نه شي ویلای چې د دوی جمهور رییس کېدل به څوک ومني اوکه به یې نه مني، بلکې مسله دا ده چې څوک ځان د څه لپاره اعلانوي، چې زه جمهور رییس کېږم، اصلي خبره دا ده چې د افغانستان مسله په څه شي باندې حل کېږي. د هغې لپاره باید فکر وشي، نه دا چې د قیادي شورا بیا راژوندۍ شي. د دغو خلکو منډې رامنډې زما په نظر باندې دا یوازې او یوازې د ملل متحد د سولې د هغې پلان چې د افغانستان مسله به په سیاسي ډول حل کړي، د مخنیوي لپاره کېږي. بله مسله دا ده چې دوی او د دوی سره څوک کومکوه کوي، دوی نه غواړي چې دغه انحصار چې دې نهوو کسانو ته یې په لاس کې ورکړی دی، دغه مات کړي.**

**پوښتنه: په خپله د حکومت له لورې او مولوي خالص مور ته وویل، چې ملګري ملتونه هڅه کوي، افغانستان کې یو درېمګړی ځواک رامنځته کړي او هغه ځواک به د نورو زیاتو وینو د تویېدو سبب شي. له دې امله مور ته د منلو وړ نه دی، تاسو په دې باب څه وایئ؟**

**پروفیسور رسول امین: خبره دا ده چې افغانستان د ټولو افغانانو کور دی. دا افغانان چې په هرځای کې، په هره سیمه کې د هر قوم سره تړون لري، دا وطن د دوی ټولو ګډ کور دی. په افغانستان کې ټولو افغانانو قرباني ورکړې ده، جهاد یې کړی دی، ځانونه یې وژلي دي. دا نه د چا ټیکه ده، نه د چا انحصار دی، چاته چې چا پیسې ورکړې وي، چې څه ته ما مقرر کړې، چې ته به د دې ګوند یا پارټۍ مشر وې او ټیکه به ستا وي. زه ګومان کوم دا د افغانانو په پرېکړو پورې ارتباط لري، که افغانان دوی غواړي، دوی راتلای شي اوکه افغانان درېیم قوت غواړي، درېیم قوت راتلای شي. یانې دا د دوی**

انحصـــار نه دی او نه افغانان چاته دا حق ورکوي چې د دوی راتلونکی دې انحصار کړي.

پوښتنه: امین صاحب ستاسو نظر د OIC د اوسنیو هلو ځلو په باب څه دی؟

پروفیسور رسول امین: زه فکر کوم چې OIC راتګ هم د دې لپاره دی چې د ملګرو ملتونو داکومه پروســه چې ده، دا شــنډه کړي. هغه هېوادونه چې په OIC کې دي، دوی پـه افغـانســـتان کې هغـه کـار کوي چې هغوی بـه بیا پـه افغانستان کې انحصار راولي.

پوښتنه: امین صـاحب له بل پلوه تېره شپه د پاکستان د باندنیو چارو وزارت اعلان کړی چې ســر له ننه کوم څه چې په افغانســتان کې کېږي هغه به قانوني حیثیت نه لري، تاسو په دې هکله څه وایئ؟

پروفیســور رســول امین: تاســو ته معلومه ده، دغه خلک چې راغلي وو، د جلال اباد د تړون له مخې اته ویشــتم جون اخرنۍ ورځ وه، چې پرون تېره شوه. زه ګومان کوم چې اوس به په خپله دا حکومت چې افغانانو ورسره منلی هم نه و، د دی تړون له مخې غیر قانوني دی.

د امریکا غږ پښـتو څانګې د ازاد افغانسـتان د لیکوالو ټولنې له رییس ښـاغلي پروفیسو امین سره یوه مرکه کړې ده، چې لاندې وړاندې کېږي:

۱ – موږ ټول د دې تریخ واقعیت شـــاهدان یو چې د نهه ګوندونو خارجي پلویان همېشه په دې کوښښ کې دي، چې د افغانستان سیاسی انحصار د دغه ګوندونو پورې محدود وساتي.

۲ – اوس هم د دغو ګوندونو خارجي پلویان غواړي، چې د ملګرو ملتونو د ســولې هلې ځلې شــنډې کړي. په ظاهر کې دغه هېوادونه د ملګرو ملتونو

**هئيت سره د تائيد سر خوځوي، خو په واقعيت کې هغوی په افغانستان کې د ګوندونو مشـــرانو ته هدايات ورکوي چې په هره طريقه چې وي، د ملګرو ملتونو د هيئت په لاره کې خنډونه واچوئ او د دوی په خوله د ملګرو ملتونو هيئت او نورو خارجي هېوادونو ته وايي چې د افغانسـتان مسـله داخلي مسـله ده او يوازې دغه ګوندونه حق لري چې دوی قيادي شـــورا بيا جوړه کړي. د نهه ګوندونو دغه قيادي شـــورا دې موقت حکومت جوړ کړي. دغه قيادي شـورا دې د شـورا او يا لويې جرګې په نوم غونډه وکړي او د قيادي شـورا په خوښـه دې، انتخابات وشـي او د ملګرو ملتونو هيئت او د اسـلامي کنفرانس تنظيم دې د قيادي شـــورا او د قيادي شـــورا له خوا د ټاکلي وخت ســـره همکاري وکړي.**

**۳– د قيادي شـــورا ناکامه فورموله بيا عملي کول غواړي. د قيادي شـــورا له خوا د راولپنډۍ په حاجي کمپ کې حکومت جوړ شـو. د پېښـور د معاهدې له مخې قيادي شـورا حکومت جوړ کړ. د اسـلام اباد او جلال اباد د معاهدو پر اساس قيادي شورا حکومتونه جوړ کړل او دغه ټول حکومتونه نه يوازې له ناکامۍ سره مخامخ شول، بلکې د دغې قيادي شـورا حکومتونو د افغانسـتان مظلوم خلک له مرګ ژوبلې سره مخامخ کړل. د افغانستان پلازمېنه کابل يې له خاورو سره برابر کړ. سـلګونه زره ښـځې، ماشـومان او نارينه يې تېښـتې او اوارګۍ ته مجبور کړل. د همدغې قيادي شورا له خوا انتخاب شوي کسان او د دفاع وزارت په خپلو خلکو بمباري کوي. په توپونو يې ولي او په زرګونو معصـــوم انســـانان وژني او تېښـــتې ته يې مجبوروي. د قيادي شـــورا د بيا راژوندي کولو تر شاه دغه اهداف موجود دي:**

اول: د ګوندونو او تنظیمونو خارجي پلویان غواړي چې د قیادي شـــورا د زړې او ناکامې فورمولې پر اساس د ملګرو ملتونو د سولې هلې ځلې شنډې کړي.

دویم: خارجي دخیل حکومتونه غواړي چې د افغانستان سیاسي قدرت د نهه ګوندونو او تنظیمونو په انحصـــار کې وســاتي او افغانســتان داســې حالاتو ته ورسوي، چې یا یې د خپل کنټرول لاندې راولي او یا یې تجزیه کړي.

دریيم: د قیادي شـــورا د بیا راژوندي کولو لپاره هغه خلک کوښـــښ کوي، څوک چې د افغانستان پر ځای د وزارتونو، سفارتونو، ریاستونو، تجارت او یا نورو امتیازونو په تمه ناســت دي. دغه ډول خلک فکر کوي چې یوازې د قیادي شـورا له لارې هغوی دغه بې اسـتحقاقه حق ترلاسـه کولای شـي. که خبره دېته راشي چې کار دې اهل کار ته وسپارل شي، نو بیا دوی د اهلیت په لحاظ دوی ته څوک دغه امتیاز نه شي ورکولای.

څلورم: اوس د افغانستان مسله داخلي کشاله نه ده. زموږ دې غملړلې مسلې بین المللي بڼه غوره کړې ده. یوازې بې طرفه د ملګرو ملتونو لوی سکرتر او د افغانســـتان لپاره د ملګرو ملتونو هیئت زموږ د مســـلې د حل لپاره لاره پیداکولای شي. په دې شرط چې د امنیت د شورا دایمي غړي د افغانستان د سـولې لپاره جدي موقف وښـایي. ګاونډي او نور دخیل حکومتونه په خلوص د ملګرو ملتونو د هیئت ملاتړ وکړي او له ټولو نه مهمه دا ده چې د افغانانو لوی خاموش اکثریت د ملګرو ملتونو د سولې د هیئت تر شاه ټینګ ودرېږي او د خارجیانو له خوا تحمیل شوی انحصار مات کړي او خپل حق واخلي.

# ځینې تنظیمونه د خپلو باندنیو پلویانو په لمسون د ملګرو ملتونو د سولې د عملیې په لاره کې خنډونه اچوي

| |
|---|
| دا مرکه د (وفا) جریدې په (۱۰٦) مه ګڼه کې د (۱۳۷۳ل) کال د چنګاښ میاشتې پر (۲۲) مه نېټه خپره شوې ده. |

د اسلامي کنفرانس د لوی سکرتر ښاغلي دوکتور الفابد سره د افغانستان د تفاهم او ملي وحدت د شـــورا د غړو د کتنې په رابطه د ازاد افغانســـتان د لیکوالو ټولنې مشر پروفیسور رسول امین د امریکا غږ پښتو څانګې ته وویل: د اسلامي کنفرانس د لوی سکرتر دوکتور حامد الفابد په بلنه د تفاهم د شورا غړو د شـــیخ الحدیث مولوي تره خېل په مشـــرۍ له نوموړي ســـره ملاقات وکړ.

په دې غونډه کې مولوي تره خېل، دوکتور حامد الفابد ته وویل: د راولپنډۍ له حاجي کمپ څخه نیولې پېښـــور، اســـلام اباد او جلال اباد د تړونونو او موافقو پر اســـاس د افغاني تنظیمونو مشـــرانو حکومتونه جوړ کړل. اما د دغو تنظیمونو مشـــرانو ټولې معاهدې ماتې کړې دي او دې مشـــرانو افغانانو ته د قتل او غارت، تباهۍ او د ښارونو له بربادۍ پرته بل هېڅ نه دي ورکړي. موږ ټول پوهېږو چې ځینو باندنیو هېوادونو د دې تنظیمونو په مشـــرانو پولی او مالي سرمایه ګذاري کړې ده او د دوی پلویان تل زیار باسي چې د افغانستان

پراخه پرګنې د خپل سرنوشت له حق څخه محروم وساتي او زمونږ د هېواد د ټولو ولسونو سیاسي انحصار د دې تنظیمونو د مشرانو په لاس کې وي.

د دې تریخ واقعیت ثبوت دا دی چې د دې تنظیمونو مشـران د خپلو باندنیو پلویانو په لمسون د ملګرو ملتونو د سولې د عملیې په لارکې خنډونه اچوي او دغه باندنی هېوادونه په دې کوښښ کې دي چې ستاسو د اسلامي کنفرانس په وسیله د دغو اشخاصو مړه قیادي شورا بیا راژوندۍ کړي او د دغې قیادي شـورا له لارې په افغانانو باندې تحمیل او انحصـار لا ټینګ کړي. که تاسـو د اسـلامي کنفرانس د لوی سـکرتر په حیث د ځینو خارجي هېوادونو په خوښـه دغه مړه قیادي شــورا بیا راژوندۍ کړئ، نو مونږ افغانان تاســو ته په ډاګه وایو چې ستاسو دغه هلې ځلې له ناکامۍ سره مخامخ کېږي او د جګړو د دوام نه غیر بله هېڅ نتیجه نه ورکوي. مونږ د دتفاهم د شورا ټول غړي د افغان مظلوم ولس په نمایندګۍ له تاسو څخه هیله کوو، چې تاسو د هرې نتیجې او فیصلې ترمخه د افغانسـتان د ټولو قشـرونو د نماینده ګانو سـره وګورئ او له افغانانو څخه پوښتنې وکړئ، چې افغانان څه غواړي او د خپلې مسلې د حل لپاره څه وړاندیزونه لري؟

مونږ پوره باور لرو چې د افغانســتان لوی اکثریت د ملګرو ملتونو د ســولې د عملیې کلک ملاتړ کوي. افغانان د دې مشــرانو د قدرت لپاره د جګړو څخه ســتړي شــوي دی. افغانان ســوله غواړي. مونږ د ملګرو ملتونو په همکارۍ د یوې ټاکلې مودې پورې د یو بې طرفه حکومت غوښــــتونکي یو او افغانان واقعي نمـاینـده لویـه جرګـه غواړي، چې د ملګرو ملتونو پـه همکـارۍ خپـل سرنوشت او خپل راتلونکي زعامت په خپله وټاکي.

موږ افغانان له تاسو څخه هیله کوو، چې ستاسو اسلامي کنفرانس او د ملګرو ملتونو د سولې هیئت دې د افغانستان د سولې لپاره خپل فعالیتونه منسجم کړي او اسلامي کنفرانس او ملګري ملتونه دې په ګډه د سولې د یوې داسې فورمولې لپاره کار وکړي، چې د افغانستان د خلکو لوی اکثریت ته د منلو وړ وي او افغانستان د دغو څو اشخاصو له تحمیل او انحصار څخه خلاص کړي. ښاغلي دوکتور حامد الغابد او ورسره هیئت ټولو غړو په ډېر دقت د تفاهم د شورا د غړو خبرو ته غوږ نیولی و او د یو ساعت او پنځلس دقیقو د خبرو په پای کې د اسلامي کنفرانس لوی سکرتر وویل: ((د اسلامي کنفرانس او د ملګرو ملتونو د سولې د هیئت ترمنځ رقابت او مخالفت نه شته. لکه څنګه چې تاسو وایئ، موږ دواړو هیئتونو خپل فعالیتونه منسجم کړي دي. اسلامي کنفرانس او د ملګرو ملتونو هیئت د سولې لپاره ګډه همکاری کوی او موږ زیار باسو چې د سولې یوه داسې فورموله پیداکړو چې د افغانستان اکثریت ته د منلو وړ وي او هم د عملي کېدو وي. اسلامي کنفرانس او ملګري ملتونه غواړي چې د باندنیو د لاسوهنې څخه پرته دې افغانان خپل سرنوشت د خپلو نیکونو د عنعنو پر اساس وټاکي...))

# د هرات غونډې مثبتې او منفي خواوې دواړه درلودې

دا مرکه د (وفا) جريدې په (۱۰۹)مه ګڼه کې د (۱۳۷۳ل)کال د زمري مياشتې پر (۱۲)مه نېټه خپره شوې ده.

د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر پروفيسور رسول امين د (۱۹۹٤م) ميلادي کال د جولای د اته ويشتمې پر ماښام د هرات د غونډې په باب له امريکا غږ سره يوه مرکه وکړه، چې غټ ټکي يې دلته وړاندې کېږي:

پروفيسور امين د خپلو خبرو په پيل کې په عام ډول دا وويل چې هر افغان دا حق لري، د خپل هېواد د دې غملړلې شخړې د خلاصون لپاره لارې چارې وسنجوي او په دې برخه کې هڅه وکړي، څو وطن له دې روان ناورين څخه نجات پيداکړي، خو اساسي خبره دا ده چې هلې ځلې بايد مفيدې ثابتې شي او د افغانســتان د لانجې دا غوټه پرانيزي او نه دا چې يوه بله غوټه پرې ور اضافه کړي. د هرات د غونډې په اړه زما مشخص نظر دا دی، چې دې غونډې مثبتې او منفي خواوې دواړه درلودې:

۱ – غونډې فيصله وکړه چې د افغانستان د لانجې د حل لپاره دې يوه لويه جرګه جوړه شي، دا پرېکړه يو مثبت انکشاف دی، ځکه بخوا چې به چا ويل چې لويه جرګه دې جوړه شي، نو دغو تنظيمي کسانو به د لويې جرګې د نوم په اورېدو به د لويې جرګې په پلويانو مختلفې ټاپې لګولې، کله يې کمونستان،

کله یې ملحدان او کله به یې د CIA ایجنټان بلل. نن دوی ته هم معلومه شــوه چې بې د لویې جرګې د جوړېدو بله لاره نه شـــته، خو لویه جرګه به شــرایط لري او هغه دا چې لویه جرګه به د یوې بې طرفه مرجعې له خوا دعوت کېږي او د غړو په تعین کې به یې د تنظیمونو او تنظیمونو ته د منصــوبو کســانو څه لاس نه وي.

۲– په غونډه کې خارجي مداخله وغندل شـوه. موږ تل دا چیغې وهلې چې د افغانســـتان مســـله خارجي مداخلو کړکېچنه کړې ده، بېلابېل هېوادونه په افغانسـتان کې خپلې ډلې لري او دا ډلې د خپلو خارجي حامیانو په اشـاره کار کوي، څه چې ورته ویل کېږي هغه کوي، افغان مظلوم ملت او وران هېواد ته جزي ترین نظر او التفات هم نه کوی. دا ښه وشول، چې دوی (تنظیمونو) دا مداخله وغندله، لاکن د مداخلې ماهیت یې نه دی څرګند کړی. د هر تنظیم مشـر او غړی یې فکر کوی چې د دوی خارجي پلویان دوسـتان دي، د دوی د خارجي پلویانو مداخله، مداخله نه ده او د نورو تنظیمونو حامیان مداخله ګر ګڼل کېږي. حال دا دی چې د ټولو تنظیمونو حامیان مداخله کوي.

۳– بلـه د یـادونې وړ خبره پـه دې غونـډه کې دا هم وشـــوه، چې دوی (تنظیمونو) خپله وویل چې ملت خپل سـرنوشـت باید خپله وټاکي. موږ به تل ویل چې د افغانستان مسـله باید د تنظیمونو له انحصار او ولکې څخه ووځي او دا دی نن دوی هم دې خبرې ته راغلل چې د افغانسـتان کشـاله د انحصـار له لارې حل نه مومي. د دغو ښــو اړخونو تر څنګ دې غونډې منفی خواوې هم درلودې، چې زما په نظر هغه دا دي:

الف: دا غونـډه بې طرفه غونـډه نـه وه، دا پـه دې مـانـا چې د یوې بې طرفې مرجعې له خوا نه وه رابلل شـوې؛ ټولې ذیدخله خواوې په کې نه وې شریکې

شـــوې، همه جانبه نه وه او خپل خاص تنظيمي اړخ يې درلود. د دې غونډې دا پرېکړه چې استاد رباني دې د شپږو مياشتو لپاره نور هم د جمهور رييس په توګه پاتې شي. د تنظيمي غونډې څخه پرته بل هېڅ بنه يې نه درلوده.

ب: غونډې ته په داخل او خارج کې ډېر کسان بلل شوي وو، خو هغه کسان يې په غونډه کې د اشتراک لپاره بوتلل، چې د دوی خوښ وو، هر باصلاحيته افغان ته په جرګه کې د ګډون حق نه و ورکړل شوی.

ج: درېيمه عمده نيمګړتيا يې دا وه، چې دوی وويل؛ ملګري ملتونه بايد د لويې جرګې د جوړولو د پولي وجوهاتو په تامين کې له دوی ســـره مرســـته وکړي، دا خبره هم د تاييد وړ نه ده، ځکه د ملګرو ملتونو د منځګړتوب څخه پرته او د دوی له ســـرپرســـتۍ ماوراکې لويه جرګه د يوه تنظيم او يا تنظيمونو له خوا جوړېږي، هغه هېڅ ګټه نه لري، موضـــوع نوره هم کړکېچنه کوي، هېواد او ملت د تباهۍ پر لوري بيايي، بهترينه لار دا ده چې ملګري ملتونه د يو بې طرفه جهاني ســـازمان په توګه د افغانانو په موافقه او د دوی په مرسته يوه لويه جرګه راوغواړي، دغه لويه جرګه د موقتي دورې لپاره زعامت وټاکي او نور مهم مســـايل چې معمولاً يې لويې جرګې فيصـــله کوي، فيصـــله کړي. زما په نظر د ملګرو ملتونو د مســـتقيمې مرســـتې څخه پرته نورې ټولې تنظيمې غونډې د افغانســـتان کشـــاله د حل پر ځای نوره هم پېچلې کوی او نورو جګړو او وينو تويولو ته لار هواروي.

# د ملګرو ملتونو هڅې ناکامې نه دي، يوازې ځينو خلکو خنډونه په کې پيداکړل

**دا مرکه د (وفا) جريدې په (۱۱۳)مه ګڼه کې د (۱۳۷۳ل) کال د وږي مياشتې پر (۱٦)مه نېټه خپره شوې ده.**

د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر پروفيسور عبدالرسول امين د ملګرو ملتونو د خاص هيئت په چارو کې د خنډونو د رامنځته کېدو په باب له بي بي سي سره يوه مرکه وکړه، چې متن يې په لاندې ډول دی.

له دوی نه د ملګرو ملتونو د خاص هيئت او د تنظيمونو د غونډې په ارتباط پوښتنه وشوه، پروفيسور امين په دې ارتباط وويل: دا خبره څوک په قاطع ډول نه شي کولی، چې د افغانستان لپاره د سولې د هيئت د مشر ښاغلي محمود مستيري هڅې له ناکامۍ سره مخامخ شوې دي، زما په نظر که څوک دا ووايي چې دا هڅې ناکامې شوې، دا سمه خبره نه ده، البته له مشکلاتو سره مخامخ شوې دي.کومه غونډه چې د ښاغلي مستيري او د تنظيمونو ترمنځ بايد په اسلام اباد کې شوې وای، هغه ونه شوه او د ځينو تنظيمونو استازو مختلفې بهانې وکړې او پر همدې اساس غونډه جوړه نه شوه.

اصلي خبره دا ده چې د افغانستان خلک سوله غواړي، په څه ډول چې سوله راتلای شي او څوک چې د سولې په راوستلو کې موثريت لري، هغه ته بايد حق ورکړل شي او له هغه څخه استفاده وشي. دا خو څه د ټيکي خبره نه ده چې د افغانستان ټول مسايل او هر څه ځينې خلک په خپل ځان تمامول او د

**ځان حق يې بولي، که د اعليحضـرت ظاهرشـاه خبره راشـي، وايي مور يې نه منو، که د بل چا نوم ياد شـي بيا نورې سـل بهانې وړاندې کړي، اوس چې د دوستم خبره ده، دوی وايي چې دی کمونست دی، که دی کمونست و، ولې پروسـږکال په ارګ کې کېنول شـو. زما په عقيده هېڅوک دا حق نه لري چې ووايي دا منم او دا نه منم، ځکه هر افغان حق لري د خپل هېواد په سرنوشت ټاکلو کې برخه واخلي او دا چې له ځينو سـره غټې ټاپې دي، چې د سـولې خبره راشي، نو دوی خپلې ټاپې راوباسي او په هر چا خپله خپله ټاپه ولګوي، وايي پلانی ملحد دی، پلانی کافر دی، پلانی دې وي او پلانی دې نه وي، هغه چې وي ځکه زه سـوله نه کوم، به خبرو کې برخه نه اخلم، دا مخصـد بهانې، د وخت ضـايع کول او جنګ ته دوام ورکول دي. په دې مسـله کې ځينې خارجي فکتورونه هم موثر دي، په دوی باندې سـرمايه ګذاري شـوې ده، دغه خارجي قوتونه غواړي چې د دوی طرفداران بايد هلته په افغانسـتان کې قدرت ولري. خو خبره دا ده چې دوی د افغانسـتان مسـله نه شـي حلولای، که دغو تنظيمونو او د دوی طرفدارانو دا مسله حل کولای شوای، نو په دې دوه نيمو کلونو کې به يې حل کړې وای او دا څرګنده شوې ده، چې د افغانسـتان مسـله د ملګرو ملتونو څخه پرته بل څوک نه شـي حلولای، د افغانستان په جګړه کې ښکېلې ډلې په پوره توګه له ناکامۍ سره مخامخ شوي دي، ملګرو ملتونو چې دسـولې کومه پروسـه شـروع کړې ده، چې کاميابۍ طرف ته روانه ده، تنظيمونو چې کوم کارونه په افغانسـتان کې وکړل، دا ترې معلومېږي چې هغوی د دې قدرت نه لري، چې د افغانستان مسله حل کړي. دوی غواړي چې په خلکو خپل اقتدار وتپي، خو د دوی دا عمل د افغانستان د خلکو د منلو وړ نه دی، که دا تنظيمونه اوس د ملګرو ملتونو په کارونو کې**

خنډونه پیداکوي، خو اخر به دا پروسه مني او هغه به دا سې وخت وي چې افغانستان به یې نور هم ټوټه ټوټه کړی وي.

پوښتنه: ځیني خلک اوس د لویې جرګې خبرې کوي، تاسې دا ډول جرګې څه ډول ارزیابي کوئ؟

پروفیسور امین: په پښتو کې یو متل دی، چې مار خوړلی له پړي هم ډارېږي، څنګه چې د افغانستان خلک په تېرو شپاړسو کلونو کې ډېر ځورېدلي، ربړېدلي او د دغو خلکو له شوراګانو هم ستړي شوي دي، نو ځکه اوس د دوی هر کار ته د شک په سترګه ګوري. که دوی د لویې جرګې په نامه خپل خلک راوغواړي او خپل خلک بیا کېنوي او بیا ځان پرې ومني، نو د دې کار نتیجه به دا وي چې په افغانستان کې به جنګ جاري وي، زه ګومان کوم چې د افغانستان د خلکو زړه اوس له دوی تور شوی دی، یوازې دومره خبره پاتې ده چې ووایي د افغانستان ټول خلک دې بیدیا ته لاړ شي، افغانستان دې همدوی ته پرېږدي چې دوی یې په پاتې کنډوالو حکومت وکړي.

# د پخواني پاچا اساسي هدف افغانانو ته د خپل سرنوشت حق ورکول دي

دا مرکه د (افغانان) جريدې د لومړي کال په (۱) گڼه کې د (۱۳۷۹ل) کال د جوزا مياشتې پر (۱۵) مه نېټه خپره شوې ده.

د (۲۰۰۰م) کال د مې د مياشتې پر ۱۲ ماښام د امريکا غږ د پښتو خپرونې د خبرو اترو پروگرام ته د افغانستان د مطالعاتو مرکز مشر پروفيسور عبدالرسول امين رابلل شوی و، دلته موږ ددغو خبرو متن لوستونکو ته وړاندې کوو:

په سر کې د پروگرام کوربه له ښاغلي پروفيسور امين څخه وپوښتل چې په افغانستان کې د سولې د راوستو په هکله د پخواني پاچا اعليحضرت ظاهرشاه د کوښښونو په لړ کې، امريکا کې د افغانستان د چارو څارونکي څوک يو شی وايي او څوک بل شی، ياني په اتفاق نه دي، ځينې خلک وايي چې د ظاهر شاه خان نه بغير د افغانستان کشاله په بل چا نه جوړېږي او ځينې نور بيا داسې وايي چې د ظاهر خان له دې جرگو او هلو ځلو نه هېڅ شی نه جوړېږي او دليل هم دا راوړي چې په دې جرگو کې اکثره داسې خلک دي چې د وطن له حال نه هېڅ خبر نه دي، مثلاً له دغو نه يو سړی مايکل روبن نومېږي، چې د ((بن)) په پوهنتون کې استاد دی او په دې تازه وختونو کې افغانستان ته تللی و او هلته يې خلکو سره خبرې کړې دي او کله چې بېرته دلته راغلی بيا يې ويلي چې هلته هېڅوک ظاهر خان نه غواړي، دا خبره رښتيا ده که څنگه؟

**په دې هکله پروفیسور عبدالرسول امین وویل: دا چې ځینې خلک وايي چې ظاهرشـاه په افغانسـتان کې رول لري او ځینې خلک وايي چې رول نه لري، زما په ګومان دا دوه ډوله خلک دي، یو هه خلک دي چې هغوی افغانسـتان کې خپل خلک لري او غواړي چې د دوی په نظر راتلونکی افغانسـتان هم هغه شـان جوړ شـي، څنګه چې دوی یې غواړي، بلکې په افغانسـتان کې د خلکو د حق خود ارادیت پر ځای غواړي چې هغه خلک مسـلط کړي چې دوی ورته مشخص ماموریت ورکړی دی. دا اصلاً یو پروګرام دی چې دوی وايي، ظاهرشـاه په افغانسـتان کې نه څوک غواړي او نه یې څوک پیژني، بله برخه د افغانسـتان خلک دي یانې افغان ولس دی چې د دغو جنګي ډلو له خوا نه یرغمل نیول شـوي دي، دا ټول ظاهرشـاه غواړي. ځینې خلک چې له غرب نه راشـي او دلته دوه درې ورځې تېرې کړي، دا خلک دلته د ځینو مشـخصو ډلو سره ګوري، زه باید ووایم چې په دغو یوویشـتو کلونو کې چې دلته له غرب نه ځینې عالمان یا ژورنالسـتان یا نور راغلي دي او دلته یې له چا سـره کتلي دي او هغوی ورته یو مشـخص نظر ورکړی دی، بیا نو دوی چې بېرته تللي دي، ځانونه ورته د افغانسـتان متخصـصین ښکاري او داسې فکر کوي چې موږ نو د افغانستان متخصصین یو او بیا په خپل هغه نظر ټینګ ولاړ وي چې دوی له ځینو ډلو څخه دغه مشخص نظر اخیستی دی.**

**پوښـتنه: ډېر خلک په دې فکر کې دي چې په دې یووشـتو کلونو کې چې پر افغانستان دغه بده وضعه ربوانه وه، ظاهر خان د کمونستي کودتا نه وروسته یوه ورځ هم د افغانستان د مظلومو خلکو شکایت کوم ځای کې نه دی کړی، کوم ځای ته نه دی تللی، کوم ځای کې یې بیان نه دی ورکړی، کوم داسـې کنفرانس یې نه دی جوړ کړی چې خلکو ته ووایي، چې په افغانانو ظلم کېږي او کله چې روسـان افغانسـتان ته راغلل، نو بیا یې هم ونه ویل چې روسـانو په**

**افغانســـتان حمله کړې، په افغانانو يې ظلم کړی؟ په دې هکله تاســـو څه وایاست؟**

**پروفیسـور امین وویل: زه داسـې فکر کوم چې دا هم د هغو تبلیغاتو یوه برخه ده چې ما دلته د دوی په اصـطلاح د ځینو سـرکاري منابعو څخه اورېدلې ده، اما تر هغه ځایه چې په پخواني پاچا پورې ارتباط لري، ده همېشـــه د افغانانو ملاتړ کړی دی، د مثال په توګه څو ورځې مخکې په اســـلام ابادکې زه له چاسره ناست وم، هغه هم همداسې وویل چې پاچا په کال کې یو بیان ورکوي او بس. نو ما ورته وویل چې د پخواني شـــوروي اتحاد د باندنیو چارو وزیر شـــواردنادزي پاچا ته ورځي او هغه ته وایي چې ته راشـــه او قدرت مور. تاته درسـپارو، همداسـې د نجیب الله اسـتازی ورغلی و او ده ته یې دا خبره کړې وه او ده ونه منله، حتی هغوی دا خبره هم کړې وه چې ســـتا په طرفدارۍ به کودتا وشي او د کودتا له لارې به قدرت تاته درکړل شي، نو دا خبره هم هغه ورســـره نه ده منلې، نو ما ورته وویل چې هغه نه غواړي چې کومه بله جبهه ځان ته خلاصه کړي یا ګاونډیو ملکونو ته کومه ستونزه پیداکړي، نو یو سړی چې د ســتونزې د پیداکولو مخالف وي او غواړي چې د افغانســتان مســاله د سولې له لارې حل شي، نو تاسو د هغه ا د سولې کوښښونه ولې داسې ګڼئ، چې ګوندې پخوانی پاچا په افغانستان کې عملي ګام نه دی اخیستی، ده په دې یوویشتو کلونو کې یوازې د سولې لپاره کار کړی دی او د پخواني پاچا په نظر ســوله هغه وخت راتللی شــي، چې خپله افغانان او ګاونډیان ســره کېني او په افغانستان کې د داسې یو حکومت د جوړولو کوښښ وکړي چې هغه دوست حکومـت وي او هغـه د وینو تویولو او د قومونو ترمنځ د تفوق نـه پرتـه د وروري فضا رامنځته کړي.**

پوښتنه: دلته خلک بیا دا خبره کوي چې د پخواني پاچا تر څنګ هغه خلک راټول شوي چې په افغانستان کې ماموران وو او په افغانستان کې یې لوړ لوړ مقامونه لرل، حتی ځینې خلک دا هم وايي چې دا افغانستان چې دې حد ته رسېدلی د همدوی له لاسه دی؟

پروفیسور امین په ځواب کې وویل: ماته دا خبره سمه نه ښکاري ځکه هغه افغانان چې دلته یې ځینې کارونه کول هغوی یې دلته پرې نه ښودل، په تېښته یې مجبوره کړل، ځینې یې مړه کړل، ځینې یې د صحنې نه وایستل او هغو خلکو ته چې د افغانستان په هکله خاص ماموریت ورکړل شوی و هم هغو ته وسلې او پیسې ورکړل شوې او د هغوی له لارې یې دغه افغانان مجبوره کړل چې وتښتي، البته دوی دا غوښتل چې هغه افغانان چې واقعاً د افغانانو او افغانستان لپاره کار کوي، باید په افغانستان، پېښور او ایران کې پاتې نه شي.

د پخواني پاچا په هکله باید ووایم چې د هغه اوله خبره دا ده چې زه په افغانستان کې پاچاهي نه غواړم، ده په خپله وروستنی اعلامیه کې دا هم ویلي چې هغه د خپلې پروسې لپاره کوم مشخص نماینده یا نماینده ګان نه لري. د پخواني پاچا د وینا له مخې د ده د سولې د پروسې د عملي کولو نماینده ګان په خپله د افغانستان خلک دي، ټول قام او ولس دی، د پاچا د سولې د پروسې لپاره هر چاته یوه مشخصه وظیفه او ماموریت ورکړل کېږي، څه وخ چې د دغه شخص یا اشخاصو مشخص ماموریت پایته رسېږي، بیا وروسته نور اشخاص موظف کېږي او هغوی د ټاکلې وظیفې په اړوند خپل ماموریت ته دوام ورکوي، تر څو چې خپله وظیفه پایته ورسوي او نورو افغانانو ته راتلونکی ماموریت ور وسپاري. پخوانی پاچا د افغانستان د راتلونکي موقتي حکومت لپاره یو داسې پلان او ترکیب چې پلانی او پلانی به افغانستان ته ځي او هلته به موقتي حکومت جوړوي، نه لري. د پاچا په نظر دا د افغانانو

خپل کار ی چې هغوی خپل منځ کې ســـره کېني او ګاو ندیانو او بین المللي ټولنو سره خبرې وکړي او د خپل منځي مشورې پر اساس د موقتي دورې د حکومت لپاره لار هواره کړي. ټول افغانان په دې واقعیت پوره پوهېږي چې په طالبانو او د شـمال په اتحادکې هم داسې پراخ نظره اشـخاص وجود لري چې هغوی په ټول افغانسـتان او د ټولو افغانانو په ښـېګڼو فکر کولای شي او دغه اشخاص هم په راتلونکي موقت حکومت کې موثر رول لوبولای شي.

د پښتواني پاچا د ټولو هلو ځلو یو هدف، دوه وســـیلې او یوه منطقي نتیجه ګیري ده. د پاچا اساسي هدف افغانانو ته د خپل سرنو شت حق ورکول دي. په ټوله نړۍ کې د خود ارادیت حق یو منل شــوی واقعیت دی او د نړۍ ټول قامو نه دغه حق په ازادانه توګه اســتعمالوي. دغه حق پاکســـتان، ایران او د اسلامي نړۍ ټول ولسونه هم استعمالوي. افغانستان هم د دې نړۍ یوه برخه ده او د دې هېواد ټول اوسېدونکي دا حق لري چې د خپل سرنوشت واک په خپل لاس کې ولري او دوی په خپله د خپل ســرنوشــت فیصـــله د ټوپک پرځای د رایې له لارې وکړي، ځکه چې دغه فیصله د توپ او ټوپک په خوله نه، بلکې د رایې له لارې کېږي چې د افغانســتان خلک چاته د مشــرتابه دغه درونند بار په اوږو ږدي، د پاچا په نظر اضطراري لویه جرګه او په خپله پاچا د حق ارادیت د هدف لپاره دوه موثره وســیل دي، نه اضــطراري لویه جرګه او نه د پاچا اهداف دي، له دغه اساسي هدف او دوو موثرو وسیلو څخه منطقي نتیجه ګیري په افغانستان کې د یو دوست حکومت منځته راتګ دی چې دغه دوســت حکوم تبه د ټولو ګاوندیو هېوادونو ســره دوســتانه روابط لري او د خپل منځي ملي ګټو پر اساس به د یو بل سره راکړه ورکړه کوي. دغه دوست حکومت به نه د یو ګاوندي او نه د بل ګاوندي تر لاس لاندې وي، بلکې د ټولو ګاوندیانو ســره به د وروروولۍ او برابرۍ په اصــولو چلېږي. اوس ټول

افغانان په دې تریخ واقعیت ډېر ښــه پوهېږي چې پردو مداخلو او د ځینو ډلو افراطیت افغانســـتان او افغانان دواړه تباه او بربادکړل او له دې وروســـته په افغانستان کې افراطیت هیڅ ځای نه لري.

پوښــتنه: زه د ظاهر خان نوم نه یادوم ځکه چې رښــتیا هم ظاهرخان ته خلک احترام لري او دې کې شـــاید چې هېڅوک هم مخالفت ونه کړي، اما ســـوال دلته دی چې دغه خلک چې د ظاهرخان په نامه کار کوي، د دغو نه شـــاید د خلکو تشویش او وېره وشي؟

پروفیســـور امین وویل: دا خو په خپله د پخواني پاچا تکلیف نه دی، بلکې دا زموږ خپل تکلیف دی، ځکه چې زموږ او ستاسې ټولنه داسې راغلی مثلاً که زه یو چېرته لاړ شـم، نو شـاید په سـلوکې (۹۸) خلک زما مخالف وي چې دی ولې ولاړ، ځکه چې زموږ د ټولنې خصـوصـیات هم داسې دي او په دې فکر نه کوي چې په اوسـنیو شـرایطو کې په زرګونو او سـوونو افغانان نه شـي راټولېدی، بلکې دا خو د یو څوکســـانو خبره ده. دوی په دې فکر نه کوي چې د افغانستان مسـاله څنګه باید حل شي او د افغانانو ستونزه دې څنګه له مینځه ولاړه شــــي. بس همـدومره فکر کوي چې کـه زه پـه کې نـه یم، نو افغانستان دې سر وخوري.

پوښــتنه: کله چې مســعود او رباني په کابل کې وو، نه یې ســوله غوښــته، نه یې پاچا غوښته او نه یې د پاچا جرګې غوښتلې، اما کله چې له کابله وتل نو وایي چې ظاهرشاه دې راشي او سوله دې وکړي او موږ یې منو او زموږ قبول دی؟

پروفیســـور امین وویل: د افغانســـتان شـــرایط داسې راغلي دي چې یو وخت داســـې راغلی و چې خلق او پرچم په زور کې و، دوی به ویل چې بېطرفه، یعني بې شـرفه اوکه څوک د دوی مخالفت کوي، نو هغه دې باید توروکندو

ته ولېږل شي، نو بیا اسې وخت راغی، چې افغانان راپورته شول او وېې ویل چې افغانستان د افغانانو وطن دی او افغانستان به افغانان په خپله جوړوي او بیا داسې وخت راغی چې دوی دروازه په دروازه ګرځېدل او وزارتونه یې خلکو ته ورکول، خلکو وزارتونه نه اخیستل، نو دغه حالت د استاد رباني په وخت کې هم و، دا زموږ د افغانانو لوی ضعف دی، چې د قدرت په وخت کې د افغانستان او افغانانو پرځای په خپل ځان فکر کوو، نو باید چې هېڅوک داسې فکر ونه کړي چې زه په قدرت کې یم او له قدرت نه دې د ځان لپاره استفاده وکړم، نو باید ووایم چې دا د طالبانو لپاره هم یو لوی چیلنج دی چې خدای ناخواسته داسې وخت بیا رانه شي چې دوی بیاکور پر کور ګرځي او وایي چې راشئ موږ سره ملګري شئ او څوک به ورسره نه ملګري کېږي.

پوښتنه: تاسو د خلق او پرچم خبره یاه کړه، خلک وایي چې دغه کمونستان او خلق او پرچم خو ټول د ظاهرخان په وخت کې راپیدا شول؟

پروفیسور امین وویل: کله چې امریکایان پوښتنه وکړي، موږ ورته وایو چې داود خان اول ځل نظامي او اقتصادي وړاندیز تاسو ته کړی و، ولې تاسو مسترد کړو؟ بیا یې انګلستان ته وکړو، هغوی ولې مسترد کړو؟ او همداسې فرانسې ته یې کړی و، فرانسې ولې مسترد کړ؟ او ټولو به همدا خبره کوله چې که افغانستان سره موږ مرسته وکړو، د امریکا، انګلستان او فرانسې مرسته به زموږ د یو ملګري پر ضد باندې استعمالېږي، نو زه دوی ته وایم چې افغانستان خو تاسو یو کونج ته درواوه چې د شورویانو لاس ته ورشي او د افغانانو لپاره ځواب دا دی چې په ماضي باندې ټول پوهېږو، یوازینۍ خبره دا د چې دغه وطن چې د افغانانو وطن دی او نوم یې افغانستان دی او هر څوک چې په دې وطن کې اوسېږي هغه افغان دی، دغه افغانستان له دې جنجال نه څنګه خلاصولی شو، په ماضي کې خو دومره خبرې دي او ډېر

**کتابونه ورباندې لیکل شوي دي، ژوندي قومونه په اینده باندې فکر کوي او ما د اعلیحضـــرت نه یوه خبره اورېدلې چې دغه ماضـــي به تاریخپوهانو ته پرېږدو، خبره داده چې د دې حوزې خلک چې په هغه کې افغانســـتان، پاکستان، ایران، مرکزي اسیا او نور شامل دي په اینده کې څه کولی شو؟**

# افغانان حق لري چې د خپل هېواد سياسي زعامت، سياسي سيستم، سياسي– اقتصادي– اجتماعي پاليسي په خپله خوښه وټاکي

دا مرکه د (افغانان) جريدې د لومړي کال په (٤)مه گڼه کې د (١٣٧٩ل)کال د اسد مياشتې پر (٣)يمه نېټه خپره شوې ده.

څه موده دمخه د افغانستان د مطالعاتو مرکز مشر پروفيسور عبدالرسول امين د پخواني پاچا د يو هيئت په ګډون د پاکســتاني مقاماتو ســره د خبرو لپاره اسلام اباد ته تللی و، د افغانان جريدې خبريال د دغه هيئت د سفر د نتايجو په اړوند له ده سره مرکه کړې، چې دلته يې وړاندې کوو:

پوښتنه: محترم امين صاحب! له پاکستان مقاماتو سره د پخواني پاچا د سولې د هيئت خبرې څنګه رازيابي کوئ او ايا دغه هيئت کومه مثبته نتيجه ترلاســه کړه که نه؟

ځواب: بســم الله الرحمن الرحيم، تر ټولو دمخه بايد ووايم چې د دې هيئت درې تنه غړي د جولای پر اوولســمه نېټه اسلام اباد ته راورسېدل، د اسلام اباد په هوايي ډګر کې د پاکســتان د بهرنيو چارو د وزارت يو مامور هغوی ته هرکلی ووايه او اســتوګنځي ته يې راورســول، په اتلســم د جولای د بهرنيو چارو په وزارت کې له پاکســتان مقاماتو ســره ملاقات و، چې هلته په رســمي ډول هيئت ته هرکلی وويل شــو. د افغاني هيئت مشــر امين ارســلا و او همدارنګه رحيم شــېرزوی چې يو وخت پاکســتان کې د افغانســتان ســفير و، زلمی رســول د پاچا د دفتر رييس، ډاکتر محمد امين فرهنګ او زه په خپله د

هیئت غړي وو. د پاکستان له خوا د بهرنیو چارو وزیر عبدالستار، د وزارت سکرتر عزیزخان، عارف ایوب چې د افغانستان لپاره اوس سفیر ټاکل شوی دی، د افغانســتان ډســک ډایرکټر جنرل او د بهرنیو چارو د وزارت یو بل مامور ګډون درلود. په دغو مذاکراتو کې د افغانستان د مسلې په درېو اړخونو خبرې وشوې:

۱– د روم د پروســې په ترڅ کې د لویې جرګې د منځته راتللو د دلایلو په او هدفونو په باب خبرې وې.

۲– د افغانستان د اوسنۍ وضعې د څرنګوالي په باب خبرې وې.

۳– په دې موضــوع خبرې وې چې په افغانســتان کې دې څ ډول ســیاســي سیستم منځته راشي، چې په افغانستان کې دننه، له ګاونډیانو سره او په سیمه کې د امن ضمانت وکړای شي.

د اضطراري لویې جرګې په باب خبروکې داسې څرګنده شوه چې اضطراري لویه جرګه او په خپله پاچا، دوه وسیلې دي چې د افغانستان د خلکو د خود ارادیت لپاره لاره خلاصــوي. د نړۍ د نورو ولســونو په شــان د افغانســتان خلک هم دا حق لری چې د خپل هېواد ســیاســي زعامت، خپل راتلونکي سیاسي سیستم، خپل سیاسي اقتصادي اجتماعي پالیسي په خپله خوښه وټاکي.

د افغانستان خلک، د ثور له کودتا راهیسې دې نتیجې ته رسېدلي دي چې په افغانستان کې د سیاسي سیستم په اړوند د خلکو نه هېڅ پوښتنه نه ده شوې او اضطراري لویه جرګه د خلکو دغې غوښتنې ته مثبت ځواب دی.

د افغانستان په اوسنیو شرایطو کې پخوانی پاچا یوازینی سپین ږیری دی چې د هغه په شاوخوا خلک راټولېدای شي، هیئت په واضح ډول څرګنده کړه چې په دغه اضطراري لویه جرګه کې پاچا د خپل ځان لپاره د هېڅ مقام ارزو نه لري، د زعامت مسله باید خلکو ته پرېښودل شي، چې خلک څه ډول ملي زعامت غواړي او څرنګه زعامت ټاکي، په دې هکله په ډېر تفصیل خبرې وشو.

بله مسله د افغانستان د راتلونکي سیاسي سیستم او د افغانستان د ستراتیژیک موقعیت په ارتباط وه، په دې مانا چې افغانستان د ډېرو هېوادونو لکه پاکستان، ایران، تاجکستان، ازبکستان، ترکمنستان او چین سره ګډې پولې لري، که چېرې په افغانستان کې سوله وي او دغه سوله د افغانستان خلک د خپلې خوښې د یو سیاسي نظام تر چتر لاندې تامین کړای شي، نو د پاکستان په ګډون ټول ګاونډي هېوادونه کولای شي چې د افغانستان له لارې خپلو تجارتي، اقتصادي، سیاسي، علمي، فرهنګي او نورو مسایلو د راکړې ورکړې لپاره ډېره ښه زمینه او شرایط ترلاسه کړي.

ضمناً دا خبره په تفصیل یاده شوه چې څرنګه د افغانستان ګاونډیانو ایران او پاکستان چې د جهاد په دوران کې یې د افغانستان له خلکو سره مرسته وکړه، په همدې شان دې د پاکستان په افغانستان کې د سولې د راوستلو په لاره کې هم مرسته وکړي. مرسته په دې مانا چې ګاونډیان باید خپله سرمایه ګذاري په یو شخص، یو ګروپ یا یوې ډلې باندې ونه کړي، بلکې د افغانستان له ولس سره دې دوستي وکړي، ځکه چې د افغانستان ولس له ټولو ګاونډیانو سره دوستي غواړي، که چېرې په افغانستان کې د خلکو په خوښه حکومت منځته راځي، نو نتیجه به یې دا وي چې په افغانستان کې واکمن سیاسي نظام به د ټولو ګاونډیانو دوست وي او له ګاونډیانو سره به خپل دوستانه روابط په ښه

دوستانه توګه وساتلی شي. په خبروکې په دې باندې هم ټینګار وشو چې، په هر ملک کې سیاسي ګوندونه ځي او راځي، حکومتونه جوړوي، بیا ځي، خو یوازې ولس په خپل ځای پاتې کېږي. که چېرې له نورو ولسونو د ولس روابط ټینګ وي، نو ولس هېڅکله نه غواړي چې د بل دوست ولس مخالفت وکړي. له پاکستاني مقاماتو سره زموږ خبرې دوه ساعته روانې وې او دا خبرې په واقعیتونو ولاړې وې، پاکستاني مقاماتو ته د افغانستان دننه مشکلات ښه څرګند و. د افغانستان پر خلکو باندې فشار دوی هم احساس کړی دی، د سولې لپاره د هرې پروسې سره موافق و او له همدې امله یې د اضطراري لویې جرګې د جوړولو په هکله هم خپل ملاتړ وښود. تر هغه ځایه چې د مثبتې نتیجې خبره ده، سړی داسې نه شي ویلای چې په یوه غونډه کې دې زموږ پېچلې مسله حل ومومي، زما په نظر د اسلام اباد غونډه یوه مثبته شروع وه، خبرې بالکل واضح وې او منطقي وې، ځکه چې دواړه خواوې یو د بل په مشکلاتو ښه پوهېدل او دواړو خواوو په افغانستان کې د سولې غوښتنه کوله.

پوښتنه: د خبرو اترو مهمې نقطې کومې وې او په افغانستان کې دننه به ستاسو د مذاکراتو څرنګوالی به څه ښه ولري؟

ځواب: شک نه شته چې پاکستان د افغانستان په مسله کې یو مثبت رول لوبولی شي، خو په دې مسله کې دا هم ضرور ده چې په افغانستان کې دننه او په تېره د طالبانو او د شمال اتحاد سره خبرې حتمي کار دی، اوس هغه وخت رارسېدلی، چې افغانان به خپل ترمنځ خبرې کوي او په سلا مشوره به روانې ملي غمیزې ته پای ورکوی. د ایران او نوروګاونډیو سره به هم خبرې کېږي. هېڅوک دا نه شي ویلای چې دا مسله به یوازې پاکستان حلوي، دا مسله ډېره پېچلې ده، باید په ډېره هوښیارتیا پرمخ ولاړه شي. د روم پروسه

د اضطراري لويې جرګې څخه عبارت ده، اضطراري لويه جرګه يوه افغاني عنعنه ده، زه فکر کوم چې د ثور د کودتا راهيسې د ځينو په نزد خبرې سرچپه شوې دي، چې خپلې ملي عنعنې ورته پردۍ ښکاري او پردۍ ورته خپلې. که مور داسې ووايو چې اضطراري لويه جرګه د خارج مال دی، نو دا خبره به سمه نه وي، لويه جرګه د افغانانو تاريخي عنعنه ده او افغانانو تل له همدغې لارې خپل مشکلات حل کړي دي او حلوي يې، د ځينو بېګانه شويو افغانانو څخه پر ته اوس ټول له دنيا په دې پوهېږي چې لويه جرګه د افغانانو منل شوې عنعنه ده او حتی په ملګرو ملتونو او نورو ملکونو کې هم دغه نوم په افغاني بڼه ليکل کېږي او په هېڅ ژبه کې ورته تغير نه ورکوي. زه فکر کوم چې د اضطراري لويې جرګې په اړه د خارجي لاسوهنې خبره سمه نه ده. لاسوهنه هغه ده چې خارجيان خپل نظر پر افغانانو ور تپي، لکه څنګه چې د ثور د کودتا راهيسې يوازې پردۍ نظريې په افغانانو ورتپل شوي دي او له بده مرغه ځينې بېګانه شوي افغانان دغو پرديو نظريو ته خپلې نظريې وايي. ځينې خلک دا پوښتنه کوي چې لويه جرګه به څوک راغواړي؟ په دې برخه کې يو تاريخي مثال راوړم، د ميرويس خان جرګه به ياده کړم، چې هلته هېڅوک مشر يا پاچا نه و، قومي مشران راغونډ شول په خپل منځ کې جرګه شول او ميرويس خان يې د امير په توګه وټاکه، دغه جرګه قومي وه، د احمدشاه بابا په جرګه کې هم قومونه سره راغونډ شول او احمدخان يې د پاچا په حيث ومانه. نو اضطراري لويه جرګه هم چې جوړېږي، په دې کې به د افغانستان د مختلفو قشرونو موثر نماينده ګان ګډون کوي او اضطراري پر همدې مانا ده چې حالات اضطراري دي او په دې کې به ملګري ملتونه او ګاونډيان هم مرسته کوي. ځينې خلک په دې موضوع کې د بهرنۍ لاسوهنې خبرې کوي، زه فکر کوم په دې دوه ويشت کلونو کې ډېرو خلکو ته دا موقع

په لاس ورغله چې د افغانستان مشرتوب وکړي او په افغانستان کې امن او سوله راولي، خو په دې بهیر کې له تکلیف سره مخامخ و او هغه دا چې ځینې په ایډیالوژي پورې ونښتل، ځینې په رهبري پورې ونښتل، ځینې طبقاتي مسایلو پورې ونښتل او یو څوک چې به د چا په ګوند کې نه و، نو هغه ته به حق نه ورکول کېده، دغه پروسه تراوسه روانه ده، په افغانستان کې یوازینی هغه سیستم کامیابېدلای شي، چې هغه د افغانستان د داخلي شرایطو دننه وي او په هغه کې د افغانستان د اتباعو په حیث ټول خلک برخه والي. دا چې ځینې وایي خارجي لاسوهنه ده، زموږ پوښتنه دا ده چې دغسې لاسوهنې ته چا لاره جوړه کړه؟ زه فکر کوم مسله په دغو خبرو نه حل کېږي، ټول باید داسې فکر وکړي چې د افغانستان مسله د افغانانو د حق خود ارادیت په رڼا کې حل کړي، چې په هغې کې یوه سیمه یا یو قوم ځانګړی امتیاز ونه لري، په داسې سیستم فکر وکړي چې په هغه کې ښځې او نارینه د افغانستان د تبع په حیث د رایې حق ولري.

پوښتنه: ځینې خلک داسې اعتراض کوي چې د روم د پروسې مرکز روم ټاکل شوی او زعامت یې پخوانی پاچا ټاکل شوی، په دې هکله تاسو څه نظر لرئ؟

ځواب: تاسو به د پخواني پاچا په بیانیو کې او د هغه د استازو په بیانونو کې اورېدلي یا لوستلي وي چې د افغانستان پخوانی پاچا هېڅ مقام ته کاندید نه دی، ده په کراتو مراتو ویلي دي چې زه کوم مقام ته کاندید نه یم، د افغانستان په مسله کې د ده رول یوازې د یو مشر په صفت او د یو سپین ږیري په حیث دی، پاچا داسې سړی دی چې په افغانستان کې یې څلوېښت کاله پاچاهي کړې ده او د افغانستان د درې سوه کلنې موسسې نمایندګي کوي، ایا دغسې یو مشر او سپین ږیري ته څوک ویلای شي چې ته په افغانستان کې د سولې لپاره فعالیت او کار مه کوه؟ هغه خو دا نه وایي چې زه درځم نو طالب دې

**هم په خپله مخه لاړ شــي، شــمال او جنوب دې هم په خپله مخه لاړ شــي او يوازې به زه په کې يم. هغه وايي زه نه پاچاهي غواړم او نه کانديد يم، صــرف د يو مشر په حيث غواړم رول ولوبوم، دا خو د يو لوی او منل شوي افغان په حيث د هغه حق دی، پاتې شــوه دا خبره چې مرکز ولې روم تاکل شــوی، زما په خيال دا د مجاهدينو په تېره بيا د طالبانو کار دی، چې پاچا ته د يو ســپين ږيري په حيث ورشــي او يا يې راوغواړي او مشــوره ورســره وکړي، چې د افغانستان مسـله څنګه حل کېږي، په خپله دغه خلک خو په وار وار خارج ته تللي دي، هلته ســره جرګه شــوي دي، کېدای شي په روم کې هم ســره جرګه شــي. زه ګومان کوم دا اعتراض يو مثبت فکر نه دی، څوک چې افغان وي او د افغانســتان فکر ورســره وي، هغه بايد په دې فکر وکړي چې د افغانستان د ســولې په ارتباط د هر افغان او په ځانګړې توګه د پخواني پاچا ســره چې يو تجربه لرونکی نامتو مشــر دی، حتمن مشــوره وشي، تر څو چې د افغانســتان جنجال حل شي. اصلاي منظور بايد د افغانستان د مسلې حل وي، که چېرې څوک نه دا مني او نه هغه او نه يې په خپله کولای شي، نو څه غواړي؟ معلومه ده چې دا خلک د افغانستان د مسلې حل نه غواړي، زه ګومان کوم چې د يو شمېر افغانانو دغه اعتراضونه په خپله د اعتراض وړ دي.**

# د افغانستان په باب نړیواله متضاده پالیسي د افغانانو د تشدد باعث ګرځي

دا مرکه د (افغانان) جریدې د لومړي کال په (۹-۱۰)مې ګڼه کې د (۱۳۷۹ل)کال د سنبلې میاشتې پر (۲٤)مه نېټه خپره شوې ده.

پوښتنه: پروفیسور صاحب! ویل کېږي چې ځینو امریکایي ډیپلوماتانو د افغانستان د مسایلو په اړوند له تاسو سره لیدنه کړې ده، خوښ به شو چې ددغسې لیدنې په اړوند یو څه ووایاست؟

ځواب: د روانې سپتمبر میاشتې پر دیارلسمه نېټه د امریکا په بهرنیو چارو وزارت کې د افغانستان، پاکستان او بنګله دېش لپاره د عمومي مدیریت مرستیال راغلی و او د هغه سره درې تنه نور هم وو، ده غوښتل چې دلته په پېښور کې د ځینو افغانانو سره د افغانستان د روانو چارو په اړوند لیدنې کتنې وکړي او له ماسره یې هم لومړی د افغانستان د مطالعاتو په مرکز او وروسته په پېښور کې د امریکا په قونسل خانه کې خبرې وکړې.

لکه څنګه چې یو بې نتیجې معمول ګرځېدلی، دوی هم وویل، چې موږ راغلي یو چې د افغانستان د روانو چارو په اړوند په خپله د افغانانو څخه معلومات ترلاسه کړو او په دې ځان پوه کړو چې د افغانستان کشاله څه حل موندلی شي؟ زما پوښتنه له هغوی څخه دا وه چې امریکایان د لومړۍ ورځې څخه د افغانستان په مساله کې دخیل و او دخیل دی. دوه یشت کاله کېږي چې د افغانانو دغه خونړۍ غمیزه روانه ده، ایا تراوسه تاسو په دې پوه نه شوئ، چې د افغانستان دننه او د باندې د دغې خونړۍ غمیزې د اوږدېدو عوامل څه دي او دغه کشاله څنګه حلېدای شي، ما ورته وویل چې د

افغانســتان او ســیمې په ارتباطا د امریکایانو له بل هرچا څخه زیات معلومات لري، تاسو د افغانانو او نورو په مقایسه د افغانستان دکشالې د حل په اړوند له هرچا څخه زیات پوهېږي، اما ربښــتینی واقعیت دادی چې امریکایانو د افغانانو سره غیر مستقیم نظامي، بشري او ډیپلوماتیکې مرستې کړې دي، اما په تېرو دوه ویشت کلونوکې تاسو له افغانانو سره سیاسي مرسته نه ده کړې، همدا چې شــورویان ووتل تاسـو د دې پرځای چې د افغانانو سـره د سیاسـي سیستم په جوړولوکې همکاري وکړئ، افغانانو موګاونډیانو ته پرېښـودل او ځنې ولاړئ، امریکایان اوس هم د افغانستان د سـولې لپاره مشـخص پروګرام او پالیسي نه لري، که چیرې تاسو د سولې پالیسي درلودلای نو تاسو دغه د ســـولې پروګرام د امنیت د شــورا د غړو، افغانانو،ګاونډیانو او نورو دخیلو هېوادونو اوګوندونو سره تر مطرح کېدو وروسته په اسانه عملي کولای شو، امریکایان لکه د ملګرو ملتونو د نمایندګانو په شـان ځي او راځي او هره ډله او شخص همدا یوه خبره کوي، چې دا موږ راغلي یو چې د افغانانو څخه زده کړه وکړو، څو ورځې دلتـه او هلتـه چکرې ووهي او واپس ولاړ شـــي، یو ګروپ چې ولاړ شي نو څه موده وروسته بل ګروپ راشي او هغوی هم دغه خبره تکراروي، لـه بـده مرغـه امریکـایـانو او ملګرو ملتونو نمـاینـدګـانو د افغانســتان څخه د ډرېورۍ د زده کړې مکتب جوړ کړی دی، یو ګروپ چې زده کړه وکړي هغه ولاړ شـي او بیا بل ګروپ د زده کړې به نوم راورسـېږي، د افغانانو ملي تراژیدي د دوه ویشت کلونو راهېسې روانه ده، په دې خونړۍ غمیزه کې د افغانانو ښــځې او نر، ماشــومان او بوډاګان له مرګ ژوبلې ســره مخامخ دي، ښـارونه یې تباه شـول، کلي او باندې یې په بمونو هوار شـول، بې کوره شول، بې حیثیته شول او تاریخي هویت او د ځمکې تمامیت یې په خطر کې دی، بیا هم تاسـو په دې ځان وپوهوئ، چې په افغانســتان کې څه حالات

روان دي، واقعيت دادی چې امريکا د افغانستان د مسالې سره نه علاقه لري او نه کومه مشخصه پاليسي، يوازې د بن لادن په غم کې دي او بس.

پوښتنه: ځينې سياسي کتونکي وايي چې امريکا په دې وروستيو وختونو کې فعاله شوې ده او په ځينو برخو کې يې مرستې جاري کړي دي، مثلاً د روم له پروسې سره هم همکاري کوي؟

ځواب: د روم د سولې په پروسه هم خبرې وشوې، ما ورته د افغانستان د مطالعاتو مرکز د غړي به حيث نه د روم د سولې د پروسې د غړي په توګه دا واقعيت په ډاګه کړ چې په عمومي ډول د ځينو امريکايانو او په مشخص ډول د بهرنيو چارو د اړوندې ادارې د ښاغلي کارل اندرفرت په هغو وينااو کې چې د افغانستان په اړه يې کړې دي، تضاد ليدل کېږي، له يوې خوا هغه وايي چې امريکا د روم د سولې د پروسې ملاتړ کوي، بله ورځ د قبرس د سولې د عمليې سره ملاتړ څرګندوي، بله ورځ د شپږ جمع دوه، بله ورځ د ملګرو ملتونو او د اسلامي کنفرانس او بله ورځ د ګاونډيو هېوادونو د پاکستان او ايران د سولې د پروسې ملاتړ کوي، دغه ډول متضاده پاليسي په افغانانو کې د راتولېدو پر ځای تشدد پيداکوي او په افغانستان کې د سولې د پروسې د هرې پلوي ډلې غړی دا فکر کوي چې ګوندې امريکا زموږ ملاتړ کوي، امريکا ډېره ښه پوهېږي چې په افغانستان کې د سولې په عمليو کې کومه عمليه په واقعيتونو ولاړه ده، کومه عمليه عملي کېدای شي او کومه عمليه په افغانستان کې دايمي سولې او د افغانانو حق خود اراديت ته لار هواروي، امريکايان بايد همدغه عمليه غوره کړي او د نورو ټولو اړخونو سره دې خبرې وکړي، چې همدغه عمليه تعقيب کړي او دغه مختلف دريځونه دې په يو دريځ راغونډ کړي، چې د افغانانو د خونړۍ ملي غميزې ته خاتمه ورکړي. د سولې د هرې عمليې سره د امريکا

ملاتړ پرته له دې چې د افغانستان مساله نوره هم کړکېچنه کړي، نوره هېڅ ګټه نه لري او زما په نظر څه مثبته پالیسي نه ده.

پوښتنه: څه موده وړاندې پېټر تامسن ویلي وو چې سږکال تر پایه به په افغانستان کې یو اساسي بدلون راشي، په دې اړه ستاسو نظر څه دی؟

ځواب: زه نه یم خبر چې ښاغلي پېټر تامسن په کوم اساس دغه وړاندوینه کړې ده، اما څه وخت چې هغه د امریکا له خوا د افغان مهاجرینو لپاره موقتي سفیر و، ما ورسره درې څلور ځل لیدلي او خبرې مې ورسره کړې دي، په دغه وخت کې د هغه نظر دا و چې د افغانستان نظامي اردو او سیاسي نظام د شورویانو له خوا جوړ شوی دی، په افغانستان کې اردو او سیاسي نظام حتمي ماتېدل غواړي، په افغانستان کې ملي اردو او سیاسي نظام مات شول، اما د هغه په دوره کې نه افغانستان ته سیاسي سیتستم ورکړی شو او نه اردو جوړه شوه، هر څه مات شول، خو هېڅ یې جوړ نه کړل او د اردو د ماتېدو او د سیاسي نظام د ړنګېدو په نتیجه کې افغانان لا پسې در په دره او خاورې په سر شول او خونړۍ غمیزه لا هم هماغسې روانه ده.

پوښتنه: پروفیسور صاحب! لکه څنګه چې خبر یو څه موده دمخه له تاسو نه د افغانستان د تفاهم شورا په مطبوعاتي کنفرانس کې دا پوښتنه مطرح شوې وه، چې د روم پروسه یو څه سسته روانه ده، په دې هکله تاسو څه وویل؟

ځواب: زما ځواب دا و چې له بده مرغه د روم د سولې د پروسې په لاره کې ډېر خنډونه اچول کېږي، اما هغه څه چې زه یې د دغسې پروسې مثبت پرمختګ بولم، هغه دا د چې اوس په ملي او بین المللي کچه لویه جرګه د افغانانو د عنعنوي واقعیت په توګه منل شوې ده، البته په تخنیکي مسایلو کې د نظریو توپیر وجود لري، لیکن اوس هېڅوک د لویې جرګې د موثریت څخه

انکار نه کوي، طالبان، د شمال اتحاد، ګاونډیان او ملګري ملتونه دا مني چې لویه جرګه یوازینۍ عنعنوي موسسه ده، چې په افغانستان کې واقعي سوله، سیاسي سیستم، د مشرتابه ټاکنه او د افغانانو د خود ارادیت حق ته لاره هواروﻟﯽ شي. د روم د سولې پروسه چې د هر اړخیزه پېچلو مسایلو سره مخامخ ده، د مشخصو شرایطو سره سم حرکت کوي، د افغانستان په کشاله کې د شمال او طالبانو سربېره ډېر باندني هېوادونه هم دخیل دي، زه وایم چې زموږ په مساله کې د ډېرو هېوادونو لاسونه دي او د یوې ډلې یا یو هېواد سره ارتباط نه لري، تاسو خبر یاست چې د روم د سولې د پروسې ځینې هئیتونو امریکا، اروپا او د پاکستاني مقاماتو او د طالبانو سره لیدنې کتنې کړې دي او په ډېر نږدې راتلونکي وخت کې د شمال اتحاد، ایران، مرکزي اسیا، روسیې، چین او نورو دخیلو هېوادونو ته هم ور روان دي، د دغسې پروسې هیئتونه له ټولو دخیلو اړخونو سره په اضطراري لویې جرګې خبرې کوي، تر څو چې د جرګې دایرېدو ته زمینه برابره کړي.

پوښتنه: ایا په دغو خنډونو کې ستر خنډ طالبان دي؟

ځواب: د روم د سولې د پروسې هیئت د طالبانو منفي ځواب نه دی ورکړی، طالبانو دا نه دي ویلي چې هغوی لویه جرګه او یا په افغانستان کې د اضطراري لویې جرګې دایرېدل نه مني، طالبانو ویلي چې په اوسنیو شرایطو کې د جرګې دایرېدو ته زمینه نه ده برابره، څه وخت چې شرایط ورته اماده شول، بیا به د جرګې د دایرېدو لپاره تابیا نیسي.

پوښتنه: د افغانستان په تاریخ کې خو تل لویې جرګې په کړکېچنو حالاتو کې دایرې شوې دي؟

ځواب: هر څوک په دې پوهېږي چې د اضطراري لويې جرګې مساله يوازې د طالبانو کار نه دی، بلکې په نورو ډېرو اړخونو پورې ارتباط لري. د افغانستان په کشاله کې د طالبانو او شمال د اتحاد نه علاوه، ايران، پاکستان، مرکزي اسيا، روسيه، چين او نور هم دخيل دي، لکه مخکې چې مې تاسو ته وويل د افغانستان مساله پېچلې ده او د دغې پېچلتيا په چوکاټ کې دننه حرکت کوي او اضطراري لويې جرګې ته هر اړخيزه زمينه برابرول، وخت او حوصله غواړي.

پوښتنه: طالبانو خو غواړي چې د افغانستان مساله د جنګ له لارې حل کړي؟

ځواب: زما په نظر د افغانستان کشاله په جنګ نه شي حل کېداى، تاسو د افغانتسان په ستراتيژيک او د قومونو په ترکيب ښه پوهېږئ، په افغانستان کې پښتانه، تاجک، ازبک، ترکمن، هزاره او نور قومونه اوسېږي او دغه ټول قومونه په چاپېره ګاونډيو هېوادونو کې ديني او ژبني مشترک اړيکي لري، پښتانه، بلوڅ او نورستاني په پاکستان کې قومونه لري، ازبک په ازبکستان کې، ترکمن په ترکمنستان کې، تاجک په تاجکستان او فارسي ژبي او بلوڅ په ايران کې خپل اتنيکي نژادي قومونه لري او د افغانستان چاپېره ټول اسلامي هېوادونه دي او دغه ټول هېوادونه د افغانستان د ستراتيژيک موقعيت او د ژبني او اتنيکي ګروپونو په لحاظ په ګاونډي افغانستان کې خپلې ملي ګټې لري، فرضاً که طالبان په وچ زور په ټول افغانستان مسلط شي، ايا زموږ ګاونډي هېوادونه به په افغانستان کې د طالبانو تسلط ومني؟ ايا د دوی تسلط به د پاکستان نه غير د نورو ګاونډيو هېوادونو د ملي ګټو او د ځمکو تماميت لپاره خطر نه وي؟ ايا دغه هېوادونه به په افغانستان کې مختلفه ژبنيو او نژادي قيامونو ته لمن ونه وهي؟ او که دوی به لا ستر زنې ناست وي؟

**پوښتنه: يعنې که طالبان ټول افغانستان ونيسي بيا به څه کېږي؟**

**ځواب: که چېرې طالبانو ټول افغانستان هم ونيسي، بيا هم دوی د پښتنو په شمول د افغانستان د ډېرو قومونو د مقاومتونو سره مخامخ کېږي، ځکه چې د افغانستان خلک به د طالبانو څخه د خود اراديت حق، سياسي ازادي، د کار، تعليم، روغتيا او نور ټول هغه حقوق چې د يو مسـول دولت دنده ده، چې خپلو اتباعو ته يې ورکړي، ورځنې غواړي او بيا طالبان په وچ زور خلک نه شي غلي کولای. بيا به خلک طالبانو ته وايي، چې ستاسو سياسي، اقتصادي، نظامي، اداري، تعليمي، کولتوری او اجتماعي پاليسي څه ده، په دې صورت کې طالبان مجبورېږي چې يا د افغانستان د خلکو د غوښتنو په مقابل کې غاړه کېږدي، په سياسي سيستم کې نرموالی راولي، د افغانستان خلک د دولت په ټولو چارو کې شريک کړي او يا به د زور څخه کار اخلي او يوازې به د طالبانو رژيم په خلکو تحميلوي، د وچ زور د تحميل په نتيجه کې د خلکو مقاومتونه او د نورو هېوادونو لاسوهنه حتمي ده او طالبانو به د پرلپسې ګډوډۍ سره مخامخ وي، په ټول افغانستان باندې د تسلط نه وروسته د طالبانو رژيم مجبورېږي چې د مقاومتونو د مخنيوي لپاره د پاکستان سره کنفدرېشن اعلان وکړي او د پاکستان نظامي قواوې په مستقيم ډول د مقاومتونو د ټکولو په خاطر د ځان ملګرۍ کړي، چې په دې صورت کې مساله لاپسې کړکېچنه کېږي.**

**پوښتنه: تاسو کنفدرېشن ته اشاره وکړه، په دې هکله به ټولنيزې سياسی کړۍ موافقه وکړي؟**

**ځواب: زما په نظر په اوسنيو شرايطو کې کنفدرېشن د ګټې پر ځای ډېر تاوانونه لري، کنفدرېشن د دوه يا ډېرو هېوادونو ترمنځ به مساوي توګه**

راټولېدل دي، چې بهکنفدرېشـــن کې هر هېواد خپل هويت ســاتي او په ځينو مسايلوکې لکه دفاع او د باندنيو سياسي چاروکې له يو بل سره مرستې او همکاري کوي، په اوســنيو شـــرايطوکې افغانتســـان يو ويجاړ هېواد دی او پاکســـتان يو منظم او اټوم لرونکی دولت دی، نه پاکســـتان دا اقتصـادي توان لري، چې د افغانســـتان ويجاړ هېواد دې ابادکړلای شـي او نه به پاکســـتان دا وغواړي، چې دکنفدرېشـــن په صـــورت کې د خپلواک افغانانو،ګاونډيانو او نورو هېوادونو له مقاومت سره مخامخ شي. دلته په پاکستان کې ځينې خلک د افغانســـتان او پاکســـتان ترمنځ دکنفدرېشـــن خبرې کوي، زما په نظر دغه د ځينو خلکو شـــخصـــي نظر دی او د دغه ډول اشـــخاصـــو نظر د افغانانو او پاکســـتانيانو ترمنځ ورورولي په شـــکوکو بدلوي او په افغانانوکې دا تاثير پيداکوي، چې ګوندې د پاکســـتان حکومت او خلکو د دې لپاره له افغانانو سره په جهاد او مهاجرتونو سره مرسته کوله چې خپلواک اما ويجاړ افغانستان د شـوروييانو پرځای د پاکستان په لاس کېوزي، زه باور لرم چې دکنفدرېشـن مســالې ته نه پاکســـتان چمتو دی او نه افغانان او نه يې ګاونډيان منلو ته تيار دي. په نابرابره توګه کنفدرېشـــن د مســالې حل نه دی. زما په نظر په اوســنيو شـــرايطوکې پاکســـتان ته پکار دي چې د يو شـــخص، يو ګوند او يا يو قوم پرځای د افغانستان له ملت سره د ورورولۍ روابط ټينګ کړي او لکه څنګه چې يې د افغانانو ســـره د جهاد او هجرت په دوره کې ټينګ او فعاله ملاتړ کړی دی همدغه شـــان دې د افغانانو ســـره په ســـوله کې فعاله برخه واخلي. شـخص مري، ګوند ماتې خوري او يو قوم د ټول هېواد وارث کېدای نه شي. په افغانســـتان کې مختلف قومونه د افغان په نوم ژوندکوي او افغانان د يو ملت په حيث هېڅکله نه مري. افغانان او پاکســـتانيان د يو بل ګاونډيان دي، په يوه جغرافيايي خط ژوندکوي او دګاونډيانو په حيث دوی خپلې طبيعي

جغرافيې ته تغير نه شي ورکولای. دا دواړه هېوادونه مجبور دي چې د ښو ګاونډيانو په توګه ژوند وکړي. هرکله چې د افغانانو په خوښه د يو ټاکلي حکومت لپاره پاکستان له افغانانو سره فعاله مرسته وکړه او د افغانانو په خوښه د ټاکلي حکومت سيستم دوام ومونده، زه په پوره باور دا وړاندوينه کولای شم، چې افغانستان به د خپل ستراتيژيک موقعيت پر اساس د ټولو ګاونډيانو ترمنځ د دوستۍ د پُل رول ولوبوي. د دې پرځای چې د کنفډريشن خبرې وشي، ښه به دا وي چې د افغانستان ټاکل سياسي رژيم د پاکستان، مرکزي اسيا او ايران ترمنځ په يو بل باندې د باور او اعتماد فضا راپيداکړي، چې زموږ د حوزې هېوادونه چې د يو بل سره مذهبي، تاريخي، کلتوري، ژبني او اتنيکي اړيکي لري، دومره سره رانږدې کړي چې له يو بل سره په ټولو ساحو کې د ورورولۍ مرستې وکړي.

يوويشتمه پېړۍ د ټکنالوژۍ او اقتصاد پېړۍ ده. په دې پېړۍ کې د سياسي پولو غځول يو زوړ سياسي مفهوم دی. که چېرې زموږ په حوزه کې امن وي، يو پر بل باور وي، ورورولي او ښه ګاونډيتوب وي، نو بيا خو د سياسي پولو غځولو او د يو بل رالاندې کولو ته هېڅ اړتيا نه پيداکېږي او د دې حوزې د هېوادونو ولسونه به له يو بل سره ازادانه تګ راتګ کوي او د خپلې حوزې بشري قواوې او طبيعي منابع به د يو بل د ګټو پر اساس استعمالوي او د پرمختګ او د ښه ژوند ګټه به ټولو ته رسېږي.

پوښتنه: که چېرې د کنفډريشن مساله حقيقت پيداکړي، نو د ډيورنډ د کرښې سرنوشت به څنګه شي؟

ځواب: دا چې د ډيورنډ د کرښې په اړه خبرې وکړو، زما په نظر ښه به دا وي چې زموږ د حوزې د ټولو هېوادونو سياستپوه او تعليم يافته اشخاص دې په

دې فکر وکړي چې د دې سيمې د ولسونو ترمنځ د باور او اعتماد فضا ځنګه راپيداکړو او يو داسې ميکانيزم جوړ کړو چې په هغې کې افغانستان، پاکستان، ايران او د مرکزي اسيا هېوادونه د وروڼو په څېر ژوند وکړو. بيا يې تکراروم څه وخت چې د پاکستان پر همکارۍ په افغانستان کې د افغانانو په خوښه يو منتخب حکومت منځته راغی او د دې دواړو ملتونو دوستۍ دوام پيداکړ، پوره باور لرم چې د وروروليږ ښه ګاونديتوب او له يو بل سره د همکارۍ او تګ راتګ په صورت کې د دوو وروڼو هېوادونو ترمنځ ټولې مسالې په خپله حل مومي او بيا د وروڼو هېوادونو ترمنځ شخړو ته هېڅ اړتيا نه پيداکېږي.

پوښتنه: پروفيسور صاحب! په مطبوعاتي کنفرانس کې له تاسو څخه د طالبانو د امن په اړه پوښتنه شوې وه، چې مثلاً هغوی امن راوستلی دی، ستاسو ځواب څه و؟

ځواب: موږ ټول پوهېږو چې طالبانو په تېرو شپږو کلونو کې ځينې مثبت کارونه کړي دي، چې د هغوی له جملې څخه امنيت راوستل او د وسلو راټولول يې ډېر مثبت کارونه دي، خو زما په نظر امنيت محض د امنيت په نوم راوستل کفايت نه کوي. امن يوازې د غلو مخنيوي ته نه وايي، بلکې په يو هېواد کې امن هله منځته راځي چې د دغه هېواد حکومت خپلو خلکو ته د سياسي شعور د ودې، اقتصادي ژوند، تعليم سيستم او نورو ټولو انساني غوښتنو ته ښه زمينه برابره کړي. امن دې ته نه وايي چې يو سړی دې له خپلو ماشومانو سره وږی، تږی، بې کاره او بې کوره غلی ناست وي، نه دې ورته کار وي، نه تعليم، نه روغتيا، نه سياسي ازادي او نه اقتصادي ژوند، موږ يې په سترګو وينو چې د طالبانو له سيمو څخه په زرګونو ښځې او نارينه او

**ماشـومان پاکسـتان او نوروګاونډيو هېوادونو ته روان دي او ټول په بده ورځ او سختو شرايطو کې ژوندکوي، زما په نظر دا واقعي امن او امنيت نه دی.**

# د مجسمو ورانول د افغانانو کار نه دی

**دا مرکه د (افغانان) جریدې د لومړي کال په (۲۲)مه ګڼه کې د (۱۳۷۹ل) کال د کب میاشتې پر (۲٤)مه نېټه خپره شوې ده.**

د افغانستان د مطالعاتو مرکز مشر الحاج پروفیسور عبدالرسول امین له تهران راډیو سره په مرکه کې: زموږ افغاني ټولنه خپل ځانګړي خصوصیات لري او د دې ټولنې اساسي بنیاد د واحد مذهب، اسلام په بنا ولاړ دی. افغاني ټولنه د ګاونډیو ټولنو سره ډېر زیات توپیر لري او د دې توپیر اصلي علت دا دی چې په افغانستان کې په سلو کې ۹۹،۹ خلک مسلمانان دي او د دغه واحد مذهب په وجه په دوی کې خپل منځي مذهبي ټکر نه دی راغلی او د ثور تر کودتا پورې مذهبي تعصبات هېڅ موجود نه وو.

زموږ د ګاونډیو ټولنو په خلکو کې زیاتره د نورو مذهبونو اقلیتونه دي او همدغو مذهبي مخالفتونو له امله زموږ د ګاونډیو هېوادونو د خلکو ترمنځه مذهبي ټکرې راغلې دي.

د مثال په توګه د هند په نیمه وچه کې د مسلمانانو او هندوانو د مذهبي ټکر له امله د پاکستان او هند په نومونو دوه جلا هېوادونه منځته راغلل. موږ ټولو ته معلومه ده چې په افغانستان کې د هندوانو شمېر ډېر لږ و او افغانانو هېڅکله هندوان خپل سیال نه دي ګڼلي او نه یې ورسره مذهبي تعصب او رقابت درلود.

همدا شان د مرکزي اسیا په ټولو ټولنو کې د روسیې د محافظه کارې کلیسا او جومات ترمنځ ټکر موجود و، چې له نېکه مرغه افغانستان نه د مرکزي اسیا د نورو ټولنو په شان د روسیې لاندې وو او نه یې عیسوي مذهبي ټولنه درلوده. همدا وجه وه چې افغانانو د عیسوي مذهب سره هم څه تعصب او نفرت نه درلود.

له بلې خوا په ایران کې د اهل تشیع او سنیانو ترمنځ مخالفتونه او تعصبونه موجود و او دي، چې له نېکه مرغه د ثور ترکودتا پورې په افغانستان کې د سنیانو او اهل تشیع ترمنځ هېڅ مشکلات او مسایل نه و موجود چې د سني اکثریت او اهل تشیع اقلیت ترمنځ تعصبات راوپاروي.

زه په زغرده ویلی شم چې افغاني ټولنه یوه بشپړه اسلامي ټولنه ده او زموږ د تاریخ په اوږدو کې لکه د نورو ګاونډیانو په شان د تعصباتو نښتې نښتانې نه دي پېښې شوې او نه د مذهب په نوم جګړې پېښې شوې دي، لکه څنګه چې په هندوستان او یا په مرکزي اسیا کې رواني دي. د طالبانو تر راتګه پورې، د مذهبي تعصب نښتې نښتانې نه لیدل کېدلې. زه باید دا ووایم چې طالبان یوه ډله نه ده، بلکې د څو ډلو مجموعه ګڼل کېږي، چې په لومړي سر کې د پاکستان او د عربو افراطي ډلې او داسې نور د افغانانو په نوم په افغانستان کې فعالیت کوي، چې نه خو دوی افغانان دي او نه د افغانانو په خصوصیاتو او روحیاتو پوهېږي او نه ورته د افغانانو بې تعصبه عنعنات ورمعلوم دي. دویمه ډله، هغه طالبان دي چې د پاکستان یا په نورو خارجي مدرسو کې روزل شوي دي، دا جوته خبره ده چې د دغې ډلې روزل شوي اشخاص د پاکستان د اخبارونو او اطلاعاتو څخه اغېزمن شوي دي او له خپلې افغاني ټولنې څخه هېڅ اطلاع نه لري، د دغې مدرسې د ډلې طالبان غواړي چې د پاکستان او هندوستان د پېړیو پېړیو مذهبي جګړه هم په

افغانستان کې پلې کړي. زما په نظر د هند او پاکستان دغه تاریخي او مذهبي جګړه په افغانستان کې دننه پلې کول سم کار نه دی، ځکه چې موږ په افغانستان کې له هندوانو سره څه تاریخي تعصب نه لرو. تاسو ته به معلومه وي چې په هند کې (۱۶۰) ملیونه مسلمانان ژوندکوي، چې دغه لوی نفوس د خپلو حقوقو د اخیستلو لپاره پوره توان لري او هلته هم د قانون له لارې او هم د نفوس په قوت خپل حقوق ترلاسه کولای شي. دې مسلې ته ځکه اشاره کوم چې د طالبانو د رژیم د باندنیو چارو وزیر دې ته اشاره وکړه چې په هند کې بابري جومات شهید شو او نړۍ پرې چوپه خوله کېناسته، اول دا چې د بابري جومات مسله د هند د مسلمانانو مسله ده، په دویمه درجه د پاکستان او بنګلادېش د مسلمانانو او په درېیمه درجه د افغانستان مسله ده. موږ ټولو ته معلومه ده چې له اندونیزیا څخه وروسته په دویمه درجه د هند د مسلمانانو نفوس دی، په درېیمه درجه بنګلادېش او څلورم یې پاکستان دی. د طالبانو دویمه ډله، هغه طالبان دي چې د افغانستان دننه یې زده کړې کړي، دغه طالبان د افغاني ټولنې یوه نه جلاکېدونکې برخه ده او د افغاني ټولنې د ټولو خصوصیاتو یو جز دی. دغه طالبان د افغانانو په جرګو کې ناست دي، د افغانانو په هوجروکې ناست دي، د افغانانو په ښو او بدو کې شرکت کوي او زه باور لرم چې د طالبانو دا درېیمه ډله چې افغانان دي، د افغانستان په غم غمجن او په خوشالۍ یې خوشالیږي او دوی به حتمن د بامیانو د مجسمو په ړنګېدو دردېدلي وي. په افغانستان کې ډېر لوی پیاوړي عالمان او ستر شخصیتونه تېر شوي دي او دغو شخصیتونو په اسلامي نړۍ کې تر ټولو اوچت مقام ګټلی دی، چې ددغو شخصیتونو له جملې څخه سلطان محمود غزنوي او احمدشاه بابا د نړۍ په کچه اسلام ته خدمتونه کړي دي. د بامیانو په لاره د عربو پوځونه، د سلطان محمود غزنوی پوځونو او تر احمدشاه بابا

پورې پوځونه تېر شوي راتېر شوي دي، اما دوی د باميانو دغو بوتانو سره هېڅ غرض نه دی کړی. سلطان محمود غزنوی چې په سومنات کې بوتان ماتوي، بيا ولې د باميانو د بودا بوتان نه ماتوي، د افغانانو دغه ستر عالمان او شخصيتونه پر دې پوهېدل چې افغانستان يوه مسلمانه ټولنه ده او په افغانستان کې بت پرست وجود نه لري او د دغو بوتانو له خوا د افغانانو مذهب ته هېڅ خطر نه شته.

دوی پر دې هم پوهېدل چې افغانستان په تاريخي لحاظ د دې سيمې او نړۍ د يوې مهمې تجارتي لارې په حيث د بېلابېلو تمدنونو يوځای کېدو اساسي مرکز دی، هغوی د افغانستان د دغه تاريخ تمدن پر اهميت له هر چا زيات پوهېدل، ځکه يې دغه مجسمې د افغانانو د تاريخي هويت په توګه سلامت ساتلې وې. اوس د لرغونپېژندنې (باستان شناسي) عالمان پر دې باور دي چې د مستندو شواهدو له مخې افغانستان (۵۰۰۰۰) کلن تاريخ لري او هېڅوک دا حق نه لري، چې د افغانانو پنځوس زره کلن تاريخي هويت نفې کړي.

زما په نظر د طالبانو هغو ډلو چې د باميانو د مجسمو د ماتولو اراده يې کړې وه او يا يې داکار د اسلام په نامه او يا يې د افغانانو په نامه کاوه، زه پوره باور لرم چې دغه خلک واقعاً افغانان نه دي او نه يې د افغانانو د رښتينو خصوصياتو نمايندګي کړې ده، بلکې دغه خلک غواړي چې د نورو په لمسون د افغانانو تاريخي هويت له منځه يوسي. دغه ډلې د افغانستان په تاريخ نه پوهېږي، د افغانانو روحيه نه ده ورمعلومه او په مذهبي لحاظ د واقعي افغانانو په شان د پراخ نظر خاوندان هم نه دي. زه به دلته دا هم ووايم چې دغو ډلو د تعصباتو مسله د هند د وچې څخه او د ځينو افراطي عربي ډلو څخه افغانستان ته له ځانونو سره راوړې ده. لکه څنګه چې ما ورته

**اشاره وکړه، افغانان ۹۹،۹ سلنه مسلمانان دي او پوره څوارلس سوه کاله کیږي چې شریعت په کې روان دی، دا داسې نه ده چې طالبان افغانان مسلمانوي او یا افغانانو ته شریعت راوړی، بلکې اسلام او شریعت د افغانانو څوارلس سوه کلن دین او قانون دی، بلکې زه باید طالبانو ته ووایم چې پاکستان، هند، بنګلادېش او د جنوبي اسیا ملکونو ته دین له افغانستان څخه خپور شوی دی، زمونږ پلرونو د دې هېوادونو خلک په اسلام مشرف کړي، نه دا چې افغانانو ته اسلام د هند له نیمې وچې راغلی دی. هغه خدمتونه چې افغانانو اسلام ته کړي دي او کوي یې، زما په خیال عربو دغومره خدمتونه اسلام ته نه دي کړي. افغانان سولې ته اړتیا لري، افغانان د افغانستان بیا رغونې ته اړتیا لري، افغانان یوې متمدنې ټولنې ته اړتیا لري، افغانانو له نورو ټولنو سره سیالۍ ته اړتیا لري، نه دا چې ځینې خلک افغانان د یوه متعصبه قوم په توګه نړۍ ته معرفي کړي، زه پوره باور لرم چې تاریخ به دا ثابته کړي، چې افغانان متعصبه قوم نه و، نه دی او نه به وي او د خدای په فضل به دغه افغانان د اسلام سره سره د انساني متمدنې ټولنې لپاره هم اوږه پر اوږه کار وکړي.**

**افغانانو د ټولو ادیانو په مقابل کې نه تعصب ښودلی، نه تعصب لري، هغه کار چې طالبانو وکړ، دا د افغانانو کار نه دی، بلکې د یو څو محدودو کسانو کار دی، چې هغوی د اسلام په نامه ټول افغانان ګروګان نیولی دی او د افغانانو اصلي عنعنې له منځه وړي. طالبانو د عیسوي او یهودي مذهبونو سره شخړې راپیداکړي. اما اوس یې افغانان د نړۍ د دویم لوی مذهب بودایي مذهب په مقابل کې ودرول، د بودایي مذهب، لوی شمېر په منګولیا، چین، تبت، هند، برما، سریلانکا، لاوس، ویتنام، کوریاګانو او چاپان کې اوسېږي او دغه ټول هېوادونه د اسیا په لویه وچه کې پراته دي، چې افغانستان هم د دې**

وچې یوه برخه ده، په بل عبارت طالبانو، افغانان د عیسوي او یهودي مذاهبو څخه پرته د بودایي مذهب له پیروانو سره هم په جګړه اخته کړل. زما په نظر دا ټول کارونه د افغانانو د هویت د له منځه وړلو لپاره ترسره کېږي، زه به دا ووایم چې افغانســتان په ټوله مانا یو اســلامي ملک دی، چې په بل عبارت افغان یانې مســلما او لکه چې مخکې ورته اشــاره وشــوه زموږ په هېوادکې نورې مذهبي ډلې وجود نه لري، زه پوره باور لرم چې د ځوارلس سوه‌کلونو وروســته د اســلام په نامه د مجســمو ورانول، زموږ د تاریخ د له منځه وړلو پرته بل هېڅ هدف نه لري او داکارونه د افغانســتان د لا ښــکېلولو او حتی د قبضه‌کولو لپاره ترسره کېږي او هغه افغاني انګېزه نه لري.

زه به دومره ووایم چې د مجســـمو ړنګېدل، د افغانانو پر لمن هغه داغ دی چې تر ډېرې مودې به د افغانانو پر لمن پروت وي او د تعصـــب دغه داغ وربانديې د مذهب په نوم طالبانو ولګوه. افغانان مجبوره دي چې اوس ټولې نړۍ ته دا ثابته‌کړي چې د مجســـمو ړنګېدل مختلفه تجارتي، ســیاســي او شخصي انګېزې درلودې او افغانان د دغه عمل هېڅ مسولیت نه لري.

# هیچ شخص، گروه و حزب حق تغیر دادن عنعنات ملی افغانی را ندارد

دا مرکه د (افغانان) جریدې د لومړي کال په (۲۵)مه ګڼه کې د (۱۳۷۹ل) کال د غويي مياشتې پر (۱۰)مه نېټه خپره شوې ده.

**پرسش: تفاوت میان پروسه های روم او قبرس در دروند صلح از نظر شما چه خواهد بود؟**

**پاسخ: شک نیست که پروسه های روم او قبرس پروسه های افغانی اند، اما به نظر من در این هردو پروسه روی بعضی اساسات اختلاف وجود دارد، طبیعی است که اشتی دادن، اختلافات در اساسات کار دشوار است. اختلاف اساسی اولی میان این هر دوی پروسه روی دو مفهوم جداگانه لویه جرگه اضطراری و شورای بزرگ ملی است. شما خود میدانید که لویه جرگه میرویس خان هوتکی (۱۷۰۸ ع) و احمدشاه درانی (۱۷٤۷ ع) در حالات اضطرار دایر شده اند. در این هردو جرگه اضطراری، میرویس خان و احمدشاه بابا بر سر اقتدار نه، بلکه انها بزرگان شناخته شده خانواده های بزرگ بودند. حال نیز اکثریت بزرگ افغانستان، که افغانستان را بخاطر افغانها میخواهند، اعلیحضرت محمد ظاهرشاه پاچا سابق افغانستان را بحیث یگانه شخصیت ملی و بین المللی میشناسد و میداند که ایشان در حالات اضطراری کنونی، صلاحیت و قوت تدویر جرگه اضطراری را دارد. برعکس دست اندرکاران جریان قبرس بجای موسسه یی قبول شده لویه جرگه اضطراری روی تدویر (( شورای بزرگ ملی)) تاکید می ورزند، هر شاگرد**

جامعه افغانی بین جرگه اضــــطراری و شــــورای بزرگ ملی را و چگونگی فعالیت های اســـاســـی انان را به خوبی درک می کنند و می دانندکه این دو مفهوم از نظر سـیاسـی ازکجاها سـرچشـمه می گیرد و تا چه اندازه بین انها تفکیک وجود دارد. این به بحث سویل نیز داردکه حال وقت آن نیست.

دوم: دســـت اندرکاران جریان قبرس طوری می اندیشـــندکه جریان روم، اعلیحضرت محمد ظاهرشاه پادشاه سابق افغانستان را پیس از پیس به حیث زعیم قبول کرده اند و زعامت شـــخص دیگری را نمی پذیرد. این نظر قبرس درســت نمی نماید. هرگاه جهت تدویر جرگه اضــطراری، پلان ســه فقره یی پادشاه سابق و وقتا فوقتا ابلاغیه های منتشره ایشان مطالعه شود در خواهند یافت که پادشـاه سـابق برای زعامت اینده افغانسـتان کاندید نیسـت و نیر نمی خواهد سـلطنت سـابق را در افغانستان اعاده کند. برای مشـمولین جریان روم هویداست که پادشـاه سـابق به حیث یک شـخصـیت ملی و بین المللی، ارزو دارد تا جرگه اضـــطراری در افغانســـتان تدویر یابد و به نظر ایشـــان این حق نمایندهگان جرگه اضـــطراری اســـت که انها برای یک دوره موقت چگونه اداره سیاسی می سازند و چه کسی را برای این دوره به حیث زعیم تعین می کنند.

به همین ترتیب چگونگی اداره و زعامت دوره موقت نیز معلوم اسـت، درین دوره مسوده قانون اساسی ترتیب می شود، مهاجرین افغان جابجا می گردند، عملیه بازسـازی افغانسـتان شـروع می شـود، وقت تدویر انتخابات معین می گردد و امثلهم اداره دوره موقت می بایســـت لویه جرگه را تدویر نماید این جرگه قانون اســـاســـی را تائید میکند، کارهای دوره موقت را ارزیابی می کند بعدا زعامت اینده بر مبنای قانون اســاســی و رای عمومی به میان می اید. در

**واقع امر موضوع زعامت، محصول اراده ازاد افغانان خواهد بود، این نه‌کار زور است و نه‌کار تحمیل خارجی ها.**

**در جلسات پیهم روم در مورد نماینده‌گان لویه جرگه اضطراری نیز تصمیم های‌گرفته شده است، به اساس این تصمیم، لویه جرگه اضطراری بعد از تفاهم با تمام جناح های درگیر در داخل افغانستان دایر می شود، درجهاهای که شرایط انتخابات موجود باشد، انجا نتخابات می شود و در جاهای‌که به اساس جرگه های قومی، نماینده‌گان انتخاب می شوند، در انجا جرگه های قومی تصمیم می‌گیرند، انتخابات تحث نظارت سازمان ملل و دیگر موسسات بین المللی صورت می‌گیرد و روی تمام جوانب انتخابات با در نظرداشت شرایط، فکر و عمل می شود.**

**تفاوت بین روم و قبرس در شخصیت پادشاه سابق افغانستان است، شکی نیست‌که طرفداران جریان قبرس افغانان اند مگر در جریان قبرس به مقایسه شخصیت پادشاه سابق، شخصیت ملی و بین المللی وجود ندارد و نه‌کسی در شرایط‌کنونی با ایشان برابری‌کرده می تواند.**

**پرسش: چرا به تغیر نام لویه جرگه به شورای بزرگ موافقه صورت نمی گیرد؟**

**پاسخ: طوریکه قبلاً به ان اشاره نمودیم، لویه جرگه اضطراری یک عنعنه تاریخی افغانان است، چوکات مشخص خود را دارد و مشخصات فعالیت ان نیز معین است. من نمی دانم‌که انها نام این عنعنه قبول شده افغانها را چرا به نام شورای بزرگ ملی عوض می کنند؟**

شما خود می دانید هرگاه امروز افغانها از عنعنه لویه جرگه صرف نظر نمایند و فرداکسی دیگری انرا اسلامستان و غیره بنامد، ایا به حیث یک افغان با همچو اشخاص اشتی صورت گرفته می تواند؟

به نظر من هیچ افغان در مورد هویت، ازادی و عنعنات ملی خویش با هیچ کسی سازش نخواهدکرد و نه چنین کرده می توانند. به نظر من هیچ شخصی، گروه و حزبی حق تغیر دادن عنعنات ملی و نام افغانستان را ندارند. هرکسی که در افغانستان صلح و امنیت می خواهد، حتماً به هویت، تاریخ و عنعنات افغانها احترام می گذارد و راه دیگری نیز ندارند.

پروفیسور امین در جواب سوال دیگری افزود:

لویه جرگه اضطراری در سال ۱۹۹۳م پیشنهاد شده است، به اساس این پیشنهاد، لویه جرگه اضطراری جهت تامین صلح، ازادی و اعاده حیثیت ملی افغانها در افغانستان یک نهضت ملی است و این حق مسلم تمام مردم، اقوام، زن و مرد افغان است که در نهضت ملی خویش سهم بگیرند، از ان پشتیبانی نمایند و به اساس ان به تراژیدی ملی خویش خاتمه دهند. باز تکرار می کنم که لویه جرگه اضطراری یک عنعنه ملی و تاریخی افغانهاست و جهت حل مشکلات افغانها یک پروسه افغانی است و پیشنهاد صلح پروسه روم جهت حل سیاسی معضله افغانستان یک نهضت ملی است. درین نهضت تمام افغانهای که دست شان به خون افغانهای بی گناه الوده نباشد، اشتراک کرده می توانند، هیچ افغان به افغان دیگر گفته نمی تواند که من برای افغانستان کار می کنم و تو حق انر نداری. نام لویه جرگه علاوه برسطح ملی، سبغه بین المللی نیز یافته است و اکنون در تمام زبانهای بین المللی به شکل لویه جرگه نوشته می شود، به شمول سازمان ملل، هیچ کشوری برای آن نام ترجمه

شـده را نپذیرفته اند. هر افغان حق دارد تا با نظرداشت اساسات لویه جرگه اضـطراری، خود را به جرگه کاندید نماید و این کار مردم است که وی را به لویه جرگه اضطراری به حیث نماینده می پذیرد یا نه؟

در انجام خاطر نشان می سازم که پروسه صلح روم، نه جبهه متحد است، نه ائتلاف است و نه اتحادیه است که هر شخص، هر گروه هر تنظیم و هر حزب در ان قبل از همه امتیازات شخصی، گروهی، تنظیمی و حزبی خود را بدست می اورد و به اساس مشی سیاسی خود در ان تغیر روا می دارد و انگاه در آن شرکت می کند. دروازه های تفاهم با اشخاص موظف درپروسه صلح روم به روی تمام افغانها باز است. هر کسی که هدف بزرگش ازادی و هویت ملی افغانی باشد و جهت رسیدن به این اهداف خود را وسیله می داند می تواند در آن شرکت نماید.

# د عشق اباد په کنفرانس کې د افغانستان د جنګ ځپلو سیمو لپاره د عاجلو مرستو او لنډمهاله انکشافي پروژو د تمویل پرېکړې ومنل شوې

| |
|---|
| دا مرکه د (وفا) جریدې د شپږم کال په (۵-٦)مې ګڼه کې د (۱۳۷۵ل)کال د سلواغې میاشتې پر (۲۷)مه نېټه خپره شوې ده. |

د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې مشر پروفیسور عبدالرسول امین د (۱۹۹٦م)کال د جنورۍ په میاشت کې د ملګرو ملتونو له خوا- د افغانستان او افغانانو سره د بشری مرستو د جلبولو په ارتباط - په عشق اباد کې په جوړه شوې غونډه کې ګډون وکړ. او په دې غونډه کې تر ګډون وروسته مزارشریف ته راغی او د هېواد په دې لرغوني ښار کې یې هم ښې لیدنې کتنې درلودې، موږ له پروفیسور امین سره د دغو سفرونو په اړه یوه مرکه کړې ده، چې په دې ګڼه کې یې تاسو ته وړاندې کوو:

پوښتنه: د عشق اباد کنفرانس یوازې د بشری مرستو د جلبولو لپاره جوړ شوی و او که سیاسي اړخ یې هم درلود او په افغانستان کې د دایمي سراسري سولې د ټینګښد په باب هم په کې خبرې وشوې؟

ځواب: د عشق اباد په دوه ورځنۍ غونډه کې د اروپا، امریکا، اسیا او افریقا د حکومتونو او د ناحکومتي موسسو دوه سوه او پنځوس کسانو ګډون کړی و او دې غونډې ته د ملګرو ملتونو د لوی سکرتر مرستیال ښاغلی یوشي

اکاشـي، ډاکتر نور برت هول، د هالنډ د پرمختيايي پروګرامونو وزير ښـاغلی جان پرونک، ځينې سـفيران د باندنيو چارو د وزارتونو لوړ رتبه مامورين، د ناحکومتي موسسو رييسان، د افغان ناحکومتي موسسو مشران، د افغانستان د سـرې مياشـتې رييس مولوي غفوري او نور راغلي وو. د جنورۍ پر يوويشتمه نېټه دغه غونډه د ترکمنستان د جمهور رييس پر وينا پرانيستل شوه او ورپسې مهمو اشـخاصـو ويناوې وکړې. غونډه د جنورۍ پر دوه ويشتمه نېټه د ماښام پر اوو بجو پايته ورسېدله. د جنورۍ پر درويشتمه نېټه د غونډې ځينې ګډونوال د افغانسـتان د بېلابېلو ولايتونو د ليدلو لپاره ولاړل او د جنورۍ پر څلورويشـتمه نېټه راغلي مېلمانه رخصـت شـول. په غونډه کې د افغانسـتان لپاره په بشـري مرسـتو، صـحي، تعليمي او انکشـافي مسـايلو او د افغانسـتان دننه پر سـياسـي، اجتماعي او اقتصـادي ګډوډۍ تحليلي بحثونه وشـول، په هره موضـوع جلا جلا ورکشـاپونه داير شـول او وروسـته د دغو ورکشاپونو پرېکړې د عمومي غونډې د تاييد لپاره وړاندې شوې.

د غونډې پر لومړۍ ورځ د مرسـته کوونکو بهرنيو هېوادونو د نمايندګانو او د ناحکومتي موسـسـو د مشـرانو دريځ سـخت و. دوی په خپلو خبرو کې له افغانستان سره د مرستو مسله د بشري حقوقو په ارتباط مطرح کوله. د دوی په نظر په افغانسـتان کې جګړه ماړې ډلې او په مشـخصـه توګه د طالبانو تحريک د دغه هېواد د ښـځو د کار او تعليم حقوق په نظر کې نه سـاتي، نو افغانسـتان ته د مرسـتو ورکولو ضـرورت نه شـته. د دغه ډول دلايلو په مقابل کې افغانانو مشـترک دريځ ونيو او د افغانانو دريځ د مرسـته ورکوونکو په مقايسـه د افغاني ټولنې په اجتماعي او کلتوري واقعيتونو ولاړ و. د افغانانو د دريځ له مخې که چېرې مرستې ورکوونکې موسسې له افغانستان سره بشری مرستې محض د بشـر د حقوقو او يا د ښـځو له مسلې سره وتړي، نو په دې

صـورت کې د افغانسـتان جنګ ځپلي ولس د ژوند د ټولو لومړنيو اړتياوو تر څنګ په ځانګړې توګه هلکان د زده کړې له حقوقو څخه محرومېږي او دغه ډول سخت دريځ به د افغانستان د خلکو لوی اکثريت د اواره کېدو او فساد ته مجبور کړي او په نتيجه کې به افغاني ټولنه له لويې ګډوډۍ ســـره مخامخ شي. د افغانانو د ګډ دريځ په مقابل کې د مرسته ورکوونکو موسسو د استازو دريځ نرم شـــو او د دويمې ورځې په پای کې د جنګ ځپلو ســـيمو لپاره د عاجلو مرســـتو، روغتيا، زده کړې او لنډمهاله انکشـــافي پروژو د تمويل پرېکړې ومنل شوې او د اوږدې مودې لپاره پرمختيايي پروګرامونه او پلانونه به په افغانســـتان کې د ســـولې د ســـياســـي حل او د ټاکل حکومت تر راتګ وروسته عملي کېږي.

ددې غونډې له اعلاميې څخه دا واقعيت په خپله څرګندېږي چې د عشق اباد په غونډه کې د افغانســـتان د رواني ملي تراژيدۍ د ســـياســـي حل په اړوند د افغانســـتان لپاره د ملګرو ملتونو د خاص نماينده ډاکتر هول د هلو ځلو پوره ملاتړ وکړلای شو. ماته په دې غونډه کې د ترکيې او پاکستان د سفيرانو او د ايران او هنـد د بـانـدنيو چـارو د وزارتونو د لوړ رتبـه مـامورينو خبرو خونـد رانکړ. د ترکيې ســـفير شـــمال ته (د افغانســـتان شـــمالي ولايتونه) د تعليمي سکالرشيپونو، د راډيو او ټلويزيون د جوړېدو او قوي کېدو او د نورو پروژو پر تمويل خبرې وکړې او د پاکستان سفير له مهاجرينو سره له مرستو برسېره د سپين بولدک څخه تر تورغونډۍ پورې د لويې لارې پر جوړېدو وکړېد. د ايران نماينده د باميانو د پوهنتون او په باميانو کې پر نورو پروژو خبرې وکړې او د هند استازی هم له شمال سره د هند پر مرستو وګړېد. د دوی له خبرو څخه داسې څرګندېدله لکه چې ترکيه د ترک نژاد او ازبکو سره، پاکستان له پښتنو سـره، هند له تاجکو سـره او ايران له اهل تشيع سـره مرستې کوي او

دغو هېوادونو يو موټى او خپلواک افغانســـتان د خپل نفوذ په حوزو او يو افغان په ازبکو، پښتنو، تاجکو او اهل تشيع وېشلي وي.

پوښــتنه: تاسې د مزار شـريف له سفره دمخه د روان‌کال د جنورى له ۱–۳ نېټې پورې د يو هئيت پر مشرۍ د طالبانو له مشـرانو سره د خبرو لپاره‌کابل ته هم تللي واسـت، نو مزارشـريف ته سـتاسـو دا سفر د هغه پخواني هيئت د عمومي ليدنو کتنو جز و او که تاسو ته د دې سفر لپاره ځانګړې بلنه درکړل شوې وه؟

ځواب: کابل او مزار ته تګ دوه جلا خبرې دي. موږ کابل ته د ســـولې د جرګې په حيث تللي و او د دې ســـفر اســـاســـي هدف د طالبانو د اســـلامي تحريک مشرانو ته ملګرو ملتونو د سولې د هلو ځلو توضيح وه او له طالبانو څخه هيله وه، چې د ملګرو ملتونو د ســولې وړانديزونه دې ومني. هلته موږ د مولوي صـاحب محم حسـن اخوند، مولوي صـاحب احسـان الله احسـان او نورو مشرانو سره ليدنې‌کتنې وکړې او د افغانستان د روانې‌کشالې د سياسي حل پر مختلفو اړخونو مو ورســـره خبرې وکړې. له دوى ســـره تر خبرو وروسته دا پرېکړه وشوه چې تر څو د دخيلو مختلفو ډلو سره خبرې نه وي شـــوې، تر هغې به د ســـولې د جرګې د فعاليتونو په اړوند هېڅ نه ويل‌کېږي. همدا وجه ده چې تراوسه د سولې د جرګې د فعاليتونو په اړه هېڅ نه دي ويل شـــوي. د عشـــق اباد په‌کنفرانس‌کې د ګډون څخه څو ورځې مخکې د افغانســـتان د ملي– اســـلامي جنبش مشـــر جنرال عبدالرشـيد دوسـتم د ازاد افغانســـتان د ليکوالو ټولنې د مشـــر په توګه بلنه راکړې وه او د دې بلنې له مخې موافقه شوې وه چې زه به د عشق اباد په‌کنفرانس‌کې تر ګډون وروسته مزارشـريف ته ورځم. دغه بلنه شـخصي وه او زه يوازې د جنورۍ د مياشتې پر څلورويشـــتمه نېټه مزارشـــريف ته لاړم او هلته د جنوري مياشـــتې تر اته

ویشـتمې نېټې پورې د جنرال دوسـتم مېلمه وم. د جوړ شـوي پروګرام سـره سم د جنوري پر پنځه ویشتمه نېټه د ګهیځ پر یوولس بجو  د بلخ پوهنتون ته ولاړم. دا ورځ د محصـــلینو د کانکور ورځ وه او د پوهنتون دننه او د باندې د محصـلینو (نجونې او هلکان) لویه ګڼه ګوڼه وه او په زرګونو محصـلین یوې او بلې خواته روان وو. د بلخ د پوهنتون رییس پوهندوی دوکتور عزت الله، د پوهنځیو مشـــرانو او ډېرش نفرو اســـتادانو زما هرکلی وکړ. د پوهنتون د رییس په خونه کې کېناســـتو او د پوهنتون رییس راته د پوهنځیو مشـــران او استادان معرفي کړل.

تر معرفۍ وروسته د افغانسـتان د روانې کشـالې په اړوند پوښـتنې پیل شـوې. اســتادان د افغانســتان د ایندې د ورور وژنې او د خارجي مداخلو په باره کې اندېښـمن ښـکاره کېدل او د ډېرو دا پوښـتنه کوله چې د افغانسـتان روانه ملي ملي تراژیدي به کله پایته رسېږي. پوښتنې او ځوابونه ډېر وو، لیکن ما په دې غونډه کې د افغانسـتان د ورونړو قومونو د ګډ ژوند او ګډ رول په اړخونو لنډه رڼا واچوله:

افغانستان د ټولو قومونو ګډ کور دی، د پېړیو راهیسې په دې ګډ کور کې ټول قومونه د افغان په نوم ګډ اوسېدلي او په اینده کې په هم ګډ اوسېږي. د تاریخ په اوږدو کې ټولو قومونو تل په ګډه خپل ګډ کور څخه دفاع کړې او په اینده کې به یې هم کوي. ټولو قومونو په ګډه قرباني ورکړې او په اینده کې به یې هم ورکوي. موږ او تاســو تل د باندنیو د مداخلو څخه شـکایت کوو او خپل قصـــور او نیمګړتیاوو ته هېڅ متوجه نه یو. هر ژوندی ملت د خپلو ملي ګټو لپاره هلې ځلې کوي او دا د خارجي هېوادونو حق دی چې په هر ځای کې د خپلو ملي ګټو لپاره سـیاسـي، اقتصـادي او کلتوري حوزې پیداکړي. که زموږ ګاونډیان او یا نور هېوادونه په افغانستان کې مداخلې کوي دا به د دوی د ملي

ګټو غوښتنه وي. اساسي پوښتنه دا ده چې افغانان ولې د خپلو ملي ګټو پرضد د نورو د ملي ګټو د ژغورلو لپاره نوکري کوي؟ په دې کې هېڅ شک نه شته چې یو شمېر خارجي هېوادونه د افغانانو ترمنځ قومي، نژادي او ژبني تعصباتو ته لمن وهي، اما د دې تعصبـــاتو د راپارولو په برخه کې د ځینو افغانانو هم لوی لاس دی، له بده مرغه د بل هر قشـــر په تناســب زموږ د روشـــنفکرانو ځینې اشـــخاص او ګروپونه چې زه ورته (تاریک فکره) وایم له هر چا څخه زیات د تعصـــباتو د راپارولو په لارکې ډېر خطرناک رول لوبوي. له دغې جملې څخه ځینې محض په ایډیالوژیکانو پورې، ځینې په شـخصـیت پرستۍ پورې، ځینې په کورنۍ پورې، ځینې د قوم او قبیلي پورې او ځینې د ژبني، نژادي او سیمه ییزو تعصباتو پورې نښتي دي او افغان او افغانستان یې له یاده وتلی دی. زموږ د هېواد نوم افغانســـتان دی او د دې هېواد اوســـېدونکو ته افغانان ویل کېږي.

په افغانستان کې د پښتنو لپاره پښتونستان نه شته. په افغانستان کې د تاجکو، ازبکو، ترکمنو، بلوڅو او دري ژبو لپاره تاجکستان، ازبکستان، ترکمنستان او بلوچستان نه شته. په دغو نومونو جمهوریتونه د امو دریاب اخوا پراته دي او د فارسـیوانانو لپاره ایران او د بلوڅو لپاره په پاکسـتان او ایران کې سـیمې موجودې دي، تر څو چې دغوکم شـــمېره افغانانو د ایډیالوژیکانو، ګوندونو او تنظیمونو، توکم، شـــخصـــیت پرســـتي، ځانونو، کورنیو قوم، قبیلې، ژبې او ســیمې پرځای افغان او افغانســتان ته د اولیت مقام نه وي ورکړی، تر هغې به افغانان په یو او بل نوم د خارجیانو نوکران او اجیر ســـپاهیان وي، تر هغې به خپل خپلمنځي شخړې، تربګنۍ، دښمنۍ او مرګ ژوبله روانه وي، افغانان به اواره وي، بې حیثیته به وي او بالاخره به د دوی هېواد د نابودۍ کندې ته غورځول کېږي. دا په خپله په افغانانو پورې اړه لري چې ایا دوی د افغان نوم

**واحد او خپلواک افغانســـتان غواړي او که د بې مفهومه تعصـــباتو په اور کې خپل ملت او وطن سوځوي.**

**پوښتنه: تاسې په دې وروستیو کې د جنبش له مشر سره هم ولیدل، که نه؟ که مو لیدلي وي د افغانستان د لانجې په باب د ده نظر څه و؟**

**ځواب: د جنورۍ پر شپږویشتمه نېټه مې د جنرال دوستم سره ولیدل او پوره یو نیم ســـاعت مو د افغانســـتان د کشـــالې په ټولو اړخونو دوه په دوه خبرې وکړې. زموږ په خبرو کې د رواني جګړې، خارجي مداخلې او په افغانســـتان کې د ســـیاســـي حل او ســـولې په مختلفو اړخونو اوږدې خبرې وشـــوې او د خبرو په دوران کې جنرال دوســـتم پر افغانســـتان د واقعي ســـولې د رامنځته کېدو او ســـیاســـي حل لپاره د ملګرو ملتونو د نماینده د هلو ځلو او د ملګرو ملتونو د عمومي اسمبلۍ او امنیت شورا د پرېکړو ملاتړ کاوه.**

**په پای کې مې جنرال دوســـتم ته وویل چې: د افغانانو د ســـولې هغه جرګه چې کابل ته تللې وه، مزارشـــریف ته هم راتګ غواړي. هغه موظف شـــخص ته هدایت ورکړ چې هغه دې د جرګې د راتګ د نېټې په باره کې مخکې خبر کړي.**

**د جنورۍ په اوه ویشتمه نېټه د کیمیاوي کود او برق فابریکو ته ولاړم او هلته مې د فابریکو د رییس انجنیر عبدالقدوس په ملګرتیا د دغو فابریکو، ماشـــین الات، انجنیران، کارګران او د مختلفو څانګو ټولې تولیدي عملیې ولیدلې.**

# له جنګي ډلو سره بهرنۍ مرستې، افغانستان د سولې د اعادې د لارې لوی خنډ دی

دا مرکه د (وفا) جريدې د شپږم کال په (۱۳-۱٤)مې ګڼه کې د (۱۳۷٦ل) کال د ورې مياشتې پر (۲٦)مه نېټه خپره شوې ده.

د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې له مشر پروفيسور عبدالرسول امين سره دوکتور عادل ظريف په پېښــور کې د خپرېدونکې انګرېزۍ ورځپاڼې فرنټيير پوسټ لپاره يوه مرکه کړې ده، چې د دې مرکې لوی ټکي په دې ډول دي:

پوښتنه: د ملګرو ملتونو د هيئت او کار د ناکامۍ څه علتونه دي؟

ځواب: سوله افغانانو ته څکه نه راځي چې بهرني ځواکونه له جنګي ډلو سره مرســته کوي او دغه کار همدغه شــان جاري دی. ملګرو ملتونو ته په کار دي چې په افغانســتان کې د واقعي ســولې لپاره لاره هواره کړي او د يو دوامداره حل په غرض هلته يو موثر هيئت واستوي. د يو پراخ بنياده حکومت فارمول چې د امنيت شــورا له خوا وړاندې شــوی، په افغانســتان کې د ســولې د تامين لپاره يوازينی حل دی. موږ بېلابېل ســياســي ايتلافونه تر ازمايښـــت لاندې وليدل، ولې ټول په هوا کې الوتي دي. هغه فورمولونه چې د هغو له مخې د

پېښـــور، اســـلام اباد او جلال اباد توافقونه او موقت حکومتونه منځته راغلل، ټول له ناکامۍ سره مخ شول، د دې ټولو ناکامو موافقو خالصه نتیجه څه ده؟ مطلقه ناکامي، د جګړو وینې بهېدنې او د تخریباتو زیاتوالی، ملګرو ملتونو همدغه متروکې فورمولې له هماغه شـــان فاجعه يي نتایجو ســـره تعقیب کړي دي. د دغې ســازمان پالیســي، بې تســلســله ده او له خلکو ســره د مشــورو پرځای د جنګسالارانو سره پر مشورو بنا ده.

پوښتنه: د ۱۹۹٤ م کال د کویټې د موافقې د ناکامۍ اصلي علتونه څه وو؟

ځواب: دا یو ډېر ښــه پیل و، چې د افغاني ټولنې د بېلابېلو برخو او قشــرونو اســـتازي په کې رابلل شــوي وو. په هغو کې عالمان، قومندانان، روحاني شـخصـیتونه، سـپین ږیري او نور منورکسـان شـامل وو. بله مثبته خبره دا ده چې هغوی ځان ته کوم مقامات نه غوښـــتل، بلکې دا ارزو وه چې د افغاني ټولنې پر وړاندې خپل مسولیت ترسره کړي. اساسي هدفونه دا وو:

الف- ســـتونزې باید په ګوته کړي او له هغو ســـره د برخوردکولو تګلورې وټاکي.

ب- سیاسي حل، د سیاسي حل لپاره دا لاندیني نکات ضروري ګڼل کېدل:

- د کابل غیر نظامي کول.
- د ملګرو ملتونو د مـاهرینو لـه خوا د یو بې طرفـه امنیتي ځواک رهبري کول.
- د یو موقت بې طرفه حکومت رامنځته کول، چې په هغه کې غیر ګوندي شـــخصـــیتونه، چې اکثره یې د هغو تکنوکراتانو له ډلې څخه وي، چې په جنګ کې نه دي اخته شوي.

پر دې تاکيد شـــوی و، چې هغوی به د قدرت لپاره نه وي کاندید، هغوی به يوازې د ســـولې د تامین لپاره لاره اوارول او بس. د ملګرو ملتونو هيئت ته دا سپارښتنه شوې وه، چې له هغو بهرنيو هېوادونو سره خبرې وکړي، چې په ژوره توګه په دغه مسله کې ښکېل دي او د هغو ملکونو چې د ملي ګټې له یو بل ســره په ټکر کې دي. که چېرته ټول په افغانســتان کې د ســولې د تامین په عمومي اجنډا باندې موافق وي او په صداقت سره هغه مني او په دې صورت کې هغـه مطلوبـه نتـايج ورکوي، چې دخيـل دولتونـه خپلې پراخـه مـداخلې ودروي. داکار هغه وخت سرته رسېدلای شي، چې ټولو هغو جنګي ډلو ته- چې په افغانســتان کې دننه جنګېږي- هر ډول مالي او نظامي مرســته کوي، دا غوښتنه ورسول شي. دغه بې طرفه حکومت د دوه کلونو لپاره په نظر کې و.

د نوموړي حکومت دندې په دې ډول دي:

١- دمذاکراتو له لارې د سولې رامنځته کول.

٢- د مهاجرينو هېواد ته بېرته ګرځېدنه.

٣- د جنګ ځپلي هېواد بیا جوړونه او اعمار.

٤- د لويې جرګې د تدوير لپاره د مناسبو شرايطو برابرول.

٥- د اساسي قانون طرحه او د لويې جرګې له لارې د هغه تاييد.

د موقت انتقالي حکومت لپاره ځينې نور شرایط هم قيد شوي وو، لکه:

- دا انتقال حکومت به د هېڅ یوې ډلې او یا بهرني ځواک ســره کوم تړون نه کوي.

- تر هغه پورې چې يو پاليسي جوړوونکی پارلمان، نه وي تشکيل شوی، دغه انتقالي حکومت به خپلې پرېکړې د فرمانونو په شکل نافذوي.
- هغه کسان چې په دې پروسه کې شامل دي، هېڅ ډول دولتي مقام به نه نيسي او نه به هم په کوم سياسي فعاليت، لکه انتخاباتو کې ګډون کوي.

اساسي ستونزه چې د دې پروسې پر وړاندې خنډ شوه، هغه د بې طرفی د هغو اصولو څخه سرغړونه او انحراف دی، چې ورباندې توافق شوی و. د ملګرو ملتونو هيئت چې د محمود مستيري له خوا رهبري کېده، په دې لړ کې يې مسلسل کار ونه کړ او له مرکزي اجنډا څخه يې انحراف وکړ. هغه د خپل صلاحيت په حدودو کې کله چې د جنګي ډلو او ګوندونو سره خبرې کولې، د سازش څخه کار واخيست، دا د ملګرو ملتونو د سازمان د هيئت د پای پيل و.

پوښتنه: څنګه کېدای شي چې په ښه توګه، سياسي بن بست پايته ورسول شي؟

ځواب: هغه دولتونه چې په ښکاره ډول په افغانستان کې مداخله لري، د دوی ترمنځ د رقابت او سيالی اصلي ټکي دادي، چې هر يو يې غواړي چې په افغانستان کې خو دوست حکومت او يا هم ګوډاګی رژيم د خپلو اصلي ګټو د ساتنې لپاره ولري. ښکاره ده چې هغوی د دوهم هدف لپاره کار کوي. په دې وجه لانجه لا دوامداره شوې ده او افغانستان لا هم د ويجاړی پر لور تللی دی. افغانستان داخلي يووالي ته اړ دی، څو وکړای شي په نړيوالو پاليسيو کې راښکاره شي. يو ملت چې په سوله کې وي، ټولنيز او اتنيکي

عدالت ولري، کولای شي چې بهرنۍ نړۍ ته یوه د ارتباط منبع وګرځي. د یو ډاینامیک او واقعاً مستقل افغانستان لپاره یو هوښیارانه او روښانه برخورد کولای شي، چې دې هدفت ته د رسېدو په لاره کې مرسته وکړي. هغه لارې چارې چې سیال دولتونه یې تعقیبوي همدغه شان چې د هغو اصلي ملاتړ کوونکو طرح کول او نتیجه یې نه درلوده، دوی لپاره به ګټه ونه لري. د ګټو د ترلاسه کولو او اختیار د ترلاسه کولو جګړې پای نه دی موندلی. د شوروي د ختمېدو سره لویدیزې نړۍ د هغه هېواد پر وړاندې ځان له اخلاقي مسوولیت څخه فارغ وګاڼه، هغه چې د هغو د غلطو پالیسیو قرباني وګرځېدل، هوښیاره او بیداره افغانان د غرب په دې بې تفاوتۍ باندې ډېر افسوس کوي. ایا داکېدای شي چې نړۍ افغانستان د دغه شان سترې انساني او مادي قربانۍ څخه وروسته هېر کړي؟

ټول ((ذیدخله)) هېوادونه موجود واقعیت له نظره غورځوي، هغوی فعالانه، خپلې نوې پراختیا غوښتونکي پالیسي د نوي مارکېټ امکانات له نظره نه غورځوي. د افغانستان ستراتیژیک موقعیت کولای شي د سیالي کوونکو ځواکونو ترمنځ د پُل حیثیت ولري. په اوسني وخت کې هر ملک هڅه کوي چې د افغانستان موقعیت د خپل رقیب د ځملولو لپاره استعمال کړي، ولې یو مستقل افغانستان د ټولې سیمې د تجارتي او سوداګرۍ د غوښتنو او ګټو لپاره په کار راتلای شي، که چېرته دلته سوله قایمه شي دا د منطقې د سولې او امنیت په نفع دی.

پوښتنه: ایا افغانستان په سیمه کې د یوې ببلانس کوونکې قوې په حیث خپل تاریخي بېطرفانه رول لوبولای شي؟

ځواب: افغانســـتان داســـې هېواد دی چې دا قومونه په‌کې ژوندکوي، لکه تاجکان، ازبکان، بلوڅ او پښتــانه چې د بېلانس‌کوونکي ځواک په حیث يې د سترو قدرتونو او ګاونډيو ترمنځ خپل تاريخي رول لوبولی دی. په‌ګاونډيو ملکونوکې هم دغه قومونه اوسېږي هر قوم چې هڅه وکړي بل قوم تر نفوذ لاندې راولي،کولای شي چې د ((منافعو د تصادم)) سبب شي او دا په خپله بېلانس زيانمنوي. دا به د ټولې سيمې لپاره د بې ثباتۍ موجب وګرځي. د افغانستان دننه سياسي سيستم بايد د بېلابېل اجزاوو هارموتيف بېلانس تامين کړي. دا بايد اتنيکي استثمار رامنځته نه‌کړي چې په نتيجه‌کې له ګاونډيو قومونو سره تصادم راشي. دننه په ټول هېوادکې او د هغه د سرحداتو څخه د باندې سوله اساسي هدف وي.

پوښتنه: ايا ملګري ملتونه په دې هکله‌کم مثبت رول لوبولی شي؟ څنګه کېدای شي چې تېرې تېروتنې او اشتباهات رفع شي؟

ځواب: د ملګرو ملتونو د سولې هيئت بايد يو قوي صلاحيت او ماندېت ولري چې خپلې پاليسۍ عملي‌کړای شي. د دوی پاليسي بايد د رقيبو هېوادونو له خوا چې خپلې ګټې د افغانستان له‌ګټو څخه مقدمې ګڼي، نو مداخلې لاندې را نه شي. اوسنی‌کړکېچ له دې وجې دی چې په افغانستان‌کې په مستقيم او نامستقيم ډول بهرني ځواکونه مداخله لري، ټولې مالي او نظامي مرستې چې دې ډلو سره سرته رسېږي، بايد وربانديې بنديې شي. که چېرته دغه تحريم عملي شي او يو بېطرفه امنيتي ځواک د ملګرو ملتونو په رهبرۍ او د اسلامي‌کنفرانس د غړو په‌ګډون د سولې نظارت وکړي، لکه چې په بوسنياکې يې سرته رسوي. سياسي ابتکارات وروسته له هغه بايد تعقيب شي.

**پوښـــتنه: کم شـــی دی چې د امریکې متحده ایالات او ملګري ملتونه په افغانستان کې د خپل رول د اثبات څخه لیرې ساتي؟کم شی دی چې د سولې عمومي هدف څنډوي؟**

**ځواب: دلته یو عجیبه مهمله د سـولې او تجارتي ګټو ترمنځ منځته راغلې ده. تجارتي ګټې پر سوله لومړیتوب مومي. په واقعیت کې سوله باید لومړی هدف او غایه وي. په افغانستان کې د سولې په لاره کې درې اساسي خنډونه دا دي:**

**ـــــ هغه کشـــاله چې د امریکې د متحده ایالاتو او د ایران ترمنځ روانه ده د افغانستان په هکله په پالیسیو یې بده اغیزه کړې ده.**

**ـ د منځنۍ اسیا د مارکېټ لپاره تلاشونه او منډې ترړې د افغانستان د لانجې سیاسي حل پېچلی کړی دی.**

**ـــ په واقعیت کې تجارتي اجبار هر یوه خوا په افغانستان کې د دایمي سولې د اهمیت پر وړاندې ړنده کړې ده. په واقعیت کې له دې سـره سـتونزې نورې ډېرې شـوې دي، ځکه سیالې خواوې په ړوندو سترګو د مارکېټ په تکل کې د افغانستان ثبات له نظره غورځوي.**

**. بهرني هېوادونه د افغانستان انتیکي ډلې د دې لپاره استعمالوي چې د هغوی د اسـتثماري او پراختیا غوښـتنې اجنډا عملي کړي. دا د اوسـنۍ کشـالې ډېر خطرناکه کړکېچن اړخ دی. دا د افغانســـتان یووالی او تمامیت تهدیدوي، د دې پالیســۍ مخه باید ونیول شـــي. مخکې له دې چې ټولې سـیمې ثبات او استحکام د رقیبو دولتونو له خوا ګډوډ شي.**

**پوښتنه: ایا تاسې د لویدیزې نړۍ په ځانګړې توګه د امریکې د متحده ایالتونو په پالیسۍ کې کوم تناقص ګورئ؟**

ځواب: غرب په عمومي ډول او د امریکې دمتحده ایالاتو په خاص ډول د هغه ملت پر وړاندې چې د شوروي اتحاد پرضد یې د سولې لپاره د دوی د ګډې غوښتنې په غرض مجادله کړې ده ((خپل اخلاقي مسوولیت)) نه دی پوره کړی.

مور سره فریب وشو او له نظره وغورځېدو. د امریکې متحده ایالات اخلاقاً دنده لري چې په افغانستان کې له واقعي سولې څخه حمایت وکړي. نظامي پالیسي افغانستان ته سوله رانه وړه. دا به وکتل شي چې ایا د امریکې متحده ایالات د افغانستان د ازادۍ او استقلال د حق د تامین لپاره خپل صلاحیت په کار اچوي او که نه؟ دلته د امریکې متحده ایالاتو په پالیسۍ کې تناقض دی، چې د سولې د نه راتلو په لاره کې اساسي نقض او عیب دی.

پوښتنه: ایا د پاکستان پالیسي مثبته او جوړوونکې ده؟

ځواب: پاکستان هم له خپلو پلویانو څخه ملاتړ کوي، چې په افغانستان کې خپل دریځ پیاوړی کړي. دا د عدم مداخلت د پالیسۍ سره سمون نه لري. طالبان نه شي کولای دایمي سوله افغانستان ته راوړي، هغوی به لکه د پخوانیو په شان ناکامه وي، هېڅوک نه شي کولای چې د افغانستان د خلکو د ارادې خلاف کار وکړي.

د دې نادودو په نتیجه کې د افغانانو احساسات تر پښو لاندې دي چا چې د تېروکلونو په جریان کې زیاتې ستونزې تحمل کړي دي. دا لیدل کېږي چې د طالبانو ملاتړکوونکي غواړي د افغاني ټولنې عنعنه یي جوړښت ویجاړ کړي چې په دې توګه خپل ناوړه اهداف ترلاسه کړي. افغانانو د پېړیو په اوږدو کې یووالی او برابري درلوده. په افراطي توګه د اسلام تعبیر به نه یوازې د دغه

**ستر دین په هکله تصورات ناوړه کړي، بلکې دا به د عامې ناخوښۍ او په پای کې د دغو پالیسیو د ناکامۍ موجب شي. څنګه کېدای شي چې دموکراسي د طالبانو د تحریک د افراطي اجنډا سره جوړه راشي؟ دا د ټولو هغو لپاره چې د انسـاني حیثیت او ازادۍ مدعیان دي، یوه مهمله خبره ده. ایران، سـعودي عربسـتان، تاجکسـتان او ازبکسـتان هم په افغانسـتان کې د خپلو پلویانو په ملاتړ سره سوله زیانمنوي. نظامي لاره بې نتیجې لوبه ده، سیاسي ابتکارات باید وشي.**

**تر هغې پورې چې دا مرکزي بدلون را نه شي، په افغانستان کې به دایمي سوله هم را نه شـــي. پاکســـتان به د دې امکان و نه مومي چې  د منځنۍ اســـیا د مارکېټ څخه ګټه پورته کړي.**

# تنظيمونو ولې او څنګه له يو بل سره جګړې پيل کړې؟

دا مرکه د (وفا) جريدې د شپږم کال په (۳۳-۳٦)مې ګڼه کې د (۱۳۷٦ل) کال د تلې مياشتې پر (۸)مه نېټه خپره شوې ده.

د امريکا غږ پښتو څانګې د خپلو مرکو او تبصرو په لړ کې: د افغانستان اسلامي تنظيمونو ولې يو له بله سره جګړې پيل کړې؟ موضوع وڅېړله. د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر پروفيسور عبدالرسول امين نه يې پوښتنې وکړې. موږ ددې مرکو او تبصرو ځينې مسايل دلته را اخلو، د خپرونې چلوونکي استاد ترې په پيل کې وويل:

د ۱۹۷۸م کال د ثور ترکودتا وروسته د خلق- پرچم د طرفدارانو او د هغوی د مخالفينو ترمنځ جګړه روانه شوه او ډېرو خلکو او مبصرينو دا جګړه د خلق- پرچم د ډلې له الحادي او استبدادي اعمالو سره مبارزه ګڼله. په ۱۹۷۹م کال کې شورويانو پر افغانستان يرغل وکړ او د افغانستان د جګړې شکل د کيفيت او کميت په لحاظ بدل شو او ټول افغان ولس له شورويانو سره مقاومت پيل کړ. دا جګړې خلکو د افغانستان د ملي خپلواکۍ او له کمونيزم سره د اسلام جګړه بلله. روسان چې ووتل د افانستان جنګ د نجيب د حکومت او د اسلامي تنظيمونو په جنګ بدل شو او دا د مجاهدينو او د شورويانو د لاسپوڅو او بقاياوو سره جګړه وبلل شوه، د نجيب د حکومت له سقوط نه وروسته خپله د اسلامي تنظيمونو ترمنځ جګړه روانه

شـوه او د هېواد پایتخت کابل یې لوټې لوټې کړ، تاسـو ماته ویلی شـئ چې دا جګړه د څه لپاره وه؟

پروفیسـور امین: کوم وخت کې چې کمونسـتان قدرت ته لا رسـېدلي نه وو، دوی د کارګر او بزګرو او سـرمایه دار او فیوډال په نامه تضـاد قومونو ته راکښـته کړ. البته زما مطلب ولسـونو ته رسـول نه دي، بلکې د دوی چې کوم ګوندي غړ یوو، هغوی کوشـش کاوه چې د افغانسـتان په جامعه کې د تش په نـامـه طبقـاتي تضـاد تر پردې لانـدې د افغـاني قومونو ترمنځ اختلافونـه راپیداکړي. دا قومي اختلافات د ایډیالوژۍ په نوم افغانسـتان ته راغلي دي چې قومي تعصـبونو ته یې ډېره لمن ووهله. مور او تاسـو د خلقیانو په دوره کې ولیدل چې قومي مشران هم ووژل شول ، عالمان هم ووژل شول او نور ینې افغانستان کې داسې یوه سیاسي معضـله راغله چې هغې د افغانسـتان په چوکات پورې هېڅ ارتباط نه درلود.

هغې ډلې چې په افغانستان کې سیاسي قدرت نیولی و، مور ټولو ته معلومه ده چې د غه ډله هم د بهر څخه جوړه شـوې وه. په ایران کې هم ډلې جوړې شوې او په پاکستان کې هم، سعودي عربستان هم کومکونه شروع کړل، خو هغه کسـان چې د افغانسـتان په مسـایلو پوهېدل، هغوی په دې خبره ټینګار کاوه، چې په پاکسـتان کې د اوو ګروپونو او په ایران کې د نهه ګروپونو او همداسـې د نورو وړو وړو ګروپونو جوړېدل، دا په اینده کې د افغانسـتان د ملي وحدت لپاره ښه نه دي، دغو افغانانو غوښتل چې په افغانستان کې واحد قیادت رامنځته شي د هغو خبرو ته چا غوږ کېنښود او دغه ګروپونه یې ډارول نه پخپلو منځو کې په تضاداتو واچول.

**پوښــتنه: زه په متواتر ډول اورم چې ویل کېږي د افغانســتان په جګړه کې ژبه، مذهب، ولایت، قوم او نور ډېر ویل شــوي دي، په دې برخه کې تاســو څه شــواهد او دلایل لرئ، چې د افغانســتان په جګړو کې دغه عناصــر هم موثر دي؟**

**پروفیســور امین: خلک وایي چې د افغانســتان مســایل قومونو، ژبو او دې ته ورته مســایلو ته اوړېدلي دي، زه دا خبره څکه نه منم چې که چېرې دا خبره قومونو ته رســېدلې وای، نو اوس به ټول قومونه د نورو قومونو ســره نښــتي وو، لکه مخکې چې ورباندې بحث وشــو، ګروپونه هم معلوم دي، تنظیمونه هم معلوم دي چې د چا له خوا جوړ شـوي دي. په اوسـنیو شـرایطو کې زه په زغرده ویلای شــم چې د ټولو تنظیمونو ســره هغه خلک چې د ژبني، قومي، نژادي او نورو تعصــباتو نه، لکه څنګه چې عادي خلک دغســې پاک دي، دا بالکل پاک دي او هر یوه اوس پیسې ورکوي او ځان ته خلک نیسي او هر یو کوشـش کوي چې د تنظیمونو او تعصـبونو مسـایل پرګنو ته راکښـته کړي، چې خلک ووایي چې زما قوم په خطر کې دی او بل ووایي چې زما قوم په خطر کې دی، زما په نظر د افغانســتان دننه قومونو جګړې لا نه شــته دي او پرګنې هم د دوی په کارونو باندې اوس پوهېږي.**

# د افغانستان په حقوقي موسساتو کې د لويې جرګې بنسټيز ارزښت

| |
|---|
| دا مرکه د (وفا) جريدې د شپږم کال په (۲۹-۳۲)مې ګڼه کې د (۱۳۷۶ل) کال د وري مياشتې پر (۹)مه نېټه خپره شوې ده. |

په دې وروستيو مياشتو کې د لويې جرګې د جوړېدو لپاره، د ځينو افغانانو له خوا په اسلام اباد او فرانکفورت کې مقدماتي غونډې وشوې. له دې غونډو سره په رابطه کې- د کابل پوهنتون پخواني استاد، پوهاند دوکتور محمد حسن کاکړ، د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر پروفيسور رسول امين، دوکتور احدي او ښاغلي حامدکرزي - سره د امريکا غږ پښتو خپرونې د اګست په مياشت کې مرکې وکړې، چې د څلورو واړو ښاغلو مرکې يوځای نشر شوې. موږ له دې مرکو څخه د ښاغلي پروفيسور امين مرکه دلته کټ مټ تاسو لوستونکو ته وړاندې کوو:

توضيح او پوښتنه: زه ګومان کوم چې د کرزي صاحب لهجه بېخي صريحه وه چې دا د هېچا په ابتکار نه وه جوړه شوې او دا غونډه د هغو خلکو په ابتکار جوړه شوې وه چې په دې جلسه کې وو. راځئ تاسې فرض کړئ چې دغه هڅې د لويې جرګې لپاره کاميابې شوې او په نهايت کې لويه جرګه جوړه شوه- دا چې چېرته راټول شول- په هغه پسې هم مه ګرځئ ايا دغه لويه

**جرګه به ددې توان او صلاحيت ولري چې د افغانستان دا اوسنۍ ستونزه حل کړي؟**

**پروفيسور امين: زه ګومان کوم چې موږ افغانانو يو شي ته سم فکر نه دی کړی او هغه دا دی چې ايا طالبان او د شمال خلک، دا ازاد خلک دي او که دوی د بل چا له خوا حمايه کېږي، زما په شخصي نظر، لکه چې کاکړ صاحب هم ورته اشاره وکړه د کويټې په جرګه کې په دې مسله خبرې شوې دي او تاسو پوهېږئ چې هلته ماته د منشيتوب دنده راکړل شوې ده او غوږونه مې ورته نيولي وو، ماته يوه خبره تثبيت شوه چې د افغانستان دا اوسنۍ روانه لانجه دا د خارجيانو په اشاره روانه ده، هلته مستيري ته وويل شول که چېرته د افغانستان د لويې جرګې لپاره کار کوئ، نو ته داخل ته لاړ شه او دا هم وويل شول چې ته به اسلام اباد، تهران، رياض، مسکو، واشنګټن او نورو ځايو ته ځئ.**

**د خپروني چلوونکي پوښتنه وکړه: دمخه وويل شول چې د جرګې د کاميابۍ لپاره د طالبانو او د طالبانو د مخالف ايتلاف موافقه عمده شرط دی، تاسو اوس وايئ چې د ډېر همسايه ممالکو او حتی جهانی قدرتونو موافقه هم د لويې جرګې لپاره يو حتمی شرط ګنل کېږي، ايا دا شرطونه به څنګه پوره شي؟**

**پروفيسور امين: موږ بايد د افغانستان په ارتباط ځانونه تېر نه باسو، کوم خلک چې د طالبانو په نامه هلته تللي دي، ياني دا به نه وايم چې ټول خلک، خو رهبري يې له بهر نه وه او هدايتونه يې له بهر نه دي، او که د شمال قوتونه دي د هغوی حمايتکر هم معلوم دي، چې بهرنيان دي او د افغانستان په هکله د بهرنيانو تضاد په دې کې دی چې څه چې پاکستان غواړي ايرانيان يې**

نه غواړي، څه چې ایران غواړي امکان لري د تاجکستان او ازبکستان له ګټو سره تضاد ولري، یانې د افغانستان په مسله باندې ډېر لوی تاثیر د بهرنیو قوتونو دی. پوښتنه وشوه: هغه څوک چې لویه جرګه جوړوي که په اسلامی اباد کې یې جوړوي یا فرانکفورت کې یې جوړوي، او یا اوس غواړي په ترکیه کې یې جوړه کړي، یا وغواړي بل سبا یې په امریکاکې جوړه کړي، ایا دوی څه سند لري چې دوی داکار د خارجیانو په اشاره او هدایت نه کوي؟

پروفیسور امین: یو فرق په دې کې شته، دغه خلک که په افغانستان کې یو دوست حکومت جوړوي په هغې باندې د ګاونډیانو یوې مشترکې موافقې ته سره رسېدل د افغانستان د اوسنیو ستونزو د اواریو له ضروریاتو څخه دي.

زموږ د بحث اصلي موضوع دوه مشخص ټکي دي: یو دا چې لویه جرګه د افغانستان په وروستي تاریخ کې، یانې د غازي امان الله خان له دورانه راپدېخوا څنګه جوړه شوه، د څه لپاره جوړه شوې او څه یې کړې دي، بل دا چې که چېرته لویه جرګه جوړه شي د جوړېدو هدایت به یې کوم مقام صادروي؟ غړي به یې څنګه ټاکل کېږي؟ او فیصلې به یې څوک په کوم زور عملي کوي؟

پروفیسور امین: زه فکر کوم د افغانستان په تاریخ کې کومه مشخصه ملي موضوع چې راغلې ده د هغې لپاره لویې جرګې رابلل شوې دي، د امان الله خان په وخت کې موږ دوه لویې جرګې لرو یوه په جلال اباد کې جوړه شوه چې نیمګړې غونډې وه. اساسي قانون او نظامنامې په هغې کې تصویب شوې او بله په پغمان کې وه چې په افغانستان کې څنګه اصلاحات راشي؟ د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه په وخت کې درې لویې جرګې راغلې دي؛ یوه جرګه د ۱۹٤۱ م کال وه، دا وخت د افغانستان حکومت له یوې معضلې

سره مخامخ و، حکومت غوښتل چې په کابل کې مېشت جرمني او ایټالیایي کارکوونکي انګرېزانو یا روسانو ته ورکړي، نو هغه چې لویه جرګه یې راوبلله او جرګې پرېکړه وکړه چې جرمنیان او ایټالیایان باید په خیر او خیریت د ترکیې په لاره خپلو هېوادونو ته واستول شي. تر دې جرګې وروسته په ۱۹۵۵م کال د داود خان د صدارت د دورې لویه جرګه وه. په دې جرګه کې له شوروي څخه د وسلو اخیستل کېدل مطرح شول او د پښتونستان مسله هم په کې راپورته شوې وه او له ټولو مهمه او اساسي لویه جرګه په افغانستان کې د ۱۹۶٤م کال لویه جرګه وه چې د اساسي قانون د تصویب لپاره جوړه شوه. د دغه اساسي قانون له مخې د افغانستان مشروطه پاچاهي، په افغانستان کې دموکراسي او د افغانستان خلکو د ازادۍ ورکړه تضمین شول، بیا وروسته داود خان د جمهوریت په زمانه کې د اساسي قانون د تصویب لپاره لویه جرګه جوړه شوه، چې اساسي قانون یې تصویب او داود خان یې جمهور رییس مقرر کړ او له هغې وروسته نورې جرګې یو د کارمل په وخت کې وشوه، دوی د نجیب الله په وخت کې چې په هغو باندې زه نه غږېږم. اصلي خبره دا ده چې کله به یوه مهمه مسله راپیدا شوه، نو به پر هغې د بحث لپاره لویه جرګه رابلل کېده.

په خپله لویې جرګې ته که موږ راشو، نو لویې جرګې موږ په دوو حالتونو کې لرو؛ یو لکه د میرویس خان په وخت کې یا د احمدشاه بابا په وخت کې چې هغه وخت کې پاچاهانو نه دي راغوښتې، بلکې قومي مشرانو راغوښتې، بل حالت هغه دی چې شاهانو راغوښتې دي.

پروفیسور امین: هغه خبرې ته چې کاکړ صاحب اشاره وکړله، زما په نظر هغه ډېره مهمه خبره ده چې د افغانستان مسله یوه سیاسي معضله ده، د کویټې په

جرګې کې هم په دغه مســله چې اوس بحث کېږي، زه فکر کوم خبرې شــوې دي.

پوښتنه: امین صاحب تاسو چې په کویټه کې کېناستئ یو لړ فیصلې مو وکړې، هغه فیصلې څه شوې؟

پروفیسور امین: د هغو فیصلو غم ونه کړی شو.

# د برچې به زور پر افغانانو حکومت نه کېږي

دا مرکه د (وفا) جریدې د شپږم کال په (۴۵-۴۸)مې ګڼه کې د (۱۳۷۶ل) کال د مرغومي میاشتې پر (۱۰)مه نېټه خپره شوې ده.

د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې مشر پروفیسور عبدالرسول امین د افغانانو په هغه غونډه کې برخه اخیستې وه چې د ډیسمبر پر ۱-۳ نېټه د ایران په اصفهان کې جوړه شوې وه، موږ د دې غونډې په باب یوه مرکه ورسره کړې ده، چې دلته وړاندې کېږي.

پوښتنه: د اصفهان غونډه تاسو څنګه ارزیابي کوئ؟

ځواب: زما په نظر دغه غونډه د قاضي عبدالرحیم کوشکی او په ایران کې د ځینو افغانانو له خوا په ښه نیت دایره شوې وه، ځکه چې دغه غونډه په افغانستان کې د سولې لپاره ده او اوس ټول افغانان دې نتیجې ته رسېدلي دي، چې په افغانانو باندې هېڅوک د برچې په زور حکومت نه شي کولای. قاضي کوشکي په دې غونډه کې د ګډون لپاره د طالبانو په شمول په افغانستان کې دننه او له افغانستان څخه د باندې ډېرو افغانانو ته دعوتنامې لېږلې وې، په غونډه کې ځینو افغانانو ګډون وکړ او ځینې افغانان د ځینو معذرتونو له امله او طالبان د خپل مشخص دریځ له امله غونډې ته رانغلل.

ددې غونډې مثبت اړخ دا و چې ځینو افغانانو په ډېره ازادانه توګه خپلې نظریې وړاندې کړې، ټولو د یو بل نظریې په سړه سینه واورېدلې او د غونډې له پیل نه ترپایه هېڅ ډول تشـنج منځته رانغی او ځینو د هر ډول ډار نه غیر

خپلې خبرې وکړې. په دې غونډه کې د ګوندونو او تنظیمونو نماینده ګانو او مستقلو افغانانو مختلفې نظریې وړاندې کړې او د غونډې په پای کې یو داسې پرېکړه لیک تصویب شو، چې هغه ټولو افغانانو ته د منلو وړ و.

زما په نظر د افغانانو د سولې مساله په هغې کمېټې – چې په تهران کې تاسیس شوې ده– ارتباط لري چې دغه کمېټه د افغانانو ترمنځ د سولې د راوستلو لپاره څه ډول او څنګه فعالیت کوي؟ که د سولې په کمېټه کې هغو اشخاصو ته چې واقعاً د افغانانو ترمنځ سوله او مفاهمه غواړي ځای ورکړل شي، شاید چې د سولې په لاره کې ډېر کار وکړي او که یوازې هغو اشخاصو ته چې د افغانستان او افغانانو پر ځای یوازې په ایډیالوژیکو ګند، مشرتابه او په ژبنی، نژادي، مذهبي او سیه ییزو مسایلو پورې نښتي وي، ځای ورکړل شي، نو بیا خو د دغه کنفرانس ټولې هلې ځلې بېځایه دي.

پوښتنه: تاسې هم په دې کنفرانس کې خبرې وکړې، د خپلو خبرو غټې ټکي که لوستونکو ته ووایاست؟

ځواب: ما د ځان سره لیکلی مضمون دردلود، بلکې زما وینا په افغانستان، ګاونډیانو او د نړیوالو مسالو پورې ارتباط درلود او د وینا ځینې خبرې د ځینو ویناکوونکو د نظریو د تردید او د ځینو د ویناوو ملاتړ په ارتباط وې او وینا ډېره اوږده وه چې د ویډیو په کسټ کې ثبت شوې ده.

زما دغه اوږدې وینا د لاندنیو مهمو ټکو تشریح وه:

۱– ما د جهاد د پیل نه تراوسه د افغانستان په اجتماعي، سیاسي او نظامي اړخونو رڼا واچوله او څو ځله مې دا واقعیت تکرار کړ چې د افغانستان لپاره د باندنیو هېوادونو له خوا ټاکل شوي مشران د افغانستان او افغانانو په

اجتماعي او رواني مسايلو نه پوهېدل او اوس هم نه پوهېږي. دوی د پردیو په اشاره په کتابي ایډیالوژیو او د پردیو د ګټو د تحفظ لپاره خدمتونه پیل کړل.

۲– تراوسه د افغانانو تش په نوم مشرتابه د خپلو غلطیو، اشتباهاتو او د خپلو ناکامیو په اړوند هیڅ ارزیابي نه ده کړې او اوس هم د افغاني جامعې او د افغانانو د اجتماعي روحیاتو د درک نه غیر په غلطه لار روان دي. هر ګوند او تنظیم او نهضـــت یا حرکت د افغانانو نماینده ګي او ملاتړ د عوې کوي اما دا هم دې ته تیار نه دي چې افغانانو ته د خپل ســرنوشـــت حق ورکړي، که ځینو ګوندونو د چپي ایډیالوژۍ خصــوصــیات خپل کړي او د کمونســتان غوندې په دیکتاتورۍ او د وسـلې په اسـتعمال عیده لري چې له بده مرغه د مجاهدینو له بریالیتوب وروسـته ډېر افغانان بدبخته او اواره او مړه شــول او ښارونه او کلي تباه شول او تراوسه د بدبختۍ دغه لړۍ روانه ده.

۳– ما په خپله ویناکې د جهاد په دوره کې د پاکســتان او ایران کومکونه او ملاتړ وســتایه ځکه چې دغو دواړو هېوادونو د کمونســتانو د رژیم او د شـــوروي اتحاد د یرغل په دوره کې د افغانانو د جهاد او د مهاجرینو ســره ډېرې مرســتې کړې دي. اما په دې ویناکې ما دا هم په ډاګه کړه چې د دغو مرســتو ترڅنګه دغو دواړو هېوادونو د افغـانـانو د هیلو برخلاف په خپلـه خوښـه ګوندونه او تنظیمونه جوړ کړل، مسـلح یې کړل، رسـمیت یې ورکړ او په افغانانو یې تحمیل کړل. دغو جوړو شــویو ګوندونو د افغان او افغانســتان پر ځای ددغو هېوادونو د ملي ګټو لپاره خدمتونه پیل کړل، تراوســـه د دغو هېوادونو په اشـــارو افغانســـتان تباه کوي او تراوســـه په یو او بل نوم افغانان وژني. همدغو هېوادنو افغانان له ملي زعامت څخه محروم کړي دي او اوس هم خپل پلویان په شاه ټپوي او د افغانستان د تباهۍ او د افغانانو د وژنې لپاره وسلې او پیسې ورکوي.

٤– زما د وینا دېره برخه د افغانستان د قامي ترکیب په اړوند ده. زما په نظر د تاریخ په اوږدو کې دغه ستراتیژیک موقعیت افغانان د بدبختۍ سره مخامخ کړي دي او همدغه ستراتیژیک موقعیت د افغانستان وجود ساتلی دی او اوس یې هم ساتلی دی.

په ستراتیژیک لحاظ افغانستان د مرکزی اسیا د هېوادونو ترمنځ د اتصال د کړۍ حیثیت لري. دغه ستراتیژیک موقعیت او د قامونو ترکیب یو ګاونډي هېواد ته هم دا چانس نه ورکوي چې دا یا هغه هېواد دې په ټول افغانستان خپټه واچوي او یا دې افغانستان خپله مستعمره کړي. افغانستان د ټولو ګاونډیو هېوادونو د حریم حیثیت لري. که د ګاونډیانو څخه یو هېواد هم په افغانستان باندې د خپټې د اچولو یا د مستعمره کېدو نیت لري، نو دغه هېواد حتماً په خپله د افغنانو او د نورو ګاونډیانو د شدید مقاومت سره مخامخ کېږي. د افغانستان چاپېره پاکستان، ایران، تاجکستان، ازبکستان، ترکمنستان او د واخان کار دار ته نږدې چین پراته دي. د افغانستان د قامونو لوی یا وړوکي برخې په ګاونډیو هېوادونو کې هم مېشت دي او یو ګاونډي هېواد هم د دې توان نه لري چې د جنګ یا د دسیسو له لارې دې په ټول افغانستان یا خپټه واچوي او یا دې افغانستان مستعمره کړي.

٥– د افغانستان د کشالې د سیاسي حل لپاره زما وړاندیز دا و:

الف: په افغانستان کې روانه جګړه د پخواني شوروي اتحاد، لویدیزو هېوادونو او د ګاونډیو هېوادونو د جاسوسي شبکو د سوړ جنګ بقایا ده او همدا علت دی چې تراوسه د افغانستان مساله د دغو هېوادونو د سیاسي مقاماتو پرځای د دغو هېوادونو د جاسوسي شبکو په لاس کې ده. دا د ګاونډیو او نورو هېوادونو د سیاسي چارو د صلاحیت لرونکو مقاماتو فریضه

ده چې لومړی دې د افغانستان مساله د خپلو شبکو له لاسونو څخه واخلي او په افغانستان کې دې د خپلو هېوادونو د جاسوسي شبکو فعالیتونه بندکړي او د دغو هېوادونو سیاسي ارګانونه دې د افغانستان دکشالې د سیاسي حل لپاره جدي اقدام وکړي.

ب: دا د پاکستان، ایران او سعودي عربستان اسلامي فریضه ده چې د دغو هېوادونو سیاسي مقامات خپلوکې کېني او د افغانستان د سیاسي حل لپاره دې واحده پالیسـي جوړه‌کړي. افغانان په دې واقعیت پوهېږي چې څو دغه درې هېوادونه د افغانستان په اړوند واحده پالیسي وضع نه‌کړي، تر هغې په افغانستان‌کې د سولې راتګ ډېر مشکل‌کار دی. افغانان په دې هم پوهېږي چې د افغانستان په اړون د ایران تر شاه روسیه، هند او د مرکزي اسیا ځینې هېوادونه ولاړ دي او د پاکستان تر شاه سعودي عربستان، یو شمېر اسلامي او لویدیز هېوادونه او امریکا ولاړ دي. که دغه هېوادونه د افغانستان د ستراتیژیک موقعیت او د قامونو د ترکیب د واقعیت پر اساس د افغانستان د مسلې په اړوند واقعي یوه پالیسي جوړه‌کړي، نوکه د یوې خوا دا هېوادونه خپل ملګري نور هېوادونه قانع‌کولای شـي، نو له بلې خوا د افغانستان د روانې کشالې لپاره واقعي سیاسي حل پیداکولای شي.

ج: په افغانستان‌کې د ایډیالوژیو او په ژبنیو، نژادي، مذهبي او سیمه ییزو خصوصیاتو ولاړوګوندونو او تنظیمونو ډېره ترخه تجربه ورکړې ده، ځکه ځینوګوندونو بین المللي او بین الاسلامي ایډیالوژیګانې خپلې کړي او ځینې د ژبنیو، نژادي، مذهبي او سیمه ییزو مسایلو پورې ونښتل چې ځینې د افغانستان له سطحې څخه پورته او ځینې‌کښته ولاړل او د دې‌ګوندونو او تنظیمونو ترمنځ د افغانستان او افغانانو نوم او داعیه ورکه شوه او یوګوند او تنظیم هم د افغانستان او افغان د ملي مسالې تر شاه ونه درېد او نه ورته د

هغو هېوادونو له خوا چې پر دوی يې سرمايه‌ګذاري کړې ده، په افغانستان او افغان باندې د فکرکولو اجازه ورکړل شـــوه. دوی څو ځله ايتلافونه وکړل، اتحادونه يې جوړکړل او پراخ بنســـته حکومتونه يې جوړکړل، اما دغه ټولې هلې ځلې د ناکامۍ سره مخامخ شوې او په افغانستان کې يې د سولې پرځای تباهي او بربادي راوړه او اوس هم دغه ورور وژنه دوام لري. که دوی بيا هم د پخوا په شان بيا تش په نوم پراخ بنسته حکومت جوړکړي، نتيجه به يې هم هغه تباهي او جګړې وي، ځکه چې دوی پر يو او بل باور نه لري او نه تراوســه د افغانســتان په ملي هويت او د افغانانو پر ملي برم عقيده لري او نه ورته‌کارکوي، بلکې تراوســه د ملي نظر پرضــد دي. يوګوند يا تنظيم چې د افغانســتان په ملي هويت او د افغانانو پر ملي خصــوصــياتو باور نه لري، نو د دغوګوندونو او تنظيمونو څخه جوړ پراخ بنســـته حکومت د افغانســـتان او افغانانو مسـلې لپاره د سـياسـي حل له لارې په راپيداکېدوکې حتمن له ناکامۍ سره مخامخ کېږي.

د: افغانان په خپل هېوادکې د ګاونډيانو پرضــد او د ګاونډيانو د لاســپوڅي حکومت مخالف دي. مخالف حکومت نه د افغانانو په ګټه دی، نه افغانان د مخالف حکومت د جوړېدو توان لري. ځکه چې افغانان د خپل تباه شـــوي هېواد د بيا جوړېدو لپاره د ګاونډيو هېوادونو په شـمول د حوزې او د نړۍ د ډېرو هېوادونو د اقتصـــادي، اجتماعي، کلتوري، تخنيکي او نورو مرســـتو ته اشد ضرورت لري او دغه مرستې مخالف حکومت نه شي ترلاسه‌کولای.

له بلې خوا لکه څنګه چې ورته اشــاره وشــوه، په افغانســـتان‌کې د يو هېواد لاســـپوڅی حکومت هم دکاميابېدو چانس نه لري، لکه څنګه چې شـــوروي اتحاد ناکامه شـــو، نو د شـــوروي اتحاد په لار تلونکی او تقليدکوونکی بل هېواد هم مخامخ‌کېږي. دا به د ټولو ګاونډيانو لپاره ډېرګران کار وي، چې

په افغانستان کې دې يو داسې لاسپوځی حکومت منځته راولي چې دغسې لاسپوځی حکومت دی د ټولو ټټو، يا بو وي او ټول دې ورباندې سورلي وکړي، د ټولو لپاره د ټټو حکومت جوړول هم ډېر ګران کار دی. افغانان په افغانستان کې يو دوست حکومت غواړي، يو داسې دوست حکومت چې د افغانستان د ملي ګټو سره يوځای د ټولو ګاونډيانو، د حوزې او د نړۍ د دوستې هېوادونو ملي ګټې هم په نظر کې ولري او د ټولو ګاونډيانو سره د خپلو ملي ګټو سره د ټولو ګاونډيانو ملي ګټې هماهنګ کړي او يو ګاونډي هېواد ته هم د بل ګاونډي هېواد پرضد په خپله خاوره کې د فعاليت اجازه ور نه کړي او د خپل هېواد په ستراتيژيک موقعيت د قامونو په قامي ترکيب، د ګاونډيانو ترمنځ د دوستۍ د پُل په حيث او د حوزې او نړۍ پر واقعيتونو اګاهانه او شعوري فکر وکړلای شي او د دغو واقعيتونو په رڼا کې د افغانستان د داخلي او خارجي ستونزو لپاره عملي ملا وتړي. دا اوس د ګاونډيانو اسلامي فريضه ده لکه څنګه چې يې له افغانانو سره د جهاد په وخت کې مرستې کړي دي اوس دې له افغانانو سره په سوله او د يو دوست حکومت په جوړېدو کې مرسته وکړي.

# افغاني ټولنه یوه مسلمانه، مساوات طلبه او اعتدال خوښوونکې ټولنه ده

دا مرکه د (وفا) جریدې په (۵۰)مه ګڼه کې د (۱۳۷۲ل)کال د جوزا میاشتې پر (۱۳)مه نېټه خپره شوې ده.

د ازاد افغانســـتان د لیکوالو ټولنې مشـــر پروفیســـور عبدالرســـول امین د - National Endowment for Democracy د موســـســـې له خوا د The world Conference on challenges to Democracy in the New Ara په کنفرانس کې د ګډون لپاره د امریکا متحده ایالاتو واشنګټن ته دعوت شوی و. پروفیسور امین په دغه کنفرانس کې د ګډون په موخه د اپریل په څلورویشـــتمه نېټه هغه هېواد ته ولاړ او د مې د میاشتې پر شپږ ویشتمه نېټه بېرته پېښور ته راستون شـو. د وفا جریدې د خپلو لوستونکو د خبرتیا لپاره له پروفیسور امین سره مرکه کړې ده، چې مرکه یې په دې ګڼه کې خپره شوې ده.

د مرکې په پیل کې مو له پروفیســـور امین څخه د دغه کنفرانس د جوړېدو، اهدافو، بحثونو او په کنفرانس کې د دوی د برخه اخیســـتلو په باب پوښـــتنه وکړه، دوی په دې برخه کې وویل:

په کنفرانس کې د لاتیني امریکا، افریقا، منځني ختیځ، شـرقي اروپا، د پخواني شـــوروي اتحاد او نورو مختلفو هېوادونو ۱۷۵ هیئتونو ګډون کړی و. زه یوازینی افغان وم چې د ښځینې نړیوال سازمان د غړي په حیث کنفرانس ته بلل شوی وم. کنفرانس د تبت د روحاني مشر (دلای لاما) په وینا پرانیستل شو.

په دې کنفرانس کې د بشـر د حقونو او په وروسته پاتې هېوادونو کې د خلکو په خوښـه د ټاکل شـوي حکومت او دیموکراسـۍ په باب خبرې کېدې او ټولو ویناکوونکو په دې ټینګار کاوه چې په دغو هېوادونو کې ډموکراسي، د خلکو په خوښـه ټاکل شـوی حکومت او بشـر د حقونو واقعیتونه د خلکو د عنعناتو، کلتور او اجتماعي شـرایطو سـره سـم څنګه عملي کېدلای شي. د کنفرانس په پروګرام کې د افغانستان لپاره وخت نه و ورکړل شوی. ما د کنفرانس له مشر څخه هیله وکړه، چې ماته دې د افغانستان د کشالې په برخه کې د خبرو لپاره وخت راکړي، د کنفرانس مشـــر زما د غوښـــتنې په برخه کې د ګډونکوونکو څخه پوښـــتنه وکړه، ګډونکوونکو په یو اواز وویل، چې افغانســتان له کورنیو جګړو ســره مخامخ دی، پروفیســور امین ته دې وخت ورکړل شــي... ما په ډېر لنډیز د افغانســـتان د روانو کړکېچونو او تراژیدیکو حالتو په باب خبرې وکړې. ما په دې رڼا واچوله چې د افغانستان خلک څنګه له یوې دیکتاتورۍ څخه ووتل او څنګه د بلې دیکتاتورۍ د لاندې راغلل. په دې خبرو کې ما د کنفرانس ګډونکوونکو ته د افغانســتان د روانو بدبختیو ذکر وکړ، چې افغانان له یوې سختې جګړې څخه راووتل، دمه یې لا نه وه کړې، چې د قدرت لپاره پـه بلـه جګړه واوښـــتـل. د دغو ټولو بـدبختیو اصـــلي عوامـل خـارجي ایډیالوژیکانې، په خارج کې جوړ شــوي ګوندونه، د ګوندونو جوړښـــت، خارجي مداخلې او د خارجیانو له خوا د دغو تنظیمونو پواسطه په افغانستان کې د خارجیانو په ګټه د ســیاســي انحصـــار ټینګول دي. افغاني ټولنه یوه مسلمانه مساوات طلبه او اعتدال خوښوونکې ټولنه ده او افغانان د اجتماعي جوړ او اجتمـاعي روحیـاتو لـه مخې د تحمیـل، دیکتـاتوري او د پردیو لـه ګوډاګیانو څخه کرکه کوي. افغانان له ګاونډیو هېوادونو ســـره په ورورولۍ ژوندکول غواړي، خو نوکرۍ ته تیار نه دي. په خپله خوښـــه ټاکل شـــوی

حکومت، چې د افغانانو اوګاوندیو هېوادونو ګټې په نظر کې ولري، منلو ته تیار دي، لاکن په هېڅ قیمت د پردیو له خوا تحمیل شوي لاسپوڅي حکومت منلو ته تیار نه دي. افغانستان د جرګو او مرکوکور دی، مرکې او شوراګانې د دغه ولس تاریخي عنعنه ده. تر څو چې افغانان د خپلې ملي عنعنې سره سم په خپله خوښه حکومت ونه ټاکي، خپل سرنوشت په خپل لاس کې ونه نیسي، تر هغې په افغانستان کې هېڅ سوله منځته نه راځي او په نتیجه کې به په افغانستان کې د دیکتاتورۍ په وجه وینې تویېږي، د مرګ ژوبلې بازار به ګرم وي، لوټ به روان وي، ښځې به بې عفته کېږي، کورونه به ورانېږي، خلک به د خپلو کورونو څخه شړل کېږي او هېڅوک به د سر امن نه وي. ما له دغه نړیوال کنفرانس څخه غوښتنه وکړه، چې له افغانانو سره د دیکتاتورۍ پرضد، د خارجیانو د مداخلې پر ضد په افغانستان کې د افغانانو د عنعنې سره سم د دوی منتخب حکومت او د بشر د حقوقو د تامین په لاره کې همکاري وکړي. کنفرانس ته د امریکې د باندنیو چارو د وزیر او د امریکې د جمهور رییس ښاغلي بل کلنټن له خوا مېلمستیاوې ورکړل شوې، ښاغلي بل کلنټن د جایزو د وېشلو په مراسمو کې وویل: ((موږ په دیموکراسۍ، ازادو انتخاباتو، په انساني کرامت، د بشر په حقوقو او په نړۍ کې په سوله او د یو بل په چارو کې د نه مداخلې پر اصولو عقیده لرو. د امریکې متحده ایالات د نړۍ د ژاندارم او پولیس رول لوبولو ته چمتو نه دی، اما زما اداره د هغو افرادو او ګروپونو تر شاه ولاړه ده، څوک چې د دیموکراسۍ، انساني کرامت، ازادو انتخاباتو او د بشر د حقونو لپاره مبارزه کوي، موږ د هر ډول دیکتاتورۍ او تبعیض مخالف یو.))

موږ له پروفیسور امین څخه وپوښتل، چې له کنفرانس وروسته دوی په امریکا کې له کومو امریکایي مقاماتو او موسسو سره ولیدل. په دې برخه کې یې

**وویل: د اپریل له پنځه ویشتم څخه تر دېرشم پورې د یادې شوې موسسې مېلمه وم او د مې له اول څخه د مې تر لسم پورې د یونایټډ سټیټس انفارمېشن اجنسي مېلمه وم. د دغې ایجنۍ د پروګرام له مخې ما د امریکا د خارجه چارو د وزارت له موظفو اشخاصو، د نیوجرسي سناتور (بل بریډلي)، د سنا د باندنیو چارو د روابطو د کمېټې د مامور او د ملګرو ملتونو د لوی سکرتر له مشاور سره ملاقاتونه وکړل. د دې برسېره د مختلفو موسسو د مشرانو او یو شمېر افغانانو سره مې هم لیدنې کتنې شوې دي. دغو ټولو خلکو د افغانستان د کشالې د سوله ییز حل سره ډېره دلچسپي درلوده. سره له دې چې د افغانستان کشاله د اهمیت په لحاظ په اوله دویمه او درېیمه کټګورۍ کې نه راځي، خو دوی د افغانستان د ستراتیژیک موقعیت پر لحاظ د افغانستان کشاله شاته نه ده غورځولې او د هېواد دننه او چاپېره سیاسي انکشافاتو پوره څارنه کوي. د دوی په نظر که په افغانستان کې افراطي ایډیالوژي په پښو ودرېږي، طبیعي ده چې د دغې ایډیالوژۍ په سر کې ولاړ افراد یا ګوندونه، مخالف افراد یا ګوند په وچ زور له منځه وړي، دیکتاتوري منځته راوړي، د دیکتاتورۍ څخه تروریزم منځته راځي، د هېواد په وګړو په وچ زور خپله ایډیالوژي تحمیلوي، نورو هېوادونو ته خپله ایډیالوژي صادروي، چې نتیجه یې د مرګ ژوبلې او د ثبات له نشتوالي سیوا بل هېڅ شی لاسته نه راځي. دوی د تاجکستان روانه کشاله د ایډیالوژۍ د صادرېدو نتیجه ګڼله. د دوی په نظر افغانستان د مخدره موادو د تولید او قاچاق د مرکز بڼه غوره کوي. د اخبارونو او د خلکو له خبرو څخه داسې څرګندېدله چې د ملل متحد د احصایې له مخې افغانستان په برما پسې په دویمه درجه د مخدره موادو د تولید او قاچاق مرکز ګرځېدلی دی.**

د څوارلس کلن جهاد په نتیجه کې کې د افغانستان یو شمېر قوماندانان پرېمانه وســـله، مجاهدین او د جنګ تجربه لري او په خپلو ســـیموکې د مرکزي حکومت د نشـــتوالي له امله خپلواک ژوندکوي. دوی تر اوســـه د مخدره موادو د خرڅلاو له لارې پرېمانه پیســـې ګټي، د بل کاروبار ســـره عادت نه لري، اما دګاونډیو هېوادونو بین المللي قاچاقبران زیار باسي چې د افغانستان له قوماندانانو ســـره ارتباط پیاکړي او دوی د مخدره موادو د لارې د پرېمانه پیسو دګټلو سره عادت کړي. که په بې مرکزه افغانستان کې دغه پروسه وده کوي، نو په دې صـــورت کې بیا یو قدرت هم دا توان نه لري، چې خپلواکه او د مخدره موادو له لارې ګټندویه قوماندانان د راتلونکي مرکزي حکومت اطاعت ته مجبور کړلای شـــي، چې په نتیجه کې به افغانســـتان د یوې ناوړې ملوک الطوایفي مرکز وګرځي.

د اســـلام اباد د تړون دکامیابېدو او یا نه کامیابېدو په برخه کې ډېر ســـوالونه کېدل مـا د دوی پـه ځواب کې وویـل: پـه تېرو څوارلس کلونو کې افغانان د مختلفه اتحادونو، موقتي حکومتونو او حتی د پېښـــور د تړون شـــاهدان دي. خو تر اوســـه پر اتحاد، موقتي حکومت، د پېښـــور تړون او د اهل حل و عقد شـــورا نه دي کامیاب شـــوي. د اســـلام اباد تړون هم په کاغذ لیکل شـــوی دی، خو عملي کېدل یې ډېر ګران کار دی. ســـره له دې چې د دې تړون لپاره رقیب حکومتونه اسلام اباد کې راټول شول، د پاکستان صدراعظم، د سعودي عربستان د استخباراتو مشر، د ایران د خارجه چارو د وزارت مرستیال او یو شـــمېر نورو خلکو د افغاني ډلو ترمنځ د ســـولې لپاره کار وکړ، خو بیا هم دغه هلې ځلې کامیابه نه شـــوې. دناکامۍ اســـاســـي عوامل یې دا دي چې دغه ټول تنظیمونه د افغانســـتان د باندې په خارجي هېوادونو کې جوړ شـــوي دي، د خارجیانو له خوا مشـــران ټاکل شـــوي دي، خارجیانو ورته پرېمانه وســـلې او

پیسې ورکړي دي، خارجیانو وربانديې سرمایه ګذاري کړې ده او د پټو تعهداتو له مخې د افغانانو پرځای د خارجیانو پلانونه عملي کوي. بله خبره دا ده چې په اسلام اباد کې راټول شوي منځګړي حکومتونه هم د افغانستان د قضیې طرف دي او هم خپل ترمنځ رقیبان دي. دغه هېوادونه په بټه او ښکاره د خپلو مشخصو تنظیمونو ملاتړ کوي، هر یو د مشخص تنظیم لپاره امتیاز غواړي او هر یو په دې هڅه کې دي چې په افغانستان کې خپل نفوذ او د خپلو مشخصو تنظیمونو د لارې په کومه طریقه انحصار منځته راوړي. په دې ترون کې د افغانستان خلک بېخي له نظره غورځول شوي دي. تر څو چې د ملل متحد لوی سکرتر د افغانستان د سولې پلان بیا پیل نه کړي، تر هغې د افغانستان د کشالې حل پیداکول مشکل کار دی.

ځینو دا نظر ښکاره کاوه چې د ملل متحد پلان د ناکامۍ سره مخامخ شوی دی، که بیا پیل شي څه نتیجه به ور نه کړي؟

زما ځواب دا و چې ملل متحده یوازینۍ بېطرفه موسسه ده او د نورو هېوادونو غوندې افغانستان هم د دې موسسې غړی دی. د افغانستان کشاله له بېطرفه منځګړیتوب پرته د داسې هېوادونو له خوا چې د افغانستان په قضیه کې طرف دي، خپلې ګټې په نظر کې لري او مشخصو تنظیمونو لپاره امتیاز غواړي، نه شي حل کېدلای. څه وخت چې ملل متحد د افغانستان د سولې لپاره پلان وړاندې کړ، د افغانانو لوی اکثریت د دغه پلان ملاتړ وکړ او یوازې یو څو وسله والو ډلو یې مخالفت ته ملا وتړله. د دغه مخالفت او په نتیجه کې د پلان پر ضد د کودتا عوامل په ډاګه ښکاره دي.

۱ – هغو هېوادونو چې په ځینو مشخصو تنظیمونو سرمایه ګذاري کړې ده، ډار درلودکه چېرې د ملل متحد پلان عملي شي شاید چې د دغه پلان د

عملي کېدو په نتيجه کې د دغو هېوادونو د لاسوهنې، نفوذ او د مشخصو تنظيمونو په واسطه په افغانستان کې د هغوی د سياسي انحصار مخنيوی وشي. سره له دې چې دغو هېوادونو په ښکاره له پلان سره د ((هو)) سر خوځاوه اما په زړه کې ورسره مخالف وو.

۲- وسله وال مخالفين پوهېدل چې د افغانستان لوی اکثريت د مرګ ژوبلې څخه پوزې ته راغلی دی. کېدای شي چې د افغانستان خلک د ملل متحد د پلان د کاميابېدو په نتيجه ک؟ې دغه ګوندونه مسترد کړي او يو نوی ليډرشپ منځته راوړي. که څوک واقعاً په دې باور ولري چې د افغانستان د خلکو اکثريت د هغه سره دی، نو هغه د ملل متحد يا د بل ارګان له خوا د سولې د پلان څخه نه ډارېږي، هغه په دې پوهېږي چې خلک هغه ته رايې ورکوي او هغه د خلکو د ملاتړ څخه برخورداره دی، په خوله خو هره يو دعوه کوي چې د افغانستان د خلکو لوی اکثريت د هغه سره دی اما په زړه کې پوهېږي که چېرې خبره د عمل ميدان ته راشي، نو هغه حتماً د خلکو له خوا مستردېږي. يوازې دغه ډار د ملل متحد د پلان په لارکې لوی خنډ دی.

۳- د ډاکتر نجيب اللهد استعفی او د ملګرو ملتونو د پلان د عملي کېدو د نيتې ترمنځ سياسي خلا منځته راغله. له دې خلا څخه شورای نظار، مليشا او د پرچميانو ائتلاف ګټه واخيسته. دوی فکر کاوه څوک چې کابل ونيسي هغه په ټول افغانستان کې حکمت هم کولای شي.

د دې ائتلاف بل هدف دا و چې دوی کولای شي چې په افغانستان د دوی په اصطلاح د پښتنو زعامت ته خاتمه ورکړي. واقعيتونو ورته وښودله چې کابل نيول اسان کار دی، اما ساتل يې مشکل کار دی او د پښتنو پر ضد د ائتلاف عملي کېدل بېخي ګران کار دی.

٤ – ځینو هېوادونو غوښتل ډاکتر نجیب الله د سقوط په نتیجه کې د کابل د ائتلاف په واسطه په افغانستان کې د نیم بند سیاسي قدرت د انتقال لپاره لاره هواره کړي. دوی فکرکاوه چې مخالفې ډلې حتماً خپل ترمنځ په جګړو اخته کېږي، مرګ ژوبله زیاتېږي، انارشي به دومره زیاته شي چې د افغانستان خلک به د دغو ډلو مخالفت ته راپورته شي او د جهاد او مجاهد نوم به دومره بدنام شي چې خلک به په زړو کفن کشانو شکر وباسي، د افغانستان د سیاسي سیستم څخه به یو داسې ماډل منځته راشي چې په راتلونکي کې به د دغه سیستم ماډل منلو ته د افغانستان خلک، د ګاونډیو هېوادونو ولسونه او د اسلامي نړۍ هېوادونه په هېڅ قیمت تیار نه وي. په افغانستان کې ددغه هېوادونو نه پیسې لګېږي، نه یې تبعه مري، بلکې افغانان ورته په خپله داسې سیاسي ماډل جوړوي چې هغوی په ډېر لګښت او مستقیمه مداخله نه شو جوړولای.

د ډاکتر نجیب الله تر سقوط وروسته ډېر سیاسي بدلونونه منځته راغلي دي، خلکو فکرکاوه چې نجیب الله د افغانستان د تراژیدۍ اساسي عامل دی، که نجیب الله ولاړ شي او په کابل کې د مجاهدینو حکومت منځته راشي شاید چې په هېواد کې سوله رامنځته شي. نجیب الله ولاړ، د مجاهدینو حکومت جوړ شو، افغانانو په خپلو سترګو ولیدل چې د سولې پر ځای په زرګونو بېګناه خلک ووژل شول، د کابل ښکلی ښار او د خوا او شا کلي د بمونو خوراک شول، ښځې بې عفته شوې، حکومتي، خصوصي او شخصي مکلیتونه لوټ شول او په زرګونو خلک د کابل د ښار نه وتښتېدل.

محترم مجددي صاحب او محترم رباني صاحب د یو بل پسې راغلل لاکن په عمل کې څرګنده شوه چې دغه تنظیمونه یوازې دجنګ لپاره جوړ شوي دي او د هر تنظیم مشر او نامتو غړي یوازې د خپلو ځانونو او تنظیمونو په برخه

کې فکر کوي او نورو ته د مخالف یا دښـــمن په نظر ګوري. مشـــخصـــه ایډیالوژیکانې، ګوندي جوړښـــت او اقتصـــادي، ســـیاســـي، ژبني او نور ډېر فکتورونه دي چې دوی د یو متحده هېواد او د افغانانو په ګډو ګټو فکر کولو ته نه پرېږدي. د اهل حل و عقد شـورا یې ښـه مثال دی. دغه شـورا د افغانانو د عنعنې ســره ســم لویې جرګې، پر ضــدرامنځته شــوه اما په عمل کې ولیدل شول چې دغې شورا ته یوازې هغه خلک راوبلل شول چا چې د یو مشخص تنظیم مشر د جمهور رییس په حیث ټاکل غوښتل. هغه څوک چې د شورا په صفت نه مرېدل هغوی هم د دغې شورا مخالفت د ټوپونو په ډزو اعلان کړ.

د هرې ټولنې ســیاســي ســیســتم یا حکومت په مشــروعیت ولاړ وي او د مشــروعیت اســاســي نسـبت د ټولنې د خلکو په ازاده رایې ولاړ وي. هغه حکومت چې په خلکو باندې د ټانکونو، توپونو، الوتکو، راکټونو، ټوپکو او برچو په زور تحمیلیږي، دغه ډول حکومت مشروعیت نه لري او افغانان هم د زور حکومت منلو ته تیار نه دي. د افغانســتان د ازادۍ لپاره د افغانســتان ټولو قومونو ګډه قرباني ورکړې ده او اوس یو قوم بل قوم ته دا نه شي ویلای چې ما قرباني ورکړې ده او تا نه ده ورکړې. د څوارلس کلونو د ملي تراژیدۍ په نتیجه کې اوس د افغانســتان ټول قومونه خپل قوماندانان، دیني علما، قومي مشـــران او تعلیمیافته اشـــخاص لري او د تېر یو کال او یوې میاشـــتې ترخو تجربو ثابته کړه چې په افغانستان د سولې د راوستلو لپاره د ملګرو ملتونو د لوی سرمنشي غړ د سولې د هڅو لپاره له بل هر وخت نه زیات ضرور دی.

ملګري ملتونه یوه بیطرفه موســسه ده او د دغې موســسې د لوی ســرمنشي دفتر د بل هر چا څخه زیات د افغانســـتان د کشـــالې په هکله اوږده او پخه ترجبه لري. اوس هغه وخت رارســـېدلی دی چې د ملګرو ملتونو د لوی سرمنشي نماینده  یا نماینده ګان د افغانستان په قضیه کې دخیلو حکومتونو،

د تنظیمونو مشـــرانو، د مختلفه قومونو د قوماندانانو، دیني علماوو، قومي مشرانو او تعلیمیافته اشخاصو سره له سره رابطه ټینګه کړي او د افغانستان د مختلفه قشرونو څخه نماینده لویه جرګه یا شورا دایره کړي چې د افغانستان خلک د خارجي مداخلو پرته په ازاد ډول په خپله خوښـــه د خپل هېواد د سیاسي او اقتصادي سیستم، اساسي قانون او راتلونکي مشرتابه په باره کې فیصله وکړي او دغې ملي تراژیدۍ ته خاتمه ورکړي.

موږ له استاد امین څخه وپوښتل چې تاسو په امریکا کې له مېشتو افغانانو سره هم ولیدل که نه؟ دوی په دې اړه وویل:

ما دوه ځله په واشـــنګټن کې او همدا شـــان د کالیفورنیا ایالت په کانکورد او لاس انجلس کې د افغانانو په غونډو کې خبرې وکړې. د افغانانو لپاره په واشنګټن او کالیفورنیا کې ټلوېزیونونو او د ازاد افغانستان راډیو راسره مرکې هم وکړې.

د افغانانو اکثریت د افغانســـتان د کشـــالې له ورځنیو حالاتو څخه ځانونه خبروي او د افغانســتان د رواني تراژیدۍ په وجه ډېر خفه ښـکارېدل. له بده مرغه یو شمېر افغانان د پښتو او فارسي د رقابت په مرض اخته شوي دي او دغه مرض دومره شدت پیداکړی دی چې حتی ځینې پښتانه د دري ژبو سره او ځینې دري ژبي له پښتنو سره خبرې نه کوي. ما په دغه غونډو او مرکو کې هغوی ته په زغرده وویل چې په افغانستان کې افغانانو ته اساسي پرابلم دا دی چې خپل هېواد څنګه د مرګ ژوبلې او تباهۍ څخه وژغوري؟ هغوی ته د پښتو او فارسي مساله دومره مهمه نه ده، لکه څنګه چې یو شمېر افغانانو په امریکا کې راټینګه کړې ده. هلته د آش نه کاســـه ډېره توده وه، ما ورته وویل افغانستان د داخلي قومي روابطو او د خواوشا او حوزې د شرایطو په لحاظ

نه جزیه کېدونکی هېواد دی. په افغانستان کې ټول قومونه ګډ پراته دي او دوی د پېړیو پېړیو راهیسې ګډ ژوند کوي. په افغانستان کې داسې سیمه نه شته چې هلته دې یوازې یو قوم مېشت وي. فرضاً که افغانستان تجزیه کېږي، نو ددې تجزیې عملیه به یوازې د افغانستان پورې محدوده نه وي، دغه عملیه حتماً په پاکستان، ایران، د مرکزي اسیا په جمهوریتونو، ترکیه، هند او د اسیا په ډېرو هېوادونو تاثیر کوي چې په اوسنیو شرایطو کې د تجزیې د دې لویې عملیې او د تجزیې څخه د راپیداکېدونکو شخړو جګړو او قومونو د یوځای څخه بل ځای ته د لېږدولو او ورسره د سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او نظامي پرابلمونو د مخنیوي لپاره کوم ماستر پلان نه شته، که مونږ یې غواړو او که نه او که زمونږ خوښه وي او که نه، مونږ افغانان مجبور یو چې په افغانستان کې ژوند وکړو. څوک چې په یو کور کې ژوند کوي، نو په ځای د دې چې په خوشالۍ او ورورلۍ ژوند وکړي، تریخ ژوند د افغانستان یو قوم ته هم هیڅ ګټه نه رسوي. که څوک ټوله شپه او ورځ خپل وخت په دې تېر کړي چې پښتانه بې کلتوره دي، تاجک بې غیرته دي، ازبک کله خام دي او داسې نور نو ګټه به یې څه وي؟ له دغو خبرو څخه یوازې د افغانستان دښمنانو ته ګټه رسېږي؛ دغه خلک یوازې د افغانستان د دښمنانو لپاره خدمت کوي او مونږ په واقعیت کې په شعوري یا غیر شعوري توګه د افغانستان لپاره د (کی. جي. بي) د دې پلان چې ((جلا یې کړه او حکومت وربانديې وکړه)) ښکار شوي یو. (کی . جي. بي) د قومونو، قبایلو او ملیتونو د وزارتونو له لارې همدغه پلان په افغانستان کې عملي کول غوښتل، چې افغانان د قوم او ژبو په شخړو کې راښکېل کړي او دوی وربانديې حکومت وکړي. سره له دې چې خلقیانو او پرچمیانو د بین المللي ایډیالوژۍ پلوي

کاوه اما د دغه پلان له مخې دوی د پښتنو او غیر پښتنو په نومونو د یو بل پر ضد مبارزه هم کوله.

د ډاکتر نجیب الله تر ســـقوط وروســـته د کابل ائتلاف هم دا فکر کاوه، چې دوی د کابل د نیولو ســـره جوخت به د پښـــتنو تاریخي زعامت ته خاتمه ورکړي. د ائیتلاف غړو ځانونه د خپلو قومونو نماینده ګان معرفي کول او د دوی پر ضـد مخالفینو هم کوښښ کاوه چې پښتنو ته د خطر په نوم پښتانه په ځان راټول کړي. دواړو ډلو د قومونو او ژبو په نومونو پوره هلې ځلې وکړې، لاکن د مختلفه قومونو قوماندانانو، دیني علماوو، قومي مشـرانو او تعلیمیافته وو د دوی هلې ځلې شـنډې کړې. د دوی له خوا دا غږ راپورته شـو، چې په افغانســـتان کې جګړې د قومونو ترمنځ جګړې نه دي، بلکې دغه جګړې محض د سـیاسـي قدرت ته د رسـېدو په نیت رواني دي. له بلې خواد له کونړ نیولې تر هرات پورې د هندوکش جنوب ته د پښـتنو قومونه مېشـت دي او د کابل چاپېر پښـــتانه قوماندانان پراته دي. دغو قوماندانانو لیدل چې د کابل ائیتلاف د پښـتنو پر ضـد فعالیت کوي، لاکن د دغو قوماندانانو د حوصـلې او د تدبر څخه کار واخیسـت او هغوی نه غوښـتل چې د قدرت جنګ په قومي جنګونو بدل کړي. د مرکو په دوران کې ځینو قوماندانانو دې ته اشـاره کوله، که چېرې په افغانسـتان کې قومي نښـتې پیل شـي، نو دغه نښـتې د افغانسـتان ټولو سـیمو، ښـارونو، کلیو او حتی کورونو ته ورننوځي. هېڅوک د کامابېدو چانس نه لري او په افغانســـتان کې د مرګ ژوبلې او تباهۍ پرته هېڅ شـــی نه ترلاسه کېږي.

ما ورته وویل د افغانســـتان په جهاد کې ټولو قومونو قرباني ورکړې ده. اوس ټول قومونه حق لري، چې په راتلونکي افغانسـتان کې د ورورلۍ د اصـولو پر اسـاس هر قوم د خپل شـمېر سـره سـم خپل سـیاسـي، اقتصـادي، اجتماعي،

کلتوري او نور حقونو ترلاسه کړي. له بده مرغه د افغانستان د ځینو قومونو څوکسان چې ځانونه د ځینو قومونو نماینده ګان معرفي کوي، وایي چې د دوی د قوم حق بل قوم خوړلی دی، په واقعیت کې دغه ډول اشخاص له قومي تعصب او له قومي شخړو څخه شخصي بهره برداري کوي. په سیاسي لحاظ حقوق قانوني مساله ده او قانون د خلکو د نماینده ارګان له خوا جوړیږي. تر څو چې په افغانستان کې د ټولو قومونو له خوا نماینده شورا منځته را نه شي او دغه نماینده شورا په اکثریت حکومت انتخاب نه کړي، تر هغې شورا او حکومت دواړه مشروعیت نه پیداکوي. په دې شرایطو کې د ټولو افغانانو اسلامي او ملي وظیفه دا ده چې په افغانستان کې د مشروع شورا او حکومت د جوړېدو لپاره کار وکړي او څه وخت چې دغه شورا منځته راغله، نو بیا شورا حق لري چې د افغانستان په راتلونکي اساسي قانون کې د ټولو قمونو هر ډول حقوقو ته قانوني بڼه ورکړي او مشروع حکومت ورته عملي جامه ور واغوندي. د مثال په ډول که د یو قوم په نوم یو څو کسان دا دعوه راپورته کړي چې په تېرو وختونو کې زموږ د قوم سیاسي، اقتصادي، اجتماعي، تعلیمي، کلتوري یا مذهبي حقوق غصب شوي وو او موږ خپل حقوق غواړو. که فرضاً د بل قوم یو څوکسان ورته دا ووایي چې موږ یې نه درکوو، یا ادعا مو سمه نه ده یا مو ټول حقوق درکړل، نو اياد مدعي یا مدعي علیه خبرې یا فیصلې څه قانوني بڼه لري؟ ایا د ټوپک په زور حق اخیستل قانوني ګڼل کېږي؟ یو ځواب دی، نه. بیا هم موږ افغانان مجبور یو چې د یو مشروع ارګان په لټه کې شو او دغه ارګان د افغانانو د ټولو قومونو نماینده شورا ده او بس.

په پای کې مو له پروفیسور امین څخه پوښتنه وکړه چې تاسو له افغانانو سره د تفاهم او ملي وحدت د شــورا په باب هم خبرې وکړې او که نه؟ ده په دې اړه وویل:

اکثره افغانان له شورا څخه خبر وو او د افغانانو په غونډو او مرکو کې د شورا په هکله ډېرې پوښتنې هم وشوې.

زما د خبرو خلاصه دا وه:

دا شورا د افغانستان د مختلفو قومونو له قوماندانانو، قومي مشرانو، علماوو او تعلیمیافته وو څخه جوړه شوې ده. د شورا مرامنامه مې ورکړه، ما ورته د شورا په ترکیب، د شورا په فعالیت او شورا د راتلونکي پروګرام په برخه کې په تفصیل معلومات ورکړل چې د دغه شــورا اســاســي ټکي مې ورته داســې خلاصه کړل:

۱ – دغه شــــورا د افغانســـتان د روانې تراژیدۍ د ترخې تجربې په نتیجه کې منځته راغلې ده، د مختلفو قومونو قوماندانان، قومي مشـــران، دیني علما او تعلیمیافته په پېښور کې سره راټول شول، د افغانستان په روانې ملي تراژیدۍ وګړېدل او پرېکړه یې وکړه چې د افغانسـتان د مختلفو قومونو د قوماندانانو، قومي مشرانو، دیني علماوو او تعلیمیافته وو سره دې رابطه ټینګه کړل شي، دوی دې د افغانسـتان دننه په یو ولایت کې سره د جرګې په توګه راټول شـي او د افغانستان د ملي تراژیدۍ د خاتمې په برخه کې دې تصمیم ونیسي.

۲– د روان کال د مارچ په ٦مه نېټه یې د پاکستان صـدراعظم، په اسـلام اباد کې د ایران او سعودي عربستان سفیرانو ته لیکونه ولېږل. په دې لیکونو کې د دغه هېوادونو د حکومتونو او خلکو څخه د افغانانو د جهاد په دوران کې

د مرستې له امله مننه شوې ده، اما دوی ته دا هم ليکل شوي دي، چې د دغه هېوادونو حکومتونه د افغانســتان په داخلي چارو کې مداخله‌کوي، د افغانانو ترمنځ تبعيض کوي او د دغـه هېوادونو حکومتونـه غواړي، چې د هغو تنظيمونو په واسطه چې د دوی له خوا جوړ شوي دي، په افغانستان‌کې خپلو مســتقيمو او غير مســتقيمو مداخلو ته دوام ورکړي او د افغانســتان د خلکو خپلواکي د خپل انحصار لاندې راولي.

۳– د شورا ټوله مرامنامه مې ورته په څلورو ټکو کې خلاصه کړه.

الف– افغانان ورورولي کوي، خو نوکری ته نه دي تيار، خارجي مداخله نه مني.

ب– افغانان په خارج کې يا د خارجيانو له خوا د جوړو شــويو تنظيمونو په واسطه په افغانستان‌کې د دوی سياسي، اقتصادي او کلتوري انحصار نه مني او نه يې منلو ته تيار دي.

ج– په زور کلي نه‌کېږي. افغانان ديکتاتوري او د خارجيانو له خوا د تحميل شـــوي حکومت څخه تر پوزې راغلي دي. د منځګړيتوب حق هغه څوک لري چې هغوی واقعاً بې طرفه وي. د افغانســـتان په‌کشـــالې کې دخيل حکومتونه بې طرفه نه دي، دوی د قضـــيې طرف دي، خپل ترمنځ رقابتونه لري، د خپلو تنظيمونو لپـاره امتيـازات غواړي او د دغو رقـابتونو لـه املـه افغانستان د دوی د بزکشۍ ميدان ګرځېدلی دی.

د ملګرو ملتونو موسسه يوازينۍ بې طرفه موسسه ده، له ډېرو کلونو راهېسې دغه موســسـه د افغانسـتان له‌کشـالې سـره نږدې اړيکي لري، د افغانســتان د

**مسلې منځګړيتوب يې کړی دی او په دې پوهېږي چې د افغانستان کشاله څنګه او له کومې لارې سياسي حل مومي.**

**د– د افغانستان په جهاد او ازادۍ کې ټولو قومونو ګډه قرباني ورکړې ده. اوس ټول قومونه خپل قوماندانان، ديني علما، قومي مشران او تعليميافته اشخاص لري، د ملګرو ملتونو لوی سکرتر دې د افغانستان د دغو څلورو قشرونو څخه لويه جرګه يا داسې بل ميکانيزم چې د افغانانو لوی اکثريت ته د منلو وړ وي، داير کړي او دغه نماينده لويه جرګه کې د خارجيانو د مداخلې نه غير د افغانستان د سياسي سيستم، حکومت، اساسي قانون او راتلونکي مشرتابه په اړه دې تصميم ونيسي او د افغانستان روانې ملي تراژيدۍ ته دې خاتمه ورکړي.**

# مصاحبه پروفیسور عبدالرسول امین با هفته نامه کابل

| |
|---|
| دا مرکه د (وفا) جریدې په (٦٥)مه ګڼه کې د (١٣٧٢ل)کال د وږي میاشتې پر (٢٧)مه نېټه خپره شوې ده. |

**سوال: اتحادیه نویسنده ګان افغانستان ازاد چه وقت تاسیس ګردید؟**

**جواب: اتحادیه نویسنده ګان افغانستان ازاد در حمل سال ١٣٦٤ هـــ. ش مطابق به سال ١٩٨٥م در اثر مساعی، تنی چند از تعلیمیافته ګان، منورین و نویسنده ګان کشور در شهر پشاور تهداب ګذاری شد. اعضای موسس آن ده نفر بودند. ما در دیار غربت باوجود دشواریهای مالی و سیاسی شروع به کار سازنده فرهنګی و سیاسی نمودیم و خواستیم تا واقعیتهای جامعه ما را طوری که است به ګونه حقیقی و ریالستیک آن بازتاب دهیم.**

**ما در عملی نمودن اهداف اتحادیه باقبولی هر نوع خطر راه برګزیده خود را دنبال نمودیم، در آن ثابت قدم ماندیم و تا هنوز هم به کار خود به همان شیوه واقعیتی و واقعیت ګرایی ادامه میدهم.**

**سوال: باکدام مراجع و سازمانهای ملی و جهانی ارتباط دارید؟**

**جواب: بر اساس اهداف اتحادیه ما با بعضی از موسسات مدافع حقوق بشر و دموکراسی و ازادی به سویه جهانی ارتباطهای داریم و از موسسات غیر**

دولتی کمکهای بلا قید و شرط را پذیرفته ایم. من خود عضو سازمان جهانی حقوق بشر استم، و در داخل کشور اتریاط ما با جمعیت رستگاری ملی، شورای تفاهم و وحدت ملی قایم بوده، و با انجمن فرهنگی خوشحال نیز در استانه تاسیس روابط متقابل فرهنگی استیم و هر موسسه فرهنگی دیگر کشور که با اهداف ما یعنی کوشش برای حقوق بشر و حکومت انتخابی توافق داشته باشد و ما نیز اهداف انها را بپذیریم خواهان برقراری روابط و همکاری متقابل استیم.

سوال: چند عضو دارید؟

جواب: اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد در سالهای اخیر ۲۸ عضو رسمی داشت، که اکثر شان در اتحادیه مصروف کارهای فرهنگی و علمی و ژورنالستیک بودند، اما بنا بر ضیقی منابع پولی و خشکیدن سرچشمه های کمکها فعلاً تداد محدودی از اعضای آن در اتحادیه مصروف کار اند، ولی تعداد اعضای دیگر ما که خارج از اتحادیه کار میکنند زیاد است.

سوال: برنامه اتحادیه را توضیح کنید؟

جواب: اتحکادیه نویسنده گان افغانستان ازاد در مسایل سیاسی افغانستان، معتقد به اشتراک تمام اقشار و اقوام و قبایل ساکن در کشور است. ما معتقد استیم که در جهاد چهارده ساله افغانستان همه افغانها مربوط به هر قوم و قبیله شرکت ورزیده و اکنون در تشکیل حکومت و حیات سیاسی، اجتماعی کشور نیز بایست همه یی افغانها بدون در نظرداشت مسایل، لسانی، منطقه یی، مذهبی و قومی حصه داشته باشند.

ما معتقد استیم که جامعه ما یک جامعه مسلمان، مساوات طلبب و بیگانه زدا است، انها سنتهای دیرینه خود را احترام میگذارند، بنا بر آن باید با درک ساختار اجتماعی و روان ملت خود طبق خواسته های انان عمل نماییم، هرگاه به نظریات و اعتقادات انها وقعی گذاشته نشود ما نخواهیم توانست در کشور خود به یک صلح سراسری و پایه دار نایل آیم.

اتحادیه ما بر اصل دموکراسی، ازدیهای فردی و اجتماعی و رعایت کامل حقوق بشر و حقوق مدنی اعتقاد کامل و راسخ دارد.

سوال: منابع تمویل کننده انجمن چگونه است؟

جواب: اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد بدو تاسیس تا امروز فعالیتهای خود بر اساس پروژه های گوناگون استوار و برقرار نموده بود، به گونه مثال پروژه مجله انگلیسی بنام (WUFA)، پروژه مجله خپلواکی به زبانهای دری و پشتو، پروژه چاپ کتب (به زبانهای پشتو، دری و انگلیسی)، پروژه اخبار وفا (به زبانهای پشتو و دری) و پروژه سیمینارها، هر یک از این پروژه ها را بعضی از موسسات فرهنگی و سیاسی، اجتماعی خارجی تمویل میکرد. ایشیا فوندیشن، USIS، کوترادادناور فوندیشن (المان) و یک موسسه دنمارکی در تمویل پروژه های ما با ما یاری رسانیده است. در اواخر سال گذشته عیسوی اکثریت پروژه معاونت سقوط کرد، فعلاً تنها پروژه اخبار ( از سوی دنمارکیها) تمویل میشود و پروژه چاپ کتب فعالیت دارد (تمویل این پروژه را یک موسسه مدافع دموکراسی امریکایی پذیرفتهو ولی تا حال کمکی از آن دریافت نه کرده ایم.)

سوال: در داخل کشور فعالیت دارید؟

**جواب: ما از اغاز تاسیس اتحادیه تا امروز به مرکز و اکثر ولایات کشور خود نشـرات اتحادیه را میفرسـتیم، و اتحادیه کوشـیده اسـت، در داخل کشـور با موسـفیدان و مشـران، علما، روحانیون و تعلیمیافته های کشـور روابطش را برقرار نگه دارد.**

**سوال: شرایط پذیرش اتحادیه چیست؟**

**جواب: در اتحادیه نویسـنده گان افغانسـتان ازاد بنا بر مواد اسـاسـنامه آن هر افغانی که مرتکب جرم و جنایت نشده باشد، بر ضد منافع ملی کشور و مردم آن واقع نکردیده باشد اساسنامه اتحادیه را بپذیرد و مطابق به مواد آن عمل نماید، به حیث عضو اتحادیه پذیرفته شده میتواند.**

**سوال: طرح شما در باب ایجاد حکومت ملی در کشور چیست؟**

**جواب: اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد، با در نظر داشت غیر وابسته گی آن با تنظیم ها و سـازمانهای داخلی و خارجی به مسـایل کشـور و پرابلمهای آن از دید ملی و وطنی مینگرد.**

**ما با درک عمیق از ساختار روانی، اجتماعی و سطح رشد اجتماعی و سیاسی در کشور به این انتیجه رسیده ایم که مسایل مربوط و جاری در کشور را جز احترام به مردم و معتقدات و سـنتهای آن هیچ چیز دیگر حل کرده نمیتواند. کشـور ما در طول تاریخ با حادترین پرابلمهای داخلی و خارجی روبرو شده، ولی مردم آن با توجه به سـنتهای پذیرفته شـده شـان که همگونی عام و تام با ارزشهای دین مبین اسلام دارد، همه پرابلمها و مشکلات پیشروی شانرا حل نموده اند. سنتهای دیرین مردم ما که در موسسه اجتماعی جرگه تبلور میباید، حیثیت حقوقی و قانونی داشته با فیصـله های آن افغانها تطابق روانی دارند و**

**آن را میپذیرند. اکنون نیز که کشـــور ما دچار پرابلمهای داخلی اســـت به عقیده، مان یگانه راهی که میتواند ملت را از این حالت خطرناک بی ثباتی و جنگ داخلی نجات دهد، همان لویه جرگه عنعنوی است.**

**لویه جرگه یی که امروز بایست دایر شـود، لویه جرگه واقعی، نماینده و ممثل اراده همه یی اقوام ساکن درکشور باشد و سرپرستی آن را ملل متحد بکند. در این جرگه باید قوماندانان، علمای دین، روحانیون، موسـفیدان و تعلیمیافته گان تمام اقوام و قبایل کشور شرکت داشته باشند.**

**لویه جرگه باید قبل از همه قیادت ملی را برای کشور تعیین بدارد، و حکومت عبوری را انتخاب نماید، قیادت و حکومتی که پس از گزینش و پذیرش لویه جرگه به وجود می آید مشـــروعیت قانونی خواهد داشـــت. حکومت باید اردوی ملی را تشکیل نموده، خلع سلاح عمومی را اغاز نماید وکار عودت مهاجرین و اســـکان دوباره انها را در راس کارهای خود قرار دهد، قانون اساسی جدید را رویدست گیرد و پس از تسوید و تصویب قانون اساسی، قوانین دیگر به شـــمول قوانین احزاب، ســـازمانهای اجتماعی و انتخابات را تســـوید و تصـــویب خواهد نمود و شـــرایط را برای انتخابات را تســـوید و تصویب خواهد نمود و شرایط را برای انتخابات سراسری، مستقیم و سری که همه مردم کشور در آن شرکت کنند، هموار خواهد ساخت.**

**سوال: ایا دست دراز و مداخله کشورهای خارجی را در قضایای افغانستان تایئد مینماید؟**

**جواب: اگر پرسش شما را کوتاه پاسخ بدهیم، باید بگویم که نی. ولی بایست تذکر دهم که از نظر من و اتحادیه ما مداخلات خارجی ملت ما را دچار مشکلات امروزی نموده است، تا زمانی که مداخلات خارجی قطع نشود، تا**

آن وقت کشـــور ما و مردم آن درگیر جنگ خواهد بود. اتحادیه ما از همه زیادتر بر ضد مداخلات بیگانه مبارزه کرده، میکند و خواهد کرد.

کشورهای مداخله گر باید از روحیه بیگانه زدایی مردم کشور ما اطلاع داشته باشـــند و باید بدانند که مردم ما نمایده گان خارجیها را نمیپذیرند، انها باید بگذارند که مردم را مطابق به میل شـــان قیادتی را برای شـــان تعیین بدارند، قیادتی که بر اساس نورمهای معموی همزیستی مسالمت امیز روابط دوستانه باکشورهای همجوار و سایر کشورهای منطقه و جهان استوار نماید.

سوال: در این روزها سرو صدای انتخابات است، شما چی شکل انتخابات را تایید مینمایید؟

جواب: باید گفته شـــود که من خود و اتحادیه ما همه به انتخابات عقیده داریم، ولی به نظر اتحادیه ما در شـــرایط فعلی بنا بر درک احوال و اوضـــاع اجتماعی و سیاسـی و جنگی در کشـور و ارایش قوتها انتخابات سـراسـری، سری و مستقیم به دلایل زیرین ناممکن به نظر میرسد:

۱- در شـــرایط فعلی بیش از پنج ملیون افغان در خارج از کشـــور در دیار هجرت به ســـر میبرند، ایا بدون شـــرکت پنج ملیون افغان میتوان انتخابات انجام شده را سراسری نامید؟

۲- همینگونه در حدود بیش از یک ملیون افغان در اثر جنگهای داخلی از جای شان بیجا شده اند و به ولایات و محلات مصوون کشور پناه برده اند، ایا میتوان بدون در نظرداشت حقوق انها انتخابات را انجام داد.

۳- تا جایی که دیده میشود تا حال در کشور حکومت باثبات و قوی مرکزی به وجود نیامده اسـت حکومتی که بتواند بر تمام ولایات، ولسـوالیها، علاقه

**داریها و محلات آن حاکمیت داشـــته باشـــد. حکومتی که بر تمام قلمرو مملکت حاکمیت نداشته باشد، چگونه میتواند در سراسرکشور انتخابات را برگذار نماید.**

**٤– در شرایط فعلی همه کشور مسلح است و تفنگ برکشور حاکم میراند، به نظر ما تا زمانی‌که درکشـور خلع سـلاح عمومی صـورت نگرفته باشـد، انتخابات عمومی و سراسری واقعی امکان پذیر نیست.**

**٥– مساله شمول اشتراک زنها نیز موضوع قابل بحث است، زیرا بعضیها به اشتراک زنان در انتخابات موافق**

**نیستند؟ ایا میتوان بافروگذاشتزیاده از نصف نفوس جامعه چنین انتخابات را انتخابات واقعی خواند؟**

**٦– احصـــائیه های واقعی درکشـــور موجود نبوده، این مســـاله نهایت بغرنج باعث درد سرهای فراوانی شده میتواند.**

**احصـائیه های اکثر حصـص جنوبی، غربی، شـرقی و شـمال شـرقی‌کشـور بر اساس بند و بستهای قومی و یاداشتن مردان جنگی ثبت شده است و اکنون نفوس این مناطق ده چند وحتی بیشتر از آن ازدیاد یافته است.**

**انتخابات پیشنهادی از سوی بعضیها شکل انحصاری دارد و شیوه برگذاری آن‌که حزب و یا تنظیم باید در حوزه هاکاندید شـــود نه شـــخص، نیز موارد عملی ندارد.**

**سوال: نظر شما درباره هفته نامه‌کابل چیست؟**

**جواب: اگر چه من جریده شما را ندیده ام، اما این‌که شما در شرایط نهایت دشوار به نشر چنین جریده در شهرکابل همت‌گماشته اید، کاری است در خور ستایش من این‌کار را می ستایم و شاد باشهای‌گرم و صمیمانه خود را تقدیم کارکنان این جریده مینمایم.**

# ازاد، مستقل او پر خپلو پښو ولاړ افغانستان به د ګاونډیو هېوادونو ترمنځ د پله حیثیت ولري

دا مرکه د (وفا) جریدې په (۷۰)یمه ګڼه کې د (۱۳۷۲ل)کال د لړم میاشتې پر (۱) نېټه خپره شوې ده.

د پاکستان د روانو نویو سیاسي تحولاتو او د افغانستان پر مساله باندې د دې تحولاتو د اغېزو په اړه د ازاد افغانستان د لیکوالو اتحادیې له مشر پروفیسور عبدالرسول امین سره یوه مرکه کړې ده، چې لاندې وړاندې کېږي:

پوښتنه: محترم استاد پروفیسور امین! لطفاً د پاکستان د نوي سیاسي صورتحال او پر افغانستان باندې د دې صورتحال د اغېزو په اړه د وفا لوستونکو ته څرګندونې وکړئ؟

ځواب: د پاکستان دغه تحولات د دوو مهمو مسالو سره ارتباط لري، یو دا چې په نړیواله کچه تغییرات روان دي، بل دا چې په پاکستان کې هم د دغو تغیراتو احساس لیدل کېږي. د پاکستان د اوسنیو انتخاباتو په نتیجه کې چې بېنظیر بوټو د پاکستان صدراعظمه وټاکل شوه، د دې ټاکنې اساسي عامل دا دی چې دلته دا ټوله مبارزه زما په نظر په دوو جهتونو کې وه؛ یو جهت یې محافظه کارانه و او بل د تحول غوښتونکو او تغیر طلبانو طرز تفکر چې تل یې د تغیر لپاره هڅې کولې. بېنظیر بوټو چې د انتخاباتو پر وخت کومې بیانیې ورکړې دي د هغې په خبرو کې دا مسله په واضحه توګه یاده شوې وه، چې

دا د تغیر دوره ده، باید پاکستان کې هم تغیر راشي او دغه د تغیر دوره د بین المللي سیاست له غوښتنو سره سمه روانه ده او په دې حوزه کې هم همدغه تغیر راروان دی، نو فکر کوم چې دغه انتخابات او د دې د ګوند کامیابېدل او د صدراعظمۍ په توګه د دې له راتګ څخه سرې داسې نتیجه اخیستلای شي، چې د پاکستان خلک د سیاسي بلوغ مرحلې ته رسېدلې دي او سیاسي بلوغ لري، نو دا چیلنج باید ومنل شي، چې باید پاکستان کې سیاسي تغیر راشي.

پروسږکال چې کله مور د بینظیر بوټو سره د دغو مسایلو په ارتباط وغږېدو، مور سره نور افغانان هم موجود وو. دې مور ته یونیم ساعت د خبرو اترو وخت راکړ. د دې له خبرو څو مهم نکات چې ماته یاد دي دا و: اوله دا چې هغه څوک چې په خپل وطن کې ستونزې او مشکلات ایجادوي، اختناق راولي، خلک محبسونو ته لېږي، خلک وژني، نو هغه به د ګاونډي څه پروا وکړي؟ دوی ویل کله چې مور حکومت جوړوو، نو د خلکو رایه غواړو او په پاکستان کې د خلکو په خوښه حکومت جوړوو. لکه څنګه چې په پاکستان کې مور یو مستقل او د خلکو په خوښه حکومت غواړو نو همداسې زمور هیله ده چې په افغانستان کې هم داسې حکومت رامنځته شي، چې خلکو رایه ورته ورکړې وي. صندوقونه دې کېښودل شي چې خلک په ازاده توګه خپله رایه ورکړي او خپل زعامت وټاکي. دغه زعامت باید د زور او فشار لاندې نه وي، بلکې د خلکو د خوښې تابع وي.

د دې د خبرو بله برخه دا وه؛ چې هغې وویل: مور داسې افغانستان نه غواړو چې د پاکستان، ایران او یا بل کوم ګاونډي تر فشار لاندې وي، بلکې خبره دا ده چې افغانان په تاریخي لحاظ په ازادۍ میین قوم دی او دوی تل د ازادۍ لپاره د خپل دین لپاره د خپلې عنعنې لپاره قرباني ورکړې ده، نو که افغانستان

کې د خلکو په خوښه حکومت راشي او هغه ازاد، مستقل او پر خپلو پښو ولاړ افغانستان وي، هغه د نورو ګاونډیو ملکونو سره هم کومک کولای شي.

درییمه خبره دا وه؛ چې افغانستان کې که داسې حکومت راځي چې هغه د خلکو په خوښه وي، نو هغه دلته د پاکستان د حکومت سره هم مرسته کولای شي، ځکه چې دلته به هم د خلکو د خوښې حکومت وي او بله خبره دا وه چې افغانستان په ډېر یو مهم ستراتیژیک موقعیت کې پروت دی او ازاد، مستقل او پر خپلو پښو ولاړ افغانستان د ګاونډیو په منځ کې د یو پله حیثیت لري او موږ داسې افغانستان غواړو چې له ګاونډیو ملکونو سره د وروروليـ او دوستۍ روابط ولري او د یو بل په چارو کې لاسوهنې نه وي، بلکې له یو بل سره په اقتصادي، اجتماعي او فرهنګي ساحو کې د متقابلې همکارۍ روابط ولري. اوس چې بېنظیر بوټو صدراعظمه شوې ده، د ټولو افغانانو ترې دا هیله ده چې د افغانستان د کشالې د سیاسي او مسالمت امیز حل په لاره کې خپله مثبته هڅه پیل کړي.

# افغانان هیله لري، چې زموږ ګاونډیان باید د افغانستان مساله ملګرو ملتونو ته وسپاري

دا مرکه د (وفا) جریدې په (۷۶)یمه ګڼه کې د (۱۳۷۲ل)کال د لیندۍ میاشتې پر (۱۵)مه نېټه خپره شوې ده.

د پاکستان صدراعظمې بېنظیر بوټو د روان کال د قوس د میاشتې پر څلورمه نېټه په اسلام اباد کې یو جوړ شوي مطبوعاتي کنفرانس کې برخه واخیسته. په دې کنفرانس کې پاکستاني مشرانو او د پاکستان د مطبوعاتو ځینې نماینده ګانو برخه اخیسته وه. په دې مطبوعاتي کنفرانس کې د صدراعظمې څخه د افغانستان د رواني لانجې او کورنیو تنظیمي جګړو په باب هم پوښتنه وشوه. محترمې بېنظیر بوټو په دې ارتباط د خپل ځواب په ترڅ کې د نورو خبرو تر څنګه دا خبره هم وکړه چې موږ پیشنهاد کوو، چې د افغانستان د روانې شخړې د حل لپاره دې د پاکستان، ایران او سعودي عربستان یو مشترک درې اړخیز کمېسیون جوړ شي، په دې موضوع کې دې منځګړیتوب وکړي.

د محترمې بېنظیر بوټو دې خبرو په افغانانو کې یو تشویش تولید کړ، ځکه افغانان په تمه و، چې د دې په رامنځته کېدو سره به د پاکستان په افغان پالیسۍ کې تغیر راشي، خو په مطبوعاتي کنفرانس کې د افغانستان په باب د دې خبرې د پاکستان د زړې پالیسۍ په رڼا کې اوډل شوې وې، په همدې اساس د بي بي سي پښتو خپروني د پاکستان د صدراعظمې د دې وینا په باب، د افغانانو د عکس العملونو د څرګندولو په خاطر د ازاد افغانستان د

لیکوالو ټولنې له مشـر پروفیسـور امین سـره یوه مرکه وکړه، چې د قوس پر اوومه د سهار د بي بي سي راډیو له څپلو نشر شوې ده.

له پروفیسـور امین څخه یې پوښـتنه وکړه، چې د محترمې بېنظیر بوټو د دې وینا په باب د افغانانو عکس العمل څه دی؟

پروفیسـور په ځواب کې ورته وویل: د محترمې بېنظیر بوټو تر مطبوعاتي کنفرانس وروسـته، چې ما له کومو افغانانو سـره کتلي دي، په دې ارتباط افغانانو د بېنظیر بوټو په مرکه څه تشویش ښکاره کړ، ځکه افغانان وايي، چې د محترمې دا خبرې او نظریات د افغانستان په باب د پاکستان د زړې پالیسی څخه خړوبېږي، ځکه افغانان په دې عقیده دي، چې پخوانۍ پالیسي موثره نه وه، د هماغسې پالیسی په رڼاکې د پېښور– اسـلام اباد تړونونه وشـول، په دغو تړونونوکې د دریوارو هېوادونو نماینده ګان وو، بیا د افغان د اوسـنی اداري مشـران او په جګړه اخته خواوې د اسـلام اباد تر تړون وروسـته د پاکسـتان د پخواني صـدراعظم په ملګرتیا تهران او ریاض ته ولاړل. خو دغو درې اړخیزو خبروکو مه ګټه و نه کړه او افغانسـتان کې یې حالات نور هم کړکیچن کړل او هېڅ هم پرې مرتب نه شـول. نو ځکه اوس افغانان شـکمن دي، چې دا پېشـنهادي درې اړخیز کمېسیون به هم څه ونه کړای شـي. د کمېسیون دریواړه غړي په افغانسـتان کې خپلې ګټې لري او دریواړو زموږ په هېوادکې په وسـله سـمبال ګوندونه او تنظیمونه جوړ کړي دي، ځکه دوی به هر یو کوښښ وکړي چې د خپلې خوښـې حکومت پر افغانانو وتپي، حال دا چې دغسې تپل شویو حکومتونو په افغانستان کې نتیجه ور نه کړه او نه به یې ورکړي. افغانان غواړي، چې زموږ ګاونډیان په صـادقانه ډول د افغانسـتان رواني معضـلې ته فکر وکړي او په دې هڅه کې شـي، چې افغانان د خپلې خوښـې حکومت له خپل دود او عنعنې سـره سـم ځان ته جوړ کړي، زموږ

ګاونډیان باید د یوه نوي تفکر په رڼاکې د افغانستان قضایاوو ته د دې هېواد له تېر تاریخ سره په ارتباطکې وګوري او د دېکشالې د غوڅولو لپاره له افغانانو سره لکه د ورونو د سولې او امنیت په لارکې مرسته وکړي. که چېرې دا شخړه د همدې لاسوهنو له امله دوام پیداکړي، نو د دې امکان شته، چې د افغانستان تمامیت له جدي خطرونو سره مخامخ کړي او دا اور به بیا زموږ ټول ګاونډیان له ځانه سره وسوځوي. د بي بي سي خبریال بیا وپوښتل، افغانان نو څه غواړي؟

د دې پوښتنې په ځواب کې پروفیسور امین زیاته کړه: افغانان وايي، چې دا درې ملکونه دې په ازمایل شوې طریقه کار نه کوي، ځکه هغو طریقو خو ډېره بده نتیجه ورکړه او افغانستان یې په کنډوالو بدل کړ. دوی وايي چې پاکستان باید هغه زړه افغان پالیسي پرېږدي او د نوي تمایل سره سم دې د لانجې د حل لپاره یوه داسې لار ولټوي او یا د یوې داسې لارې په لټولو کې له افغانانو سره مرسته وکړي، چې هغه د افغانانو له عقیدې، روایاتو او سنتونو سره برابره وي. افغانان هیله لري، چې دغه درېواړه هېوادونه دې هڅه وکړي، چې د ملګرو ملتونو جهاني موسسه د افغانستان مسلې ته بیا له سره توجه وکړي او هغوی خپل د سولې پلان بېرته ژوندی کړي، هغه دا چې زموږ ګاونډیان باید زیار وباسي، چې د افغانستان د مسلې حل ملګرو ملتونو ته وسپارل شي.

افغانســتان يو مېړنی او توريالی هېواد دی او ټولو قومونو ته يې خپل مېړنتوب ښــودلی دی، ســکندر و که چنګيز او که انګرېزان وو په خپله په جهاد ســره ټولو ته شکست ورکړی دی، موجوده زمانه کې روسان يو لوی طاقت و چې د غربي او شــرقي هېوادونو د دې زبرځواک څخه ځان ســاته، البته روســانو زموږ په مخکې تاريخ او واقعاتو ته نظر نه و اچولی او که اچولی يې و، خو کمونســتانو خپل قدرت ته په لوړ نظر کتل او افغانســتان ورته وړوکی هېواد او بې طاقته ښــکارېده، اما د افغانســتان له هېواد ســره يو لوی طاقت چې هغه د خدای(ج) په مرسته پس له هغې چې روسـانو زموږ پر هېواد يرغل وکړ، نو په هماغه لوی طاقت الهی سره موږ افغانانو له روسانو سره کامله مقابله وکړه او ټول غرب او شــرق وليدل چې روســانو د افغانانو پر وړاندې لوی شــکســت وخوړ، نو نظر په دې مقدمه اوســني جګړه ماران په خپل منځ کې په جنګ او جګړو اخته دي، دا ډېر بې ځايه او د اســـلام د ټولو بنيادي قوانيو، د قران عظيم الشـــان او حديث نبوي ســـره مخالف دی او زموږ په هېواد کې يې د جهاد سپېڅلي اهداف په قتل او عارت بدل کړل.

پوښتنه: ستاسې په نظر د اوسنيو شخړو څخه د وتلو لاره څه ده؟

ځواب: زه فکر کوم چې د افغانانو لپاره د بهرنيو يرغلګرو ســـره مقابله څه نوې خبره نـه ده، خو کلـه چې زموږ پـه هېواد کې خـارجي تېري کوونکو شکست خوړلی، نو افغانانو دوباره د خپل کلتور په مطابق خپلې ستونزې حل و فصــل کړې دي، چې د دغې دود او دســتور لپاره د روغې جوړې په خاطر يې جرګې او لويې جرګې راغوښـتل شـوي دي، دا مسـلې په خپل منځ کې حل

**کړې دي، اما زه فکر کوم چې د انقلاب په وجه لوی واړه شــول او واړه لوی شـــول، نو هغه خپل پلرنی دســـتور یې هېر کړی او یا د خپلو ګټو او اقتدار په خاطر نه غواړي چې دا مسـله د افغانانو په دود فیصـله شـي. نو زه غواړم چې په افغانانو کې به په داخل او خارج کې پوهان او سـیاسـتمدار خلک شـته چې کولای شــي د خپل وطن دا مســله ملګرو ملتونو په مرســته او لویې جرګې په لارې حـل و فصــــل کړي، لکـه چې ملګرو ملتونو د هر هېواد جګړې او ستونزې حل کړې دي، همدارنګه موږ سره هم باید مرسته وکړي، چې دا په خپله د بشري حقوقو څخه کلکه دفاع ده.**

# د افغانستان د مسلې د سياسي حل صلاحيت له جنګي ډلو سره نه شته

دا مرکه د (ازاد افغانستان) جريدې د لومړي کال په (٤)مه ګڼه کې د (١٣٧٧ل)کال د چنګاښ پر مياشت خپره شوې ده.

د امريکا غږ پښتو خپرونې د کابل پوهنتون له پخواني استاد او د افغانستان د مطالعاتو د مرکز رييس پروفيسور عبدالرسول امين سره د افغانستان په روانه لانجه خبرې کړې دي، چې عمده برخې يې دلته را اخلو:

له پروفيسور امين څخه پوښتنه وشوه، چې له کمونيستانو څخه وروسته چې څومره حکومتونه راغلي دي او يا راځي، هر يو يې د اسلام او شريعت دعوه کوي. ايران هم يو مسلمان ملک او پاکستان هم او موږ هم يو مسلمان ملک يو او غواړو چې اوسو، نو دا د دوی دښمني له موږ سره په څه کې ده؟

پروفيسور امين:

د کمونستانو تر سقوط وروسته د افغانستان دا خپلمنځی جګړې که په نظر کې ونيسو، نو د استاد رباني او د حکمتيار ترمنځ په ډېره برخه کې اسلام استعماليده، يانې دا فتوې به ورکول کېدې او اوس هم د جنوب او شمال ترمنځه، نو دلته چې سړی وګوري، دواړو خواوو ته مسلمانان دي، دواړه خواوې په افغانستان کې د سياسي قدرت لپاره جنګ کوي. دواړه ډلې د جنګ صلاحيت لري، خو تر کومه ځايه چې د سياسي صلاحيت خبره ده، د افغانستان د مسلې د حل خبره ده، دا صلاحيت نه له شمال سره شته او نه له جنوب سره. ځکه چې د شمال تر شاه ايران ولاړ دی او د جنوب تر شاه

پاکستان ولاړ دی. د ایران تر شاه بیا هند، روسیه او نور ولاړ دي او دې خواته د پاکستان تر شاه سعودي، ځینې غربي ممالک او امریکه هم ورسره سر خوځوي. زما په نظر د افغانستان مسله د مذهب تر نامه لاندې په سیاسي بڼه روانه ده. پایند صاحب خبره چې د ایران او پاکستان ترمنځ به څه خصومت نه وي، لیکن دوی به خپلې ملي ګټې ولري او په تاریخي لحاظ دا سیاست ډېر زوړ راغلی دی، لکه چې پخوا به ویل کېدل چې خپل ګاونډی ضعیف وساته او خپل ځان قوي کړه، نو موږ ګورو چې ایران هم غواړي ځان قوي کړي او پاکستان هم غواړي. لیکن په واقعیت کې دواړه کوښښ کوي چې افغانستان ضعیف وساتي، زما په نظر دا ډېر زوړ سیاست دی او دغه مسله پروسږکال په ایران کې ما له بروجردي سره مطرح کړه او دا مې ورته وویل څه شی چې تاسې پر افغانستان باندې تحمیلوئ او تاسو یې ملاتړ کوئ، دې حکومت خو پنځه کاله او پنځه میاشتې حکومت کړی دی، څومره ترخې تجربې چې د افغانستان خلک له دغه حکومته لري، هیڅکله به خلک دا حکومت ونه مني. زما په نظر د افغانستان جوړښت او د قومونو ترکیب داسې راغلی دی، چې نه ایران پرې خپله اچولی شي، نه پاکستان پرې خپله اچولی شي، خو بدبختي په دې کې ده چې هغوی د خپلو ملي ګټو لپاره کار کوي او د دې لپاره یې افغانان استخدام کړي دي او دوی هم د اجیر په شان ورته کار کوي. پروفیسور امین د یوې بلې پوښتنې په ځواب کې وویل:

ما همدغه مسله په ایران کې له برجردي سره مطرح کړله ما ورته وویل چې دا کومې ډلې چې تاسو یې په افغانستان کې ملاتړ کوئ، دا خو پاکستان جوړې کړې دي، هلته تربیه شوې دي، هغوی رسمیت ورکړی دی، ما وویل علت دا دی چې هم پاکستان او هم ایرانیان په افغانستان کې له هغو کسانو سره روابط ساتي چې هغوی اجیر تربیه شوې دي او د افغانستان د ګټو لپاره چې

خدمت کوي هغه افغانان دي او له هغو سره تاسو روابط نه ساتئ، ځکه تاسو په خپلو ملي ګټو باندې خفه کېږئ. داسې چې تاسو خفه کېږئ، همداسې افغانان هم خفه کېږي. زما په نظر د افغانستان د مسلې د حل لپاره تر اوسه د پاکستان او د ایران ترمنځه داسې یوه نقطه راغلې نه ده، چې سره متحده پالیسي وضع کړي، ایران خپلې ګټې لري او پاکستان خپلې ګټې لري، د پاکستان شاته سعودي ولاړ دی، د سعودي جنګ هم موږ پر غاړه اخیستی دی، د پاکستان جنګ هم موږ پر غاړه اخیستی دی، د شیعه او سني جنګ هم موږ پر غاړه اخیستی دی. یانې په افغانستان کې پر هر شي باندې خبرې کېږي، خو په یو شي باندې خبرې نه کېږي، په افغان باندې خبرې نه کېږي او په افغانستان باندې خبرې نه کېږي. په حزبونو، په تنظیمونو، لیډرشیپونو او ژبو باندې خبرې کېږي، لیکن په افغان باندې خبرې نه کېږي. که سړی دا دواړه ملکونه مطالعه کړي، ګوري چې دا دواړه ملکونه کوښښ کوي، چې د افغان او افغانستان ملي هویت باید دومره ضعیف کړي چې دوی خپل اجیران د خپلو ګټو لپاره استعمال کړي. لیکن زما شخصي نظر دی چې افغانستان کې نه ایران خپله ډله په ټول افغانستان حاکمولی شي او نه یې پاکستان او بلاخره دوی هماغه د یو دوست حکومت مفهوم ته راځي، چې په افغانستان کې نه مخالف حکومت هلته ځایېږي، نه ټټو حکومت ځایېږي او یوازینی حکومت چې هلته راتلای شي، هغه به دوست حکومت وي، چې د خپلو ملي ګټو پر اساس باندې د هغوی ملي ګټې هم په نظر کې وساتي.

دا چې د افغانستان خلکو ته څه امید شته، پروفیسور امین وویل: تر هغه ځایه چې په ګاونډیانو پورې اړه لري، زه خو شخصاً خپله له یوه هم تمه نه کوم، نه له پاکستان څخه، نه له ایران څخه، نه له مرکزي اسیا څخه، نه له هند څخه، نه له سعودي عربستان څخه او نه له هېچا، خو زه له افغانستان څخه یو امید

لرم او د افغانستان ستراتیژیک موقعیت او د ده د قومونو ترکیب او ستراتیژیک موقعیت یې دادی چې دده چاپېره څه چې دي، که هغه ایران دی هم مسلمان دی او که پاکستان دی هم مسلمان دی او که مرکزي اسیا ده هم او زموږ روابط د ایران او د مرکزي اسیا سره، لکه چې پایند صاحب وویل ډېر نږدې دي، ځکه چې هغوی سره کلتور یو شان مشابه دی، زموږ قومونه هلته سره پراته دي او هم که د دې قومونو ترکیبات او ستراتیژیک موقعیت سړی واخلي، نو له دې څخه معلومېږي چې که هر څومره ورته دوی خلک اجیر کړي، هر څومره که ملک کې لاس او پښې وهي، نو یو ملک وربانددې خېټه نه شي اچولای او بلاخره دوی مجبورېږي چې یو ملي او دوست حکومت ته اماده شي.

# افغانها از حمله موشکی امریکا قلباً متاثر اند

دا مرکه د (ازاد افغانستان) جریدې د لومړي کال په (۵)مه ګڼه کې د (۱۳۷۷ل)کال د زمري پر میاشت خپره شوې ده.

پروفیسور عبدالرسول امین رییس مرکز مطالعات افغانستان، در رابطه به حمله موشکی امریکا به خاک افغانستان (شب ۳۱ اسد سال روان خورشیدی) مصاحبه با بخش پشتو رادیو صدای امریکا داشت، که ما بخشهای عمده ان گفت و شنود را در اینجا به گزینش میگیرم.

پروفیسور امین در اغاز سخنهایش موضوع را به دو بخش تقسیم نمود، گفت: اینجا دو مسله را با هم یکجا نموده اند: یکی مسله تروریزم و دیگری هم حمله بر حریم یک مملکت. ما تروریزم راکه از سوی هر کسی و هر گروهی به هر اسم و رسم ان در هر گوشه جهان صورت گیرد، نکوهش میکنم. ملت مظلوم افغانستان نه به تروریزم باور دارند و نه عملی تروریستی را می پسندد. افغانها میگویند که اسامه و همراهنش را شبکه های امریکا و کشورهای منطقه به افغانستان فرستادند و ده سال تمام اینها در افغانستان جنگ کردند. پس از آن دوران چند سال پیش با اجازه اداره آن وقت حاکم بر کابل، اسامه در افغانستان اقامت گزید و از آن وقت به بعد تا هنوز در

**آنجا اســت. افغانها اسـامه را مولود همان شـبکه ها میدانند، که بخاطر منافع آنها جنگ میکرد و اکنون که همان کشـورها و شـبکه ها در منطقه با اهداف ستراتیژیک شـان رسـیده اند. به بهانه پایگاهای اموزشـی تروریسـتی اسـامه، کشـور ما را نشـانه میگرند و موشـک های کروز شـان را بسـوی یک کشـور فقیر، جنگ زده، اما ازادی دوسـت اتش میکنند. افغانها این گونه موشـک پرانی ایالات متحده امریکا را تجاوز بر حریم، تمامیت و اسـتقلال کشـور خود میدانند. افغانها از حمله موشکی امریکا قلباً متاثر استند و ان را نکوهش مینمایند.**

**پروفیسور امین با ادامه گفته هایش افزود: مشکل عمده دیگری که بایستی با ان اشـاره نمود این اسـت که خارجی ها اکثر شـان از روان و ارزش های فرهنگی مردم ما آگاهی ندارند و اگر اینان از این ارزشـها آگاهی میداشـتند و یا نظرداشت به ارزشهای فرهنگی افغانها قضیه را تعقیب میکردند نه ضرورت به موشـک پرانی میافتد و نه هم حریم یک مملکت فقیر مورد تجاوز قرار میگرفت. در عنعنه ها و رسـوم افغانها اگر مجرم به خانه کسـی پناه میگزیند. افغانها پناه گزین را به دشـمن اش تسـلیم نمیکنند، مگر اینکه جرگه تشـکیل شود و موضوع را همگون با ارزشهای افغانی فیصله کند. بایسته می نمود که امریکایها از اینگونه شـکرده ها سـرد میجسـتند و موضـوع را بیدون شـور و هیجان خاتمه میدادند. گرداننده برنامه گفت: امریکا ادعا میکند، موضـوع را با طالبان در میان گذاشته است؟**

**پروفیسـور امین در پاسـخ به این ادعا اضـافه کرد: افغانها از رابطه امریکا با طالبان پیرامون مسله اسامه هیچگونه اطلاعی ندارند، اگر امریکایها مذاکرات شـان را با طالبان در باره موضـوع اسـامه غرض آگاهی مردم افغانسـتان از راه**

رســـانه های گروهی پخش میکردند، امروز افغانها تا این حد بر افروخته نمی بودند. میشد این مسله از راههای مسالمت امیز دیگری نیز راه حل پیداکند. به گونه مثال امریکا می توانست با حکومت پاکستان و گروههای مذهبی این کشـــور مســـله را در میان بگذارد، گروه های مذهبی پاکســـتان که با طالبان روابط نزدیک دارند، با طالبان بر موضـــوع بحث میرکردند و به انها تفهیم می نمودند که افغانســتان یک کشــور فقیر و جنگ زده اســت، چرا مردم آن قربانی اعمال یک شخص شوند، این شخص بایستی جای دیگری برود.

# زما په نظر په سیاسي لحاظ ازاد مطبوعات د افغانستان له سیاسي سیستم سره اړه لري

دا مرکه د (وفا) جریدې د پنځم کال په (۲۵-۲٦)مې ګڼه کې د (۱۳۷۵ل) کال د چنګاښ میاشتې پر (۲۵)مه نېټه خپره شوې ده.

مورږ په دې ګڼه کې د مطبوعاتو د ازادۍ په باب ( د امریکې غږ ســره خبرې اترې) پروګرام هم ثبت کړی و، چې عمده برخې یې په دې ګڼه کې تاســې ته وړاندې کوو. د دې پروګرام په پیـل کې د دې پروګرام چلوونکي اســتاد سـعدالدین شـپون څه مقدماتي خبرې وکړې او مېلمانه یې معرفي کړل. مورږ د دوی د خبرو ځینې برخې هم اخلو.

سیمې ته چې مطبوعات، رادیو، ټلوېزیون او نور چاپي اثار راځي دا د لوکسو یو خو لوستو او تعلیمیافته خلکو مشـغولا ښکاري، هیله ده چې دا باید ثابته شـي چې داسـې نه ده چې مطبوعات د سـیاسـي او اجتماعي رغونې د ټولو نه موثره وسـیله ده، مګر د افغانســتان په برخه کې د دې لویې لارې د ازاد تګ راتګ په مخکې هر چېرته حکومت، یا تنظیمي، یا شخصي پاټکونه او خنډونه پراته وو او دي. وروسـتیو دوو لسـیزو کې د افغاني مطبوعاتو نه تر ډېره حده د ښکنځلو او تحقیر وسیله جوړه شوې ده.

دا ځل زمورږ معزز مېلمانه یو صـباح الدین کشـککی دی چې په افغانسـتان کې په حکومتي او ناحکومتي مطبوعاتو کې یې کار کړی دی، د پخواني پاچا پر وخت یو ځل د مطبوعاتو وزیر هم و او تر هغې وروسته یو وخت په پاکستان

کې او اوس دلته فعالیت کوي. زموږ بل مېلمه د کابل پوهنتون پخوانی اســتاد پروفیسور عبدالرسول امین د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې رئیس دی، چې دا دوه لسیزې په پېښور کې په اول سر کې د شوروي استعمال ضد او اوس په افغانستان کې د امنیت او ملي حکومت د خوندي کېدو لپاره فعالیت کوي، د استاد سعدالدین شپون له دې مقدمې وروسته د پوښتونکو د پښتنو او د مېلمنو د ځوابونو لړۍ پیل شوه.

لومړۍ پوښتنه له استرالیا څخه ښاغلي معین باجوړي وکړه؟

امین صاحب په دې باب وویل: زه به یوازې پر سیاسي محلوظاتو دې خبرې ته اشاره وکړم او هغه داده چې د افغانستان مسله د ځینو خلکو په نظر باندې چې هغوی وایي افغانســتان یو دولت دی، چې ســیاســي جغرافیه لري، ولس لري، حکومت لري، خپلواکي لري اما بدبختانه چې د افغانســـتان په ازادو مطبوعاتو کې که ازاد مطبوعات وي هغوی د افغانســـتان هغه ترکیب له نظره غورځولی دی، ځینو ته خپل قوم افغانســـتان ښـــکاري، ځینو ته خپله ژبه افغانستان ښکاري. زه فکر کوم چې دغه ډول نشرات نه یوازې دا چې کوم حد ته نه رسېږي، بلکې د افغانستان چې کوم خلک دي، هغوی چې مشترک جهاد یې کړی او ټولو قومونو په کې برخه اخیســـتې، یانې هغه راتلونکی افغانستان له ګډوډۍ سره مخامخ دی.

له پېښور څخه عبدالغیاث ساپی: ازاد مطبوعات د یوې ټولنې هېنداره ده او د ټولنې واقعیتونه څرګندوي، زه د پروفیسور رسول امین څخه دا پوښتنه لرم، چې د افغانســتان موجود ســیاســي او اجتماعي جوړښت کې، تاسو د ازادو مطبوعاتو د ودې لپاره څه امکانات وینئ؟

امين صاحب: په اوسنيو شرايطو کې ترکومه ځايه چې افغانستان ته سرې ګوري، په خواشينۍ سره بايد ووايي چې د افغانستان خلک په سياسي لحاظ په مجموعي ډول له يوې ديکتاتورۍ څخه بلې ديکتاتورۍ ته ننوتل، نو اوس په افغانستان کې ازاد مطبوعات نه شته، بلکې دا لويه کيسه ده چې دغو خلکو چې د ازادو مطبوعاتو په نامه باندې خپل فعاليتونه شروع کړي دي، هغه ډېره زړه دردوونکې کيسه ده او وخت هم ورته نه شته، اما زما په نظر ازاد مطبوعات په سياسي لحاظ باندې د افغانستان له سياسي سيستم سره ارتباط لري، که هغه داسې يو سيستم وي چې هغه هم اسلامي وي، هم ملي وي او د هم د افغانستان خلکو ته اجازه ورکړي او په دې باندې عقيده ولري چې د افغانستان خلک بالغ دي او نابالغ نه دي، داسې نه وي چې يو سړی راشي او ووايي چې دا زه په خبره پوهېږم او تاسو ټول خولې ټپې ونيسئ، ځکه چې دا خبرې مور له کمونستانو څخه هم واورېدې، اوس يې هم اورو، نو زما په نظر تر څو پورې چې سيستم په خپله داسې نه وي راغلی، چې هغه د ديکتاتورۍ پر ځای باندې دموکراسۍ ته يا ولسواکۍ يا خلکو ته لاره ور نه کړي، زه ګومان کوم چې دغه لانجه به په افغانستان کې تر هغه حل نه شي.

له سعودي عربستان څخه عبدالحی کاکړ: د ځينو خلکو له خوا د افغانستان پر پخواني پاچا دا الزام لګول کېږي، چې د ده پر وخت مطبوعات ازادانه نه و او تاسې د شاه او اوسنيو حکومتونو په مطبوعاتو کې څه توپير کولای شئ، ځکه چې همدغه تنظيمونه پر شاه باندې انتقادونه کوي؟

امين صاحب: زه به دومره ووايم دا خلک چې وايي چې د ظاهر شاه پر وخت د مطبوعاتو ازادي نه وه، زه ګومان کوم چې دا به ګناه وي، ځکه چې په هغه وخت کې لکه څنګه چې کشککي صاحب وويل د مطبوعاتو هر ډول ازادي د قانون په چوکاټ کې وه، حتی ځينو خلکو بې قانونه ازادي هم

اخیستې وه او په دې ټوله حوزه کې د ایران، پاکستان، هند او دا ټوله حوزه کې افغانستان یو داسې ملک و چې هلته به له پارلمان څخه ټول رویدادونه نېغ په نېغه نشرېدل، حتی حکومت باندې به نیوکې کېدې چې په دغه دوره کې دغه مثال په دې ټوله حوزه کې سرې نه شي موندلای.

له استرالیا څخه مالیار صاحب: اوسمهال د کابل رژیم راډیو لري، اخبار لري یانې د تبلیغاتو لپاره پوره وسیلې لري. زما پوښتنه دا ده چې د دې رژیم د مطبوعاتو او د کمونستانو د رژیم د مطبوعاتو ترمنځ چې دروغجن مطبوعات و، څه توپیر شته او که نه؟

امین صاحب: ما مخکې هم عرض وکړ چې کوم رژیم پر دیکتاتورۍ ولاړ وي، ځکه چې افغانان له یوې دیکتاتورۍ بلې دیکتاتورۍ ته ننوتل او مخکې نه یوازې دا چې مطبوعاتو ازادي نه لرله، بلکې په کوټه کې هم چا ازادې خبرې نه شوې کولای او د هغو خبرو راپور به اخیستل کېده او اوس چې دغه خلک په کابل کې دي، دوی هم له راډیو نیولې تر اخبارونو او نورو پورې د یو ګوند او همدغو ځینو شخصیتونو پر صفت مصروف دي، شخصاً زما په نظر باندې د ازادۍ په لحاظ دوی کې توپیر نه شته.

له استرالیا څخه مېړنی صاحب: زما پوښتنه دا ده، چې د ټولو هغو خدمتونو چې مطبوعات د جهاد په دوره کې کړې دي. زما په عقیده د دغو مطبوعاتو په وسیله مشکلات هم راپیدا شوي دي. د مثال په ډول ځینو نشراتو ژبني او مذهبي تعصباتو ته لمن وهلې، ځینې ملي شخصیتونه توهین شوي او حتی د ځینو خلکو په ناموس باندې په نشراتو کې حملې شوې دي، ستاسو په نظر د مطبوعاتو په چوکاټ کې دا کار جواز لري او که نه؟

امین صاحب: مخکې دې موضوع ته کشککي صاحب اشاره کړې ده، په دې باندې هر څوک پوهېږي چې د افغانســتان دننه په مطبوعاتو کې دومره امکان نه شـــته دی، هغه خلکو چې د افغانســـتان د جامعې یانې اســـلامي، افغاني، اخلاقي اصـول مراعات کړي دي او یو هدف او مراد یې لرلی او د افغانسـتان په عمومي ملي ګټو پورې هغوی نشـرات کړي دي. زه فکر کوم چې هغوی له تعصـــباتو څخه که هغه ســـیمه ییز دي، که ژبني، قومي، مذهبي او ګوندي او نورو څخه یې ډډه کړې ده او ځینې خلک چې مطبوعاتو یوازې د خپلې ګټې لپاره چې یا چا ورته پیسې ورکړې وي او په ځان باندې د ازادو مطبوعاتو نوم اېښی دی، دا په بله کټګورۍ کې راځي یانې دا هغه خلک دي چې د ازادۍ په نامه باندې دوی ځینو خلکو څخه پیســـې اخیســـتي. په حقیقت کې د هماغو ګوندونو لپاره نشـرات کول او د ازادو مطبوعاتو خاوندان یې همدغسې رټل، چاته به یې کمونســـتان ویل، چاته به یې جاســوســـان او په یو او بل نامه به یې یادول، زه ګومان کوم تر څو پورې چې د مطبوعاتو خاوندان یو اخلاقي معیار یا هدف یې په نظر کې نه وي، نو هغه به تل په غلطه لاره ځي.

له سـعودي عربسـتان څخه خان اغا: ایا د کمونسـتانو په وخت کې مطبوعاتو ازادي درلوده که نه؟ او دویم دا چې د افغانســتان په اوســنیو شــرایطو کې د مطبوعـاتو رول کم شـــوی دی او مطبوعـات ټول پـه خـارج کې دي، دغـه مطبوعات پر افغانستان باندې څه تاثیر لري؟

امین صـــاحب: زه فکر کوم چې د کمونســـتانو د دورې په اړه مخکې خبره وشوه چې په دیکتاتورۍ لکه د کمونستانو دیکتاتورۍ کې ازادي هېڅ نه شته. لیکن تر هغه ځای پورې چې د افغانســـتان دننه د افغانســـتان مســـله ده، زه دومره ویلای شم چې سره د دغه کمونستي دیکتاتورۍ چې په افغانستان کې روانه وه او ټول خلک ځارل کېدل، بالمقابل په پېښـــور کې ځینې افغاني

**موســـسې، لکه د کشـــککي ثقافتي موســـســـه، افغان اطلاعاتي مرکز، زموږ د لیکوالو اتحادیه او نورو چې موږ به همېشه داکوښښ کاوه چې زموږ نشرات چې په هره وســـیله کېږي، د افغانســـتان داخل ته انتقال شـــي، اوس هم زموږ نشرات افغانستان ته ځي او حتی اخیرنی کوم راپور چې ماته له پېښوره راغلی په هغه کې ویلي شــوي دي، چې یو چا تلیفون کې پوښــتنه وکړه چې دا تاســو څنګه خپل نشــرات داخل ته انتقالوئ، مقابل لوري ورته ویلي و، خلک خپله د علاقې پر اســـاس اخبار داخل ته وړي او موږ تقریباً زر یو نیم زر ګنې د افغانستان دننه مختلفو سیمو ته لېږو.**

# د افغانانو اکثریت د خپل هېواد په هکله اندېښمن دي

دا مرکه د (وفا) جریدې د پنځم کال په (۳۵-۳۶)مې ګڼه کې د (۱۳۷۵ل) کال د تلې میاشتې پر (۹)مه نېټه خپره شوې ده.

د (۱۹۹٦م) کال د سـپتمبر پر ۲۱مه نېټه د سـولې په لټه کې بین الافغاني کنفرانس په نیویارک کې دایر شو. د دې سیمینار پر لومړۍ ورځ د امریکا غږ خبریال د دې سیمینار له دوو ګډون کوونکیو سره مرکه کړې وه، چې په دې ګڼه کې یې تاسو ته وړاندې کوو.

په نیویارک کې د افغانانو یو کنفرانس چې دوی خپله یې بین الافغاني کنفرانس بولي د سـهار پر نهو بجو پیل شـو، د دې کنفرانس د ترتیب، تنظیم او تمویل په اړه د دوو تنو معروفو افغانانو سـره چې په کنفرانس کې یې سـتره برخه درلوده– مرکه کړې ده، دا دوه تنه د کابل پوهنتون پخواني استادان پروفیسور عبدالرسـول امین او دوکتور سـید خلیل هاشـمیان دي چې اول یې اوس په استرالیا کې ژوند کوي او دویم د متحده ایالاتو په کلیفورنیا کې اوسېږي.

په دې برخه کې چې دا کنفرانس څنګه او د څه لپاره جوړ شـوی او نتیجه به یې څه وي؟ پروفیسور امین وویل:

دغه کنفرانس د دې لپاره جوړ شـوی چې هغه افغانان په مختلفو هېوادونو کې اوسـېږي دوی او د افغانانو اکثریت د خپل هېواد په هکله اندېښـمن دي، نو موږ وغوښـتل چې د وطن په غم کې شـریک دغه افغانان یو ځای سـره راټول

شـــي، لکه څنګه چې اوس یې ګورئ ســـره راټول شـــوي دي او د مختلفو ممالکو، لکه: جرمني، انګلســـتان، اســـترالیا، پاکســـتان او نورو ملکونو نه هم افغانان راغلي دي او دلته د امریکې له مختلفو ایالاتونو څخه افغانان راغلي دي او په دې کنفرانس کې یې برخه اخیســـتې ده، دا ځکه چې افغانان خپله د افغانستان د مسـالې د حل لپاره راغونډ شي او خپل مینځ کې خبرې وکړي او داسې یو تنظیم جوړ کړي چې په خپلو کوښـښـونو جنګونو کې ښـکېل قوتونه سولې او تفاهم ته اماده کړي.

د ســـپتمبر د میاشـــتې پر ۲٤ مه ماښـــام د بي بي ســـي پښـــتو خپروني د ازاد افغانســـتان د لیکالو ټولنې له مشـــر پروفیســـور عبدالرســـول امین ســـره د دې ســـیمینار د اهدافو او موثریت په باب یوه لنډه مرکه کې د ســـیمینار هدفونه وښـودل او دا یې وویل چې: د نړۍ په بېلابېلو برخو کې افغانان په خپل هېواد کې د سـولې د تامین او امنیت د راوسـتو په ارتباط فعالیتونه کوي، دا فعالیتونه باید منســـجم او یو لاس شـــي او په غوڅه توګه د افغانســـتان د لانجې د اوارې لپاره ترې استفاده وشي. پروفیسور د سیمینار نتایج مثبت ارزیابي کړل او د اعلیحضرت محمد ظاهرشاه د وروستۍ اعلامیې ملاتړ یې څرګند کړ.

# مردم افغانستان از جنگ خسته شده اند جنگسالاران بایستی قدرت سیاسی را به ملت پسپارند

دا مرکه د (وفا) جریدې د پنځم کال په (۳۵-۳٦)مې گڼه کې د (۱۳۷۳ل) کال د تلې میاشتې پر (۹)مه نېټه خپره شوې ده.

در رابطه به ائتلاف اخیر و نتایج در آن صاحب نظر افغان، استاد سابق پوهنتون کابل پروفیسور عبدالرسول امین گفتند که: چنین اتحاد ممکن است به جنگهای قومی و خونریزی بیشتر در افغانستان منجر گردد. وی افزود در ماه اپریل ۱۹۹۲ همین طور یک ائتلاف به وجود امد که همان ائتلاف عامل عمده خونریزی افغانستان شد. همین گروپهای که فعلاً ائتلاف کرده اند در ان وقت هم اینها با هم ائتلاف کرده بودند و کابل را گرفتند که بالاخره کابل را با خاک و خون کشیدند، به این اساس به نظر من این ائتلافهای که فعلاً به وجود میاید نسبت به ائتلافهای که پیش صورت گرفته بود کدام فرقی ندارند. اختلافها تشدید خواهد شد به خاطر این که این بار شاید جنگ بین پشتون و غیر پشتون به وجود بیاید که این جنگها یک تراژیدی دیگری در اینده به مردم افغانستان باشد.

با تصرف کابل توسط طالبان و تشکیل ائتلاف ضد طالبان خطر تجزیه افغانستان در خطوط قومی، زبانی، فرهنگی و سیاسی تشدید یافته است در این مورد پروفیسور امین چنین ابراز نظر نمود:

**اگر هر کس بخواهد در فکر تجزیه افغانستان باشد و افغانستان را تجزیه کنند به نظر من افغانستان مملکتی است که تجزیه نمیشود، البته اگر کسی چنین فکری داشته باشد، به نظر من الام و مصایب مردم افغانستان را طولانیتر خواهد ساخت. مردم افغانستان از جنگ خسته شده اند و میخواهند که جنگسالاران قدرت سیاسی کشور را به مردم بدهند که خود شان فیصله کنند که چه نوع حکومتی را در افغانستان میخواهند.**

# هر څوک چې د افغانستان د کشالې نظامي حل غواړي په واقعیت کې افغانستان د تباهۍ او بربادۍ لوري ته بیايي

دا مرکه د (وفا) جریدې د پنځم کال په (۳۹–۴۰)مې ګڼه کې د (۱۳۷۵ل) کال د لړم میاشتې پر (۱۰)مه نېټه خپره شوې ده.

پوښتنه: د جنګیالیو ډلو ترمنځ روانو جنګونو د سولې پروسه له خطر سره مخ کړې ده، د دې حالت د دوام نتایج به څه وي؟

ځواب: له بده مرغه په افغانستان کې په خپله د خلق–پرچم ګوند او د دې ګوند د تسلط پر ضد ټولې افغاني ډلې د افغانانو د خوښې پر ځای د باندنیو هېوادونو په خوښه جوړې شوې، مسلح شوې، تمویل شوې، په رسمیت وپېژندل شوې او پر افغانانو تحمیل شوي دي. په دې کې هېڅ شک نه شته چې د افغانستان مسلمان او په وطن مین ملت د شوروي اتحاد د سور پوځ پر ضد او په افغانستان کې د کمونستي رژیم د رانسکورېدو لپاره بې مثاله قربانۍ ورکړې دي، لیکن په دې کې هم شک نه شته چې د افغانستان مجاهد او زړور ملت تراوسه په خپل هېواد کې د خارجیانو له خوا د جوړو شویو جګړه مارو ډلو یرغمل نیولی او په دې بیچاره قام په مختلفو نومونو مختلفې تجربې کېږي. دا یو واقعیت دی چې د خارجیان له خوا ټاکلي مشران د خپلو بادارانو د ملي ګټو لپاره خدمت کوي او د ملت له خوا منل شوي مشران د خپل قام د ملي ګټو حفاظت کوي. له بده مرغه په موجوده جنګیالیو ډلو کې یوه ډله هم په نظر نه راځي چې هغه دې د خارجیانو د ملي ګټو پر ځای د افغانستان او د افغانانو د ملي ګټو تر شاه ودرېږي. ایا ایرانیانو تهران، روسانو

ماسکو، ازباکونو تاشکند، پاکستانیانو اسلام اباد او داسې نورو قامونو خپل پایتختونه وران کړي او د خپلو پایتختونو او سېدونکي خلک يې قتل عام کړي دي؟ تراوسه یو قام هم داکار نه دی کړی. ایا یو واقعي مسلمان افغان به دې ته زړه ښــه کړي چې هغه دې خپل هېوادوال قتل عام کړي، د خپل وطن کلي او باندې او ښــارونه دې له خاورو ســـره برابر کړي او خپلې تورســـرې او ماشــومان دې په خپل وطن او باندنیو هېوادونو کې اواره کړي؟ زه پوره باور لرم چې یو مســلمان او خپلواک افغان هېڅکله دا غیر اســلامي او غیر افغاني عمل نه کوي.

اوس په افغانســتان کې عجیبه لوبه روانه ده. غل او د کور خاوند دواړه ((غل دی، غل دی)) چیغې وهي. اوس په افغانســـتان کې هر مداخله گر هېواد او د دغه هېواد ملگرې ډله په نورو مداخله گرو هېوادونو د مداخلې تور لگوي او هر یو چیغې وهي چې په افغانســتان کې دې باندنۍ مداخلې بندې شــي. دا د مکر او فریب انتها ده او دوی فکر کوي چې گوندې افغانان د دوی په چل او فریب نه پوهېږي. افغانان مداخله گر او د مداخله گرو پلې ډېرې ښــې پېژني. په واقعیت کې دوی افغانان نه، بلکې خپل ځانونه غولوي.

زما په نظر تر څو چې د ملگرو ملتونو د امنیت شـــورا او په مشـــخص ډول امریکا په افغانســـتان کې د ســـولې لپاره جدي او عملي گامونه وا نه خلي، د مـداخلـه گرو هېوادونو د مـداخلو قـاطع مخنیوی ونـه کړي او د افغـانـانو د ســـرنوشـــت واک په خپله افغانانو ته ور نه کړي، تر هغې به دغه جگړې دوام کوي او هر مداخله گر هېواد به د خپلې پلوي ډلې ســره نظامي، اقتصــادي او سیاسي مرستو ته دوام ورکوي او د سولې د راتگ پروسه به د مشکلاتو او د مداخله گرو د دســیســو ســره مخامخ وي چې نتیجه به يې د افغانانو د مرگ ژوبلې، د افغانستان د تباهۍ او په سیمه کې د گډوډۍ، ترور، قاچاق او جنگ جگړو نه غیر بل هېڅ شی نه وي.

پوښتنه: تاسې ته معلومه ده چې دا ځل بیا د هېواد په شمال کې یو نوی ائتلاف جوړ شو، ستاسې په نظر به د دې ائتلاف عواقب څه وي؟

ځواب: د کابل د سقوط په نتیجه کې اوسنی ائتلاف څه نوې خبره نه ده. د نجیب الله د رژیم تر سقوط وروسته هم دغه ډول ائتلاف منځته راغلی و، د همدغه ائتلاف په وجه د قدرت د هوس جنګ شروع شو، کابل له خاورو سره برابر شو. شخصي او دولتي شتمنۍ چور شوې، مړي د سپو خوراک شول. د افغانانو ناموس بې عفته شو، افغانان اواره شول او په ټول هېواد کې هر ډول غیر اسلامي او غیر افغاني اعمالو ته لاره خلاصه شوه. موږ او تاسو دا هم ولیدل چې د خارجي بادارانو په اشاره ډېرې نږدې او ملګرې ډلې د یوې او بلې دښمنانې شوې او سرسخته دښمنانې ډلې د یوې او بلې ملګرې شوې. دا نوی ائتلاف هم د جنګ جګړو، مرګ ژوبلې او د افغانستان د تباهۍ نه غیر بله هېڅ نتیجه نه لري. په دې کې شک نه شته چې خارجي مداخله ګر هېوادونه او د هغوی ملګرې ډلې به څه نا څه د افغانستان د وروڼو قامونو ترمنځ ژبني، نژادي، قامي او سیمه ییزو تعصباتو ته لمن ووهي، لیکن اغېزه به یې دومره ډېره نه وي چې خدای(ج) مه کړه د افغانستان په تمامیت دې تاثیر وکړي. په دې سیمه کې افغانستان ډېر حساس جغرافیایي موقعیت لري او د دې هېواد وروڼه قومونه د پېړیو راهیسې یوځای مخلوط ژوند کوي. زه پوره باور لرم چې د افغانستان تجزیه د دې سیمې ټول هېوادونه د تجزیې سره مخامخ کوي او په دې اور کې اور بلوونکي هم په خپله سوځي.

پوښتنه: په افغانستان کې د جنګي ډلو ترمنځ د اوربند د ټینګېدو لپاره د ملګرو ملتونو د خاص استازي هلې ځلې مفیدې دي که زموږ د ګاونډیانو؟

ځواب: تراوسه خو نه د ملګرو ملتونو د استازو هلو ځلو او نه د ګاونډیو هېوادونو د موظفو اشخاصو منډو رامنډو څه ګټوره نتیجه ورکړې ده. د دې

هلو ځلو او منډو رامنډو د شنډېدو عوامل هم څرګند دي. تراوسه د ملګرو ملتونو د امنيت د شورا او په مشخص ډول د امريکا هلې ځلې د خولې په خبرو پورې محدودې دي او د افغانستان دکشالې د حل په ارتباط د ملګرو ملتونو د امنيت د شورا او د امريکا عمل جدي نه ښکاري او د ملګرو ملتونو د استازي هغه جدي ملاتړ تر شا نه لري څومره چې ورته په کار دی. همدا شان زموږ ګاونډي هېوادونه هم د افغانستان دکشالې په اړه بې طرفه نه دي، ځکه چې هر هېواد په افغانستان کې خپله مشخصه جنګيالۍ ډله لري، هر يو د خپلې ډلې سره نظامي، اقتصادي او سياسي مرسته کوي او هر يو خپله ډله د قدرت په ګدۍ کېنول غواړي او هر هېواد يوازې د خپلې ملي ګټې پر اساس د افغانستان دکشالې حل غواړي. هم د دې هېوادونو د مداخلو په وجه د ملګرو ملتونو د استازو هلې ځلې د مشکلاتو او خنډونو سره مخامخ کېږي. که چېرې د امنيت شورا او امريکا جدي شول، دګاونډيو هېوادونو لاسوهنې بندې شوې، د افغانانو کشاله افغانانو ته وسپارل شوه، نو يوازې په دې صورت کې د ملګرو ملتونو د استازي هلې ځلې د برياليتوب پړاو ته رسېږي او په افغانستان کې د واقعي سولې لپاره لار اوارېږي.

د افغانستان دکشالې څارونکي په دې واقعيت پوره پوهېږي چې د افغانانو يوه جګړه ماره ډله هم نه په وچ زور ټول افغانستان رالاندې کولای شي او نه د خپل حساس جغرافيايي موقعيت په وجه يو ګاونډي په ټول هېواد خپټه اچولی شي. زما په نظر کومه ډله اوکوم هېواد چې د افغانستان دکشالې نظامي حل غواړي په واقعيت کې همدغې ډلې او هېواد د افغانستان بربادۍ او د افغانانو د تباهۍ پسې ملا تړلې ده، ځکه چې د افغانستان کشاله سياسي ده او يوازې سياسي حل ته اړه لري.

اوس ټولې جګړه مارې ډلې د نظامي بن بست سره مخامخ دي او يوه جګړه ماره ډله هم د نظامي قوت له لارې په ټول افغانستان تسلط نه شي کولای. د ۱۹۹٤م کال د اکتوبر په مياشت کې يو شمېر پوه افغانانو دکويټې په ښار کې

د ملګرو ملتونو د استازي ښاغلي محمود مستيري تر مشرتابه لاندې پرله پسې شپاړس ورځې او شپې غونډې وکړې او په پای کې د کابل د غير نظامي کېدو، د کابل د ښار لپاره د امنيتي قواوو د جوړېدو او د يو بې طرفه حکومت وړانديز وشو اوس په کابل کې هغه حکومت چې د کابل د ښار د غير نظامي کېدو او د موقتي حکومت او امنيتي ادارو جوړېدو لپاره يې د ملګرو ملتونو د استازي وړانديز نه مانه له منځه تللی دی او اوس د دغه حکومت بر ځای د کابل په ښار باندې د طالبانو تسلط دی. اوس د افغانستان خلک طالبانو ته ګوري. لکه څنګه چې وايي که چېرې طالبان واقعاً په افغانستان کې سوله غواړي دوی دې په افغانستان کې د سولې په خاطر د ملګرو ملتونو له خوا د کابل د غير نظامي کېدو وړانديز ومني، د کابل ښار دې ملګرو ملتونو ته وسپاري چې په دې غير نظامي ښار کې د يو بېطرفه موقتي حکومت او د افغانانو د يوې بېطرفه امنيتي قوې لپاره زمينه برابره کړي. زما په نظر په اوسنيو شرايطو کې د کابل غير نظامي کېدل، د يو بېطرفه موقتي حکومت او امنيتي قوا جوړېدل د افغانستان د روانې تراژيدۍ لپاره اساسي سياسي حل دی او په دې حل کې پاکستان په طالبانو باندې د خپل نفوذ په لحاظ د بل هر هېواد په تناسب زيات او موثر رول لوبولای شي.

# دکوټې د مشورتي مجلس په فیصلو کې راغلي وو، چې موقته دوره به بېطرفه او خپلواک خلک سمبالوي

| |
|---|
| دا مرکه د (وفا) جریدې په (۱۳۷)مه ګڼه کې د (۱۳۷۳ل)کال د کب میاشتې پر (۹)مه نېټه خپره شوې ده. |

د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې مشر پروفیسور عبدالرسول امین د افغانستان د روانو حالاتو په ارتباط له بي بي سي سره مرکه کړې ده، چې دلته یې خپروو:

پوښتنه: د افغانستان خلکو تراوسه پورې د دغې عبوري شورا د غړو د نوي لیست په هکله څه عکس العمل ښکاره کړی دی؟

ځواب: کومه فیصله چې په کوټه کې مشورتي بورډ کړې وه، په هغې کې دا راغلي وو چې د موقتې دورې لپاره چې کوم خلک ټاکل کېږي. دا به بېطرفه او خپلواک خلک وي، خو دا اوس چې په دغه لیست کې کوم کسان راغلي او د هغو په مقابل کې موږ کوم عکس العملونه وینو. هغه دا دي چې د ددغه لیست ځینې کسان خو نه بېطرفه وو او نه هم مستقل. د دوی لویه شمېره له مختلفو جګړه مارو تنظیمونو سره اړیکي لري. زه وینم چې دکوټې د پرېکړو او د دغه لیست په منځ کې نوی تغییر راغلی دی او زه حیران یم چې دغه تغییر دکوم فشار له امله رامنځته شوی دی.

پوښتنه: ستاسو په خیال په دا اوسني او پخواني لیست کې څه توپیر موجود دی؟

ځواب: په پخواني لیست کې یعنې د بینن سیوان په لیست کې سره له دې چې هغه رسماً اعلان شوی هم نه و، خو زما د معلوماتو له مخې په هغه کې د بېطرفه کسانو شمېره زیاته وه. خو په دغه اوسني لیست کې چې زه وینم د تنظیمي خلکو شمېره ډېره ده. په دې کې یو هغه کسان دي چې په خپله تنظیمونو رسماً د خپلو استازو په توګه ورمعرفي کړي او ځینې داسې کسان دي چې د جهاد په پروسه کې یې له دغو تنظیمونو سره اړیکي لرلي دي، خو داکسان بیا دوی بېطرفه ښودلي دي. زما په فکر هغه کسان چې په رښتیا بېطرفه دي، شمېر یې په دغه کمېسیون کې ډېر کم دی.

پوښتنه: نو ستاسو په فکر ددغه لیست په خپرېدو افغانان خوابدي نه دي؟

ځواب: ما لکه څنګه چې د کوټې د کمېسیون د پرېکړو په ارتباط وویل: دوه خبرې ښخي څرګندې دي. یو دا چې ددغه کمېسیون غړي باید کاملاً بېطرفه وي او بله د موقتي حکومت له جوړېدو سره سمدستي یو بېطرفه پوځ باید موجود وي. دا مساله اوس ښخي پېچلې ښکاري دا چې ښاغلی مستیري له دغو ستونزو څخه د راوتلو لپاره کومې لارې په نبنه کړي، زه نه پوهېږم.

# ځينې کسان غواړي چې قومي او ژبنيو تعصباتو ته د لمن وهلو له لارې خپل ناقانونه حکومت ته دوام ورکړي

| |
|---|
| دا مرکه د (وفا) جريدې د څلورم‌کال په (۱۳–۱٤)مې‌ګڼه‌کې د (۱۳۷٤ل) کال د وري مياشتې پر (۲۷)مه نېټه خپره شوې ده. |

د ازاد افغانستان د ليکوالو ټولنې مشر پروفيسور عبدالرسول امين په دې ورځوکې د هېواد له روانو حالاتو سره په ارتباط د تاجکستان د مسالې په شاوخواکې د بي بي سي له پښتو څانګې سره يوه مرکه‌کړې ده، چې دلته يې تاسو ته وړاندې‌کوو.

موږ افغانان په ازادۍ او خپلواکۍ مين خلک يو او موږ تل د نورو قومونو د ازادۍ او خپلواکۍ ملاتړ کړی دی. موږ د تاجکستان د خلکو ازادۍ او خپلواکۍ ته هم په درووند نظرګورو، اما ځينې سياسي افغاني مبصرين د تاجکستان د دغې رواني‌کشالې په هکله وايي، چې له بده مرغه د افغانستان خلک په خپله له يوې‌کورنۍ جګړې او لويې بربادۍ سره مخ دی، ټولو افغانانو ته د افغانستان د رواني تراژيدۍ ټول مسوول‌کسان په خپله څرګند دی او د دغو مسوولوکسانو له ډلې، ځينې د مذهب تر پردې لاندې قومي او ژبنيو شخړو ته لمن هم وهي او دغه‌کسان خوبونه ويني چې قومي او ژبني

تعصبات راوپاروي او د دغو راپارېدنو له لارې خپل غير قانوني او يو ګونديز محدود حکومت ته دوام ورکړي.

نبي مصداق: نو ستاسې په فکر دغه ولايتونه چې له تاجکستان سره په سرحد کې واقع دي، خو د جمعيت او شورای نظار په لاس کې دي، نو دغه چريکان چې له دغه ځايه لېږل کېږي، د دې هدف دا دی چې د ملل متحد هلې ځلې شنډې کړي.؟

پروفيسور امين: لکه څنګه چې تاسې ته معلومه ده، د افغانستان د خلکو د لوی اکثريت په ملاتړ په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د سولې هڅې روانې دي او په دې حساسه مرحله کې د افغانستان له خاورې څخه د تاجکستان په سرحدونو او افغانستان ته د راغلو مهاجرو له خوا د جګړو شروع کول او روسان راپارول د ملګرو ملتونو د هڅو د ناکامی لپاره يوه هڅه ده او زه فکر کوم دا به د جمعيت د مشرانو يوه نوې پلمه وي. د ځينو افغاني، سياسي مبصرينو له قوله، وايي چې تخار، کندوز او بدخشان د جمعيت په لاس کې دي او په کندوز کې د تاجکستان د حکومت مخالفين روزل کېږي او له دغه ځايه دغه روزل شوي کسان تاجکستان ته لېږل کېږي او همدغه کسان د افغانستان او تاجکستان په پولو کې جګړې کوي. همدغه افغانان چې دلته ما ورسره خبرې کړې دي، د دوی له نظره د جمعيت مشران غواړي چې د دغو جګړو په وجه روسان راوپاروي او د افغانستان په پولو او ښارونو بمبارۍ ته شدت ورکړي او د دغو بمباريو د شدت له امله د جمعيت مشران دا هم غواړي چې د افغانانو او نړۍ پام د افغانانو د خپلې کشالې د حل پر ځای د روسانو او افغانانو ترمنځ د يوه نوي مصنوعي جنګپه پلمه بلې خواته وګرځوي. د افغانانو لوی اکثريت اوس د هر چا په نورو تکتيکونو او نيتونو ډېر ښه پوهېږي او دا اوس ډېره مشکله ده چې افغانان دې په يوه او بله پلمه

وغولول شـــي. ټول افغانان اوس د جمعیت له مشـــرانو څنې په ټینګه غواړي چې دوی دې د ملګروملتونو د ســـولې د هیئت د ســـولې فورموله ومني او افغانان دې په خپله د یوه حکومت جوړولو ته پرېږدي.

# په کابل کې روان جنګ د افغانانو نه دی، بلکې له بهره پر افغانانو تپل شوی دی

دا مرکه د (وفا) جریدې د لومړي کال په (۱۷)مه ګڼه کې د (۱۳۷۱ل)کال د اسد میاشتې پر (۲۵)مه نېټه خپره شوې ده.

څو ورځې دمخه د افغان منورینو یوه ډله د ازاد افغانستان د لیکوالو د ټولنې مشر پروفیسور عبدالرسول امین په مشرۍ، د پاکستان د پیپلز پارټۍ له مشرې محترمې بېنظیر بوټو سره په اسلام اباد کې ولیدل او د افغانستان د مسایلو په باب یې ورسره خبرې وکړې. د وفا جرید د موضوع د اهمیت له مخې له پروفیسور امین سره په دې ارتباط مرکه وکړه، چې د وطنوالو د خبرتیا په منظور په لاندې ډول وړاندې کېږي:

په سر کې له پروفیسور امین څخه پوښتنه وشوه، چې ستاسې د ملاقات اصلي هدفت څه و؟

دوی په دې باب وویل: په اوسنیو شرایطو کې چې د افغانستان وضع هر څوک دقیقه څاري او واقعاً د هر افغان لپاره لویه صدمه ده، موږ هم داسې فیصله وکړه چې د پاکستان هغه مشران چې د افغانستان له مسلې سره مستقیم یا نامستقیم ارتباط لري او د افغانستان په مسله کې څه ویلی او څه کولی شي، ملاقات وکړو. موږ په دې برخه کې څه موده مخکې یو مکتوب لیږلی و، چې د پاکستان له صدراعظم محترم نوازشریف سره په دې مسله خبرې وکړو، تراوسه پورې هغه موږ ته ځواب نه دی راکړی. همدغه شان موږ له محترمې بېنظیر بوټو سره، چې د مخالف ګوند مشره ده، د پاکستان پخوانۍ صدراعظمه ده او په پاکستان کې ولسي قوت لري، له دې څخه موږ

د ملاقات هیله کړې وه. د اګست د میاشتې پر لسمه نېټه یې موږ ته وخت راکړ، چې له هغې سره موږ په اسلام اباد کې په پارلمان کې ورسره وګورو. په دې ملاقات کې زموږ له خوا: زه، حکیم تنیوال، اریوبي صاحب او حاجي داود شامل وو. د هغوی له خوا خپله محترمه بېنظیر بوټو، د دوی مور نصرت بوټو او اعجاز ګیلاني چې پخوا د قانون وزیر و، شامل وو. همدارنګه د پښتونخوا قومي پارټۍ مشر افضل خان لالا هم په دې ملاقات کې تشریف درلود. محترمې بېنظیر بوټو هم دا علاقه درلوده چې د افغانستان په اوسنۍ وضع باندې ځان پوه کړي. په افغانستان کې چې کومه وضعه روانه ده، دا هر چاته معلومه ده، چې به کابل کې خلک په وینو لمبېږي، کورونه خرابېږي، ماشومان، معصومان، نر او ښځې په کې مري، نو دا دوی ته هم معلومه وه او هغه برخه چې موږ ته معلومات و، هغه موږ په ډېر تفصیل ورته بیان کړل. د هغوی له خوا یو سوال دا مطرح شو، چې په کابل کې دا اوسني جنګونه نو ولې؟ زموږ له خوا چې څه ورته تشریح شول هغه دا و چې! د دې جنګونو اساسي علت له بهره تپل شوې ایډیالوژیکانې او په بهر کې جوړ شوي ګوندونه دي. که دوستم دی او که د دوستم ملګري دي، دوی د کمونستي رژیم بقایا دي. اته ګروپه په ایران کې جوړ شوي او اووه ګروپونه په پاکستان کې جوړ شوي دي او دغه درې قواوې چې اوس په افغانستان کې موجودې دي، دوی د افغانستان او افغانانو د ګټو پر ځای د خارجي ګټو لپاره جنګېږي. خلاصه دا چې دا چنګ چې به کابل کې روان دی، دا د افغانانو جنګ نه دی، بلکې به بهره پر افغانانو تپل شوی جنګ دی. په څوارلسو کلونو کې خلق او پرچم یوه کمونستي ایډیالوژي راواخیسته، یو کمونستي ګوند یې ورته جوړ کړ، دا واضح خبره ده چې KGB ورته جوړ کړی و، د دوی د ایډیالوژۍ چې څوک ملګري نه وو، نو دوی هغه خلک خپل طبقاتي دښمنان وګڼل، خبره

دا وه چې هر شـــوروي ته خلقیانو او پرچمیانو ((ملګری)) یا ((رفیق)) وایه، لیکن په مقابل کې همدغو خارجي نوکرانو ډېر اصـــیل افغانان د دښـــمنانو په نامه وژل. دغه شکل چې لوړ توضیح شو، دا له بهره شروع شوی یو حرکت و، له دې خوا چې د افغانستان خلکو جهاد شروع کړ، دا جهاد په افغانستان کې خود به خودي شـــروع شـــو، په هغه وخت کې دا ګوندونه نه وو. د افغانستان ولس دا جهاد شروع کړ.

په کابل پوهنتون کې چې څومره استادان، شاګردان او تعلیمیافته وو، زیاتره په زندانونو کې وو. ما ورته د خپل زندان کیســـه وکړه، کله چې زه په زندان کې وم، هلته مې داســـې خلک ډېر لږ پیداکړل چې هغه دې په کوم ګوند کې وي، په هغو زندانیانو کې خانان وو، جنرالان وو، عالمان وو. یانې دا د کمونیزم او ګوند خلاف یو خود به خودي حرکت و، چې په افغانستان کې شروع شو. تر هغې وروسته باندني قوتونه په کې رامنځته شول، یانې باندني قوتونو په عوض د دې چې داســـې یو ګوند ته اجازه ورکړي، چې د افغانانو په مشـــکلاتو او پرابلمونو پوه وي، خو دغو باندنیو قوتونو د خپلوګټو لپاره داســـې ګوندونه جوړ کړل، چې د افغانانو دګټو پر ځای هغوی د پردیو د ګټو ســـاتنه وکړي. دغه شکل له ایران څخه هم راغی، له سعودي عربستان څخه هم راغی او له پاکستان څخه هم. تر دې بحث وروسته بېنظیر بوټو پوښتنه وکړه، چې څنګه کېدای شي چې دا مسله حل شي؟

موږ ورته په ځواب کې وویل: تر هغه وخته پورې چې ایډیالوژۍ وي، چې موږ ترې ډېره ترخه تجربه لرو، تر څو چې د ګوند ســـاختمان وي، د ګوند دا نتیجه وه، چې که یو سړی په ګوند کې و، که هغه به پوهېده یا نه پوهېده، امتیاز به هغه ته ورکول کېده. د کمونســـتانو په دوره کې موږ ولیدل چې د ګوند هغه ملګري چې هغه به ډېر نالایقه، ډېر بېســـواده و، نو پر هغو باندې به ډېره اتکا

کېدله، ځکه چې هغه به وفاداري ښه کولای شوه او هغه ګوندي چې به پوه و، پر هغو به حتی په خپل ګوندکې هم حســـاب نه کېده. کله چې امتیاز ګوند ته ورکوي، نو دا دا معنا لري چې د ګوند نه بهر چې څومره خلک دي، هغه بهر پاتې کېږي، هغوی په ایډیالوژیکي لحاظ د دښـــمن په نامه اعلانوي او په ګوندي لحاظ باندې ولوکه متخصـص هم وي، له کاره یې اوباسـي او پرځای یې یو نالایقه کېنوي. موږ دا هم ورته وویل چې د افغانستان خلکو په تاریخي لحاظ یو له بل سـره ژوندکړی دی او د دې هېواد ټولو قومونو ځان ته افغان ویلي دي. په کابل کې د کمونستي رژیم په راتګ او د KGB له پلان سره سم تر ټولو دمخه دا هڅه وشوه، چې دغه سره ورونه قومونه سره بېل کړي او بیا یې ایل کړي، نو یې ځکـه د دوی ترمنځ د ملیتونو مســـلـه رامنځته کړه، د ملیتونو وزارت یې ورته جوړکړ، داکار کمونستانو ځکه کاوه چې که وکولای شي، ملت ټوټه کړي او دوی پرې حکومت وکړي. دغه راز په افغانسـتان کې د سني او شیعه مسله هم نه وه مطرح، سنیانو او شیعه ګانو په دې هېوادکې د نهایت ورورۍ په فضـــا کې ســـره ژوندکړی دی، د افغانســـتان د دراني شـهزادګانو میندې اکثره شیعه وې، که افغانانو درانیان سـرداران بلل، دغسـې یې قزلباشـیانو ته هم دا ډول القاب ورکړي وو. د یادولو وړ ده، چې دا قومي او مذهبي تفرقې په افغانســـتان کې د ځینو ګوندونو او خارجي لاســـوهنو پر اسـاس منځته راغلي دي، ملت له دې ډول نظریو سـره ملګری نه دی، د دې حوزې ټول هېوادونه باید زیار وباسـي چې قومي او مذهبي مسـایل د تفاهم له لارې حل کړي. که څوک په افغانستان کې قومي او مذهبي تفرقو ته لمن وهي او دا جنګونه تېزوي، نو باور وکړئ، چې دا جنګ به منځنۍ اســـیا، ایران، پاکســـتان، هند او آن تر اندونیزیا پورې اوږد شـــي او کلونه کلونه به دوام وکړي. لـه دې څوارلس کلونو راپـه دېخوا لـه دې پرابلم ســـره زموږ ولس

مخامخ دی. نو د حل لاره يې داسې کېدای شي چې افغانستان په ټولو خلکو کې، که هغه پښتانه، که تاجک، که هزاره، که ازبک، که ترکمن، که بلوڅ دي او نور، هغوی د افغانســتان په ازادۍ کې قرباني ورکړې ده. دغه ټول اقوام خپل قوماندانان لري، مشــران لري، عالمان، روحانيون لري او خپل تعليميافته ګان لري: (( دا خلک ټول بايد سره راټول شي او د افغانستان د مشرتوب لپاره خپله فيصــله وکړي، نو دا چې څوک ورته په ســر کې ودرېږي او ورته ووايي چې زه ستاسو مشر يم او ما پسې راشئ، له دې خبرې څخه لوی سوال دا پيداکېږي، دا مشران چې له دريو خواوو څخه رادمخه شوي دي، دوی ته چا رايه ورکړې ده؟ په ســـياســـت کې چې څوک مشـــرتوب کوي، هغه بايد مشــروعيت پيداکړي، مشــروعيت داسې ترلاســه کېږي، چې خلک ورته رايه ورکړي، دا چې څوک تاله ټانک درکړي، توپ، راکټ او ټوپک درکړي او ته د هغه په ټانک سپور شې او په ارګ ننوځې او چيغې کړې چې دا دی راغلم، نو دا عمل چاته مشـــروعيت نه ورکوي. او ته له هغه ځايه فرمانونه او قوانين او نور صادر کړې، دا ټول شيان خلق او پرچم په افغانستان کې وکړل، زموږ بدبختي دا ده چې د دغو څوارلس کلونو په دوران کې موږ د افغانســـتان په خپله وضـعه ځان پوه نه کړ، او د افغانسـتان په اجتماعي او رواني شـرايطو مو ځان پوه نه کړ.

دا ټول هغه مسايل و چې پر هغو موږ له بېنظير بوټو سره خبرې وکړې او موږ ترېنه هيله وکړه چې د افغانسـتان مسـله يوازې نه سـتاسې ګوند او نه سـتاسې حکومت حل کولای شي، دا مسله که حل کېږي، نو ستاسو او د حکومت په مشــترکه مرســته به حل کېږي. افغانســتان د جرګو وطن دی او افغانانو د تل لپاره خپلې ټولې ملي او بين المللي کشـــالې د لويو جرګو له لارې حل کړې دي. اوس د افغانستان ستونزې د دې حکم کوي چې د افغانستان د کشالې د

حل لپاره دې د ملګرو ملتونو لوی سکرتر د امنیت د شورا له لارې مداخله وکړي، لویه جرګه دې راوغواړي او دغه لویه جرګه حق لري چې په ازاده توګه خپل مشـــرتوب وټاکي. د افغانانو عنعنوي لویه جرګه د یو فرد یا ګوند یا د خارجیانو، انحصـــــار نه مني. افغانان په دې پوهېږي چې لویې جرګې ته څوک ولېږي. افغانانو په خلاصـو سترګو ورته کتل، چې د راولپنډۍ شـورا د خارجي مداخلې په وجه په پاکستان کې د اوو تنظیمونو په انحصار کې ورکړل شوه. اوو تنظیمونو یوازې خپل وفادار ګوندي غړي دغې شورا ته ولېږل او د افغانستان پراخه پرګنو او اقشارو ته حق ور نه کړلای شو.

موږ له دغې تحمیل شـوې او انحصـاري شـورا ناکامي په خپلو سـترګو ولیده، چې د افغانانو یو پرابلم یې هم حل نه کړلای شـــو. معکوس یې نور پرابلمونه هم پیداکړل. تر څو چې خپلواکه او ازاده لویه جرګه دایره نه شـــي، تر هغې د افغانســـــتان مســـــله حل نه مومي. موږ ورته وویل چې د پاکســـــتان خلکو د افغانستان له خلکو سره اقتصادي مرسته کړې ده، دلته که بمونه چاودلې دي، په هغو کې پاکسـتانیان هم مړه دي، سـتاسـې په سـرحدونو باندې بمباري هم شوې ده، یانې پاکستان هر نوع تکلیف له افغانانو سره تېر کړی دی، لیکن یو شي ته باید ستاسې حکومت او تاسې متوجه اوسئ، چې افغانان د دوستۍ او نوکرۍ ترمنځ ډېر فرق کوي. افغانان درسره دوستۍ کې دوزخ ته ځي، خو په نوکرۍ کې جنت ته هم درســــره نه ځي، موږ ورته دا وویل: اوس دا وخت رســــېدلی دی، چې د افغانانو او پاکســـــتان ترمنځ چې کومه تاریخي دوســــتي جوړه شـوې، د ده دا دوسـتي باید د دوسـتۍ په شـکل پاتې شـي او هېڅوک باید داکوښـښ ونه کړي، چې پر افغانسـتان یو نوکر حکومت وتپي. د افغانانو اجتماعي او روحي ســاختمان داســې دی، چې دوی د دیکتاتورۍ او خارجي

اجنډان نه مني، بین المللي ترینډ هم د ملکونو او ولســـونو د ازادۍ پر لور روان دی.

موږ له پروفیســور امین څخه وغوښــتل، چې د افغانســتان د مســـلې په اړه د دوی د ګوند د موقف په باب هم موږ ته څه ووایي، ایا پیپلز پارټي د دې مسلې پر وړاندې څه موقف لري؟

پروفیســـور امین زیاته کړه: د هغې له خبرو داســـې معلومېدله چې د هغې د موقف یوه برخه هغه وه، چې د هغې خپل مشکلات و او هغې خپل مشکلات موږ ته وویل او بله برخه هغه ده، چې اوس په موک موقف کې ده؟ هغې وویل چې زموږ پارټي یوه مســـلمانه پارټي ده، زموږ پارټي په ازادۍ باندې عقیده لري، زموږ پارټي پر پارلمان عقیده لري. په انتخاباتو عقیده لري. دې واضح وویل: کوم ګوند چې د خپل ولس پر ازادۍ عقیده لري، هېڅکله به هم هلې ځلې ونه کړي، چې نور ولســـونه دې غلامان وي. کوم خلک چې د خپلو خلکو پر غلامۍ عقیده لري، هغه هېڅکله دا نه شي کولای، چې نورو خلکو ته ازادي ورکړي.

پوښتنه وشوه: بېنظیر د افغانستان د روانو مسلو په اړه د پاکستان له حکومت سره هم خبرې کوي او که څنګه؟

ایا دا مسله هم ستاسو په خبرو کې مطرح شوه او که نه؟

پروفیسور امین په دې ارتباط زیاته کړه: له محترمې بېنظیر بوټو سره چې موږ پر دغو مســایلو خبرې کولې، نوګیلاني صــاحب یې په څنګ کې ناســت و او ټول یادښتونه هغه اخیستل. هغې وویل، چې د افغانستان د روانې وضعې او د دغو جنګونو په خصـــوص کې به موږ له لازمو مجاربو څخه د پاکســـتان له

حکومت سره تماس ونیسو او په خاص ډول به د پاکستان خارجه وزارت ته مورږ یو یاداشت ورکړو.

موږ له پروفیسور امین څخه وپوښتل، چې د افغانستان د مسایلو د حل لپاره د بېنظیر بوټو خپل نظر څنګه و؟

پروفیسور امین په دې باب وویل: دا خو د پاکستان یوه مشهوره او مسوله ښځه ده او یوه منل شوې سیاستمداره ده، په دغسې شرایطو کې هغه خپل نظر په قاطع ډول نه وایي، چې دغسې دې وشي. لیکن یوه خبره چې هغې وکړه، چې دا مهمه خبره وه، هغې وویل: چې د دې حوزې اینده زه داسې ګورم چې په پاکستان، افغانستان، مرکزي اسیا، ایران او ترکیه کې هغه قوتونه چې هغه په ازادۍ، ولسواکۍ او خلکو ته د حق ورکولو معتقد وي، دا به یو طرف ته کېږي او هغه قوتونه چې د دې کارونو پر ضد وي هغه به بلې خواته کېږي. هغې دا وویل چې دغه اوسنی سیاسي ترینډ دا په یو ملک کې هم محدود نه پاتې کېږي او ګاونډیان ضرور یو پر بل تاثیر کوي، دا اغېز په اسلامي ټولنو کې حتمي یو پر بل موجود وي او هغه ضد ترینډونه چې دي، حتماً به یو پر بل تاثیر ولري. هغې دا وویل چې کېدای شي، چې دغه قوتونه چې په پاکستان کې دي، په افغانستان کې دي، په ایران کې دي، په مرکزي اسیا کې دي، داسې وخت به راځي چې دوی به یو بل ته اوږه ورکوي. او د یو او بل د اوږې ورکولو پرته بله چاره هم نه لري.

دویمه خبره هغې داسې وکړه، چې پس له دې زموږ په حوزه کې باید حکومتونه د جنګ جګړو پر ځای د خلکو رایې ته رجوع وکړي، ځکه چې رایې دوی ته مشروعیت ورکوي. وسلې او یا وژونکي راکټونه قوت نه دی، لکه چې وایي، قوت حق دی. دې وویل: چې زموږ ګوند عقیده لري، چې

**حق اصـــلي قـدرت دی او بس. هغې وويـل چې هره ټولنه کې بـايـد خلـک سياسي، اقتصادي، کلتوري او اجتماعي او مذهبي ازادي ولري، که دغه ازادي و نه لري او ازادي تربنه د ایډیالوژۍ او ګوند په نامه اخيســـتل کيږي، نو دا جنجالونه نه ختميږي.**

# تعصبهای قومی، نژادی و زبانی خطری به وحدت ملی و تمامیت ارضی افغانستان

دا لیکنه د (وفا) جریدې د شپږم کال په (۲۱-۲٤)مې گڼه کې د (۱۳۷٦ل) کال د چنگاښ میاشتې پر (۹)مه نېټه خپره شوې ده.

**تعصبهای بی مفهوم را در افغانستان کیها و چرا دامن زدند؟**

**خوانندگان گرامی!**

افغانستان در جریان نزده سال اخیر تباهیها و بربادیهای بس بزرگی دید؛ افغانها با یک تراژیدی ملی مواجه گشتند، نهادهای سیاسی، اقتصادی، اداری، فرهنگی و نظامی افغانستان همه برباد شدند. روابط اجتماعی و عنعنه یی جامعه افغانی از هم کمبخت. تعصبهای گوناگون قومی، زبانی، نژادی، مذهبی و منطقه یی دامنگیر افغانها شدند، اما با انهم قشر چیزفهم افغان به عوامل بربادی کشور شان و همچنان بیماری تعصبها، که وجود افغانستان و هویت ملی-سیاسی افغانها را به نابودی مواجه ساخته است. کمتر توجه نشان داده اند.

به منظور جلب توجه، قشر درسخوانده و موثر افغان (که تحلیل غیر جانبدارانه و واقعی جامعه شان را به پیش کشیده میتوانند) به عواقب خطرناک تعصبهای بی جا و بی مفهوم اتحادیه نویسندگان افغانستان ازاد سال پار نامه یی را در جریده وفا به نشر سپرد، که متن ان جنین بود:

افغانان عزیز!

به همه شما اشکار است که همه اقوام ساکن درکشور مانند: پښتونها، تاجکها، ازبکها، ترکمنها، بلوچها، نورستانیها، پشه ییهای و همینسان گروهای مذهبی اهل تسنن و تشیع از سده ها به اینسو در روستاها، دهکده ها و شهرهای افغانستان به حیث افغانهای وطندوست و مسلمان با هم یکجا زیسته اند و اکنون نیز میزیند.

اقوام ساکن درکشور با هم رشته های خویشاوندی استوار ساخته اند و همیشه در غمها و رنجهای همدگر شان فعالانه سهم گرفته اند، این گونه روابط به گونه گسست ناپذیر تاهنوز در بین مردم ما مشاهده میشوند.

به فضل خداوند بزرگ و کاردانی دانش و گزینش روشهای خردمندانه بزرگان قومی و علمای دینی و مذهبی ما، در طول تاریخ پر افتخارکشور رخداد نامیمونی برسر مسایل مذهبی، قومی، زبانی و منطقه یی در بین افغانها به وقوع نه پیوسته است. رخدادی راکه باعث جنگها بین اقوام و فرق مذهبی شده باشد، سراغ نمیتوانست کرد.

تاریخ پر شکوه کشور گواه این واقعیت است که تمام اقوام ساکن در شکور در برابر هرگونه انحصار و دکتاتوری شانه با شانه رزمیده اند و تمام اقوام یک جایی و با همکاری دوستانه شان در برابر رژیمهای دست نشانده و نیروهای متجاوز اجنبی به پاخاسته اند.

افغانهای میهندوست و مسلمان در سول تاریخ در دفاع از تمامیت ارضی و ازادی کشور خود قربانیهای فراوان مالی و جانی داده اند و میدهند. بهترین نمونه این گونه فداکاریها و جانبازیها جهاد و مقاومت مشترک تمام اقوام افغان در برابر دکتاتوری د انحصار کمونستی و تجاوز نیروهای ارتش سرخ شوروی بود.

**به شما اشکار است که دوستان و دشمنان افغانستان همسان و پیوسته تلاش میورزند تا در میان اقوام با هم برادر افغان تعصـــبهای قومی، نژادی، مذهبی، ایدیولوژیک و گروهی را دامن زنند. درزهای را در بین شـــان ایجادکنند و با از هم و با از هم جداکردن شان بر انها حکمروایی کنند.**

**کشـور های بیگانه برای پیاده نمودن سیاسـتها و برنامه های نادرسـت شـان شـماری از افغانها را اسـتخدام کرده اند و این اسـتخدام شـده گان انگشـت شـمار تلاش میورزند تا در بین اقوام با هم برادر افغان اتش تعصـبهای زبانی، منطقه یی، مذهبی، ایدیولوژیک و گرهی با فروزند و اقوام باهم برادر افغان را زیر تاثیر سـوء تبلیغ شـان قرار دهند و اتش تعصـبها را شـغله ور تر سـازند. میگویند درمان هر بیماری در افغاز اســـان مینماید، اگر در اغاز به درمان بیماری پرداخشـــته نشـــود ویروســـهای بیماری در وجود پراگنده میشـــوند نیروهای دفاعی بدن راکمزور میسازد و بالاخره بیمار را از بین میبرد.**

**تا هم اکنون درکشـور ما مکروبهای تعصـب و بدبینی در مراحل ابتدایی شـان قرار دارند و تا هنوز به اقوام و توده های وسیع جامعه سرایت نکرده اند. در این حالت ابتدایی جلوگیری از انتشار مکروبهای این بیماری اجتماعی دشوار به نظر نمیرسد، اما اگر یکبار ویروسهای آن به توده های وسیع مردم سرایت کردند، شـــکل واگیر و بایی را به خود خواهدگرفت. از عواقب وخیم این بیماری اجتماعی هر افغان باشعور خوبتر اطلاع دارد.**

**اگر فرزندان دلســـوز افغان و افغانهای واقعی ســـر از امروز برای جلوگیری تعصـبها، بدبینیها و گرایشـهای منفی گامهای عملی برندارند و مکروبهای این بیمـاری اجتمـاعی را بـه فزونی و انتشـــار بگـذارنـد در نتیجـه چنین غفلـت نابخشوندی آن روز دور نخواهد بودکه این وبا از وارسی خارج خواهد شد**

و همه افغانها به بیماری خطرناک تعصـــب و بدبینی مبتلا خواهند گردید، در آن صــورت هیچکســی توان علاج آن رانخواهد داشــت، حضــرت ســعدی میفرماید:

سرچشمه باید گرفتن به میل

چه پرشد نشاید گذشتن به فیل

بایستی یاداور شد که جلوگیری این بیماری خطرناک اجتماعی از قدرت یک شـخص، یک موسـسـه و یک گروه بالاتر اسـت. جلوگیری این بیماری واگیر نیاز به کار و فعالیت دســـته جمعی همه افغانهای بادرک دارد. بنا برهمین نیازمندی اتحادیه نویسنده گان افغانستان از همه افغانهای با احساس و دراک صــمیمانه ارزو میبرد که غرض جلوگیری از انتشــار تعصــب، بدبینی و نفرت بین اقوام باهم برادر به مجادله مشــترک بپردازند و پیش از پیش اقوام و توده های وسیع ملت افغان را از این بیماری وقایه نمایند.

اتحادیه نویســندگان افغانســتان ازاد از همه افغانهای بادرد صــمیمانه تقاضــا میکندکه در این راســتا به تلاشــهای همه جانبه علمی و عملی دســت یازند. کنفرانســـهای دایر نمایند با رســـانه های گروهی به گفت و شـــنود بپردازند، نبشته ها تهیه ببنند، جوانب گوناگون این بیماری را بررسی نمایند وبه منظور اگاهی مردم افغانستان غرض نشر به جریده وفا بفرستند. (یادداشت: جریده وفا برنامه ویژه نشــراتی دارد، بر اســاس این برنامه جریده از تاخت و تاز بر فرد، افراد، قوم و گروهای زبانی، مذهبی، حزبی و تنظیمی جداً پرهیز میکند.) از همیهنان عزیز و گرامی احترامانه امیداوریم که با نظرداشـــت به برنامه نشــراتی جریده وفا به پرســشــهای زیرین ما جواب علیم ارائیه فرموده برما منت گذارند.

ملی افغانها را اعاده نماید و مرزهای افغانســتان را به مرزهای صــلح و همکاری مبدل سازد.

افغانها میپذیرند که مداخله گران برای پذیرش یک ((حکومت دوست)) از ته دل اماده نیســتند و به میان امدن یک ((حکومت دوســت)) در افغانســتان مشکلات فراوان دارد، اما بایستی پذیرفت که هر مشکلی راه حلی نیز دارد و مشکلات ایجاد شده را همین انسانها از بین میبردارند و این کار را اکنون هم میکنند و در اینده نیز خواهند کرد.

افغانها میفهمند که کشــورهای همســایه در دوران جهاد با انها کمکها کرده اند. به شــمار زیادی از افغانها در کشــورهای شــان پناه داده اند و در ازادی افغانستان نقشی از خود به جا گذاشته اند، افغانها با همسایه گان شان نه اراده مخالفت را دارند، نه هم قوت مخالف و نه مخالت به سود افغانها است.

کشور افغانها ویران شده است و این کشور جنگدیده نیازی به بازسازی دارد و این کار بدون همکاری همســایه گان ناشــدنی و غیر ممکن به نظر میرســد. بار دیگر تکرار میشــود که نه افغانها اراده مخالفت دارند و نه مخالفت با همسایه گان به سود افغانها است.

## نتیجه گیری:

با تاسف گفت که مداخله گران خارجی افغانها را از یک زعامت واحد محروم نگه داشــته اند. نبود این زعامت واحد مانع عمده بر ســر راه تشــکیل یک حکومت نیرومند مرکزی میشــود و عدم وجود حکومت مســتحکم مرکزی باعث نابه سامانیها شده است و در نتیجه همین نابه سامانی و پریشان حالی داســتان غم انگیز افغانها جریان دارد. تا زمانی مداخله های خارجی قطع

نشــوند و زعامت ملی به میان نه اید و زعامت ملی برای دوره موقت حکوم دوســت را تهداب گذاری نکند تا ان زمان این نابه ســامانی، پریشــانی حالی موجود خواهد بود و در نتیجه آن این تراژیدی ملی و انفرادی کماکان ادامه خواهد داشت.

افغانها باور کامل دارند (از این بخش محمود مســتیری بیچاره هیچ اطلاعی کسـب نکرد، اگر میکرد باز هم خواب هیبتناک میدید و ناپدید مگشــت) که این گونه حکومت دوســت را جز از پادشــاه ســابق شــخص دیگری تهداب گذاری کرده نمیتواند و نه توان استحکام ان را دارد.

علل این واقعیت افتابی، خود روشـن اند، وجود شـاه سـابق حیثیت موسـسه عنعنه یی و ملی افغانها را دارا میباشــد. در ســیاســت داخلی و خارجی افغانســتان تجربه چهل ســاله دارد، از ســاختار اجتماعی و روانی مردمان افغانســتان از آگاهی کامل برخوردار اســت، نه حزبی دارد و نه هم انحصــار ایدیولوژیکی، از نگاه قومی به پشتونها تعلق دارد اما زبان او دری است، تنها او به حیث یک ریش سفید میتواند افغانستان به جا ایستاده را به سوی صلح دایمی، دموکراســی، اســتحکام، برادری بین اقوام افغـانی و همکـاری بـا کشـورهای منطقه و همسایه ها رهنمونی کند، زیرا او دوستی را میپذیرد ولی اماده نوکری نیست.

با وصـف این که شـماری از ((کبوتران سـفید و بازان سـفید)) حامیان زعامت ملی شاه سابق و طرفداران حکومت دوست را عناصر خطرناکتر از کمونستها قلمداد کرده اند، و کشــته اند و اکنون نیز به این عملیه ادامه میدهند، اما با انهم اینها راه حلی را به قضیه کشور دریافت کرده نمیتوانند.

البته محمود مستیری آگاهی دارد که یا ((بازان سفید)) از منافع و سیاستهای متضاد شان میگذرند و همگون به مشخصات ملی و اجتماعی افغانها، منافع ملی افغانها را میپذیرند و به حل سیاسی ملل متحد گردن مینهند و یا اینکه ایالات متحده امریکا مجبور خواهد شد انچه را خودکشت کرده است، آن را بدرود.

میگویند: شخصی ذهناً قبول کرده بود که او دانهء جواری است و مرغ آن را میخورد، او که مرغ را میدید به لرزه درمیامد. دوکتور پیش روی او مرغ را حلال کرد، پخت و خورد، به مریض گفت: ((مرغ انسان را خورده نمیتواند بالمقابل انسان مرغ را میخورد، تو دانهء جواری نیستی، تو انسان استی و مرغ ترا خورده نمیتواند.))

مریض با شنیدن سخنان دوکتور خوشنود گردید ور اهی شد، اما از دروازه شفاخانه دوباره برگشت و به دوکتور گفت: (( دوکتور جان! مرا فهماندی که من دانه جواری نیستم، ولی مرغ را چطور خواهی فهماند که من انسان استم و دانه جواری نیستم)).

محمود مستیری بیچاره تنها این سخن را نمیفهمد که ((کبوتران سفید و بازان سفید)) را چه سان بفهمانند و یا اینکه چه وقت ایالات متحده امریکا دستارش را به سرش میبندد و به عصا چوبش دست میبرد و همدستان دیگر او پشت سرش قطار ایستاده میشوند و به لهجه Cow boy میگوید: کفایت کرد دیگر بس است Enough is enough .

# اعلامیه اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد

ما همه بررسیهای مربوط به کشور را با درنظرداشت به اساسات دین مقدس اسلام، ساختار اجتماعی مردم افغانستان، ارزشهای ملی و روان مردم کشور خود اراسته ایم؛ هیچگاه بر مسایل دشواریهای کشور بر اساس نبشته های دیگران فکر نکرده ایم. اتحادیه ما از نخستین روزهای کارش بدین باور بود، که در پهلوی پیشبرد مبارزه و جهاد علیه مهاجمین، بایست در باره اینده کشور، نگاه داشت تمامیت ارضی، استقلال سیاسی و طرز حکومت اینده، جلوگیری از خلای قدرت و بسی مسایل دیگری که جوامع انسانی را تا سرحد نابودی مواجه به دشواریها میسازد، خردمندانه اندیشید. مسایل مربوط به کشور خود را بدون هرگونه مداخله و نفوذ اجنبی خود مان بر اساس روشهای پذیرفته سنتی ملی حل و فصل باید کرد.

اتحادیه ما باورمند بود که نخستین دشواری مسایل مربوط به کشور ما، که همیش در خم و پیچ سیاستهای کشورهای منطقه و ابر قدرتها راهش را گم میکرده است از نبود زعامت واحد ملی ناشی میشود، زعامتی که قابل قبول به همه اقشار و قبایل و اقوام افغانستان باشد، مردم به شخصیت او اعتماد کنند؛ ایشان را بشناسند و اعتقاد راستین به پاکیزه گی، میهندوستی و مردم پروری او داشته باشند. به نظر اتحادیه ما تمام این مشخصات و ویژه گیها در

**شخصیت پادشاه سابق افغانستان اعلیحضرت محمد ظاهرشاه سراغ میتواند شد. ایشان شایسته‌گی زعامت ملی افغانها را دارا بودند و اکنون نیز دارند.**

**اتحادیه ما طی ده سال فعالیت خود همواره و پیهم مساله زعامت ملی را در تحلیلهایش مطرح نموده، این زعامت را در وجود اعلیحضرت محمد ظاهرشاه وجاهت ملی و بین المللی داشته. حیثیت موسسه یی را دارد، که تمام باشنده‌گان افغانستان در وجودش، موجودیت خود را درکشور شان حس کرده میتوانند. از مهربانیها، دلسوزیهای اعلیحضرت و همینسان از ارامش، امنیت، ازادیها و احترام به‌کرامت انسانی و حقوق بشری دوران سلطنت پر میمنت شان خاطره های فراموش ناشدنی دارند. افزون بر ان اعلیحضرت خود شان نیز بالاثر عشق و علاقه یی‌که باکشور و مردم خود دارند، طی دوران جهاد بر حق از موقف ملت مجاهد افغانستان و مجاهدین افغانستان پیرسته پشتیبانی سیاسی نموده اند و از هیچ‌گونه تلاش ممکن در زمینه دریغ نه ورزیده اند. با بروز جنگهای خانمانسوز سه سال اخیر فعالیتهای شان را سریعتر کردند؛ پیشنهادی را برای خاتمه جگ و برون رفت‌کشور از بحران طرحریزی کردندکه با استقبال اکثریت قاطع مردم افغانستان و حلقات سیاسی جهان مواجه گردید.**

**اکنون‌که با سفر هیئت خاص اعلیحضرت به منطقه‌گامهای نخستین اما استوار در ارتباط فعالیتهای عملی اعلیحضرت در زمینه برداشته شده است. امیدوار استیم‌که این پروسه با دلگرمی پی چویی خواهد شد و مساعی پادشاه سابق افغانستان در راه استقرار صلح و امنیت درکشور و اعاده حیثیت ملی و بین المللی افغانستان مثمر ثمر واقع خواهد گردید.**

استقبال گرم، صمیمانه و شایسته افغانها از هیئت اعلیحضرت گواهی میدهد که اعلیحضرت پادشاه سابق و نام گرامی شان هنوز هم در دلهای مردم حق شناس افغانستان جایگاهش را محفوظ نگه داشته است.

اتحادیه نویسنده گان افغانستان این گام نخستین را روزنه به سوی فرداهای روشن پنداشته از بارگاه ایزد متعال متمنی است که هر چه زودتر صلح و ارامش، قطع جنگ و برادرکشی به افغانستان برباد رفته به ارمغان بیاورد.

ما چنان که گفته امدیم به زعامت پادشاه سابق یقین کامل و استوار داریم و پشتیبانی بیدریغ خود را از پیشنهادها و فعالیتهای شان اعلام میدارم و به استعانت پروردگار یکتا با کار خسته گی ناپذیر در راه موفقیت آن خواهیم کوشید.

و من الله التوفیق

پروفیسور عبدالرسول امین

رئیس اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد

# د نولسمې پېړۍ په اواخرو او د شلمې په اوایلو کې استرالیا ته د تللیو افغانانو په باب ځینې نوي ټکي

| دا لیکنه د (وفا) جریدې د څلورم کال په (۲۹–۳۰) مې ګڼه کې د (۱۳۷٤ل) کال د زمري میاشتې پر (۲۵) مه نېټه خپره شوې ده. |
|---|

ډېر لږ افغانان په دې واقعیت خبر دي، چې له نولسمې پېړۍ نه د شلمې پېړۍ تر دېرشمو کلونو پورې پوره درې زره افغانان استرالیا ته راغلي دي او د استرالیا په ودانۍ او اقتصادي پرمختګ کې یې له حده زیات زحمتونه ګاللي دي. دلته د استرالیا تاریخپوهانو د دغو افغانانو د ژوند په ټولو اړخونو ژورې څېړنې کړې دي، کتابونه او مضمونونه یې ورباندې لیکلي دي او دغه لیکوالو د نولسمې او شلمې پېړیو افغانان د دې هېواد له تاریخ څخه نه جلاکېدونکې برخه ګڼي. د دې هېواد د تاریخپوهانو له جملې څخه د لیکوالې Christine stevens (کرستین ستوینز) د کتاب د سریزې د یوې برخې لنډ اقتباس د ذکر وړ دی. دغه لیکواله د خپل کتاب Tin mosques and chantown د سریزې په پای کې چې د هغه اثر په استرالیا کې د افغان کوچیانو بشپړ تاریخ ګڼل کېږي، لیکي: ((... دوی (افغانان) رښتیني قهرمانان وو. دوی یواځیني خلک وو چې د لومړي ځل لپاره د استرالیا د لویې وچې پراخه منځنۍ برخې ته ورننوتل او دغه پراخه برخه یې کشف کړه. دوی د دغې پراخې سیمې د کشف او رسېدو په لاره کې لویه کارنامه سرته رسولې ده. د دوی د زړوروتیا

او د دوی د بارورونکو اوښانو څخه پرته شاید چې د استرالیا د لویې وچې منځنۍ برخې ته د رسېدو، په دغه برخه باندې د اروپایانو د مېشته کېدو او د دغه سیمې د پرمختګ کارونو نور پنځوس کلونه هم اخیستي وای.

د استرالیا د اقتصاد بنسټ، مال څړونو او کانونو د افغان کوچیانو او د دوی د اوښانو په برکت وده وکړه او پراختیا یې ومونده. سره له دې هم د استرالیا تاریخ په نولسمه پېړۍ کې د افغان کوچیانو او د دوی د ترانسپورتي اوښانو خدمتونه هېر کړې دي او له یاده یې ویستلي دي. زما په نظر د استرالیا لپاره د افغانانو خدمتونه یو ملي پور دی او دغه ملي پور ته په تېره یوه پېړۍ او د یوې پېړۍ څخه په زیاته موده کې استرالیایانو پوره توجه نه ده کړې.))

په ۱۸۳۹م کال کې انګرېزانو د لومړي ځل لپاره پر افغانستان یرغل وکړ. په دې وخت کې د پېښور، بلوچستان او نږدې پرتې نورې سیمې هم په مستقیمه یا نامستقیمه توګه د افغانستان په قلمرو کې شاملې وې او انګرېزانو زیار وویست چې له سکانو څخه د پنجاب تر نیولو وروسته د افغانستان په شمول دغه ټولې سیمې د برتانوي هند تر ادارې لاندې راولي. څه وخت چې په لومړي افغان- انګلیس جنګ کې انګرېزانو ماتې وخوړله او شاه شجاع مړ کړلی شو، نو انګرېزان مجبور کړلای شول چې امیر دوست محمد خان د افغانستان د پاچا په توګه ومني او د دې سیمو واکمني امیر دوست محمد خان ته پرېږدي.

په ۱۸۶۳م کال کې امیر دوست محمد خان وفات شو او د ده تر مړینې وروسته د شهزادګانو ترمنځ کورنۍ جګړې پیل شوې. په ۱۸۸۰م کال کې امیر عبدالرحمن خان پاچا شو او د هغه په ۱۸۹۳م کال کې انګرېزانو سره د ډیورنډ معاهده لاسلیک کړه. په دې موده کې د استرالیا د لویې وچې په

جنوب کې د بحرالکاهل پر غاړه پرتې سیمې د انګرېزانو مستعمرې شوې وې او د دې سیمو اصلي اوسېدونکي استرالیایي بومي خلک یا د انګرېزانو سره د جګړو په نتیجه کې له منځه تللي وو او یا نورو سیمو ته تښتېدلي وو. په جنوب کې مېشت انګرېزانو هڅې کولې چې د دې لویې وچې منځنۍ، لویدیزې، شمالي او ختیځې سیمې کشف او بیا یې ترکنترول لاندې راولي. د ۱۸۴۰ م کال راهیسې څو ګروپونه د دغو سیمو د معلومولو په نیت ولېږل شول او د دې ګروپونو ټولې هڅې له ناکامۍ سره مخامخ شوې. د دې ناکامیو اصلي علت دا و چې د استرالیا پراخه منځنۍ سیمه وچ ډاګونه وو او د ګروپونو په دغو اوږدو سفرونو کې اسونو او غوایانو د لوږې او تندې مقاومت نه شو کولای. سره له دې چې د ۱۸۴۰ م کال راهیسې له عربو او هند څخه څو اوښان استرالیا ته په بېړیو کې راوستل شول، لاکن د دغو اوښانو څخه هم د ځینو عواملو په وجه په زړه پورې استفاده و نه کړلای شوه. په لومړي افغان–انګلیس جنګ کې George James landells (جارج جیمز لینډیلز) د انګرېزانو په پوځ کې لوژستیکي ماموریت درلود او د دغه ماموریت په وجه هغه د افغانانو او د افغانستان د ټولو سیمو د ترانسپورتي حیواناتو په باره کې پوره معلومات درلودل. د جګړې په پای کې هغه تقاوت شو او وروسته ورته د ختیځ هند کمپنۍ په استرالیا کې د اسونو د اخیستلو او هند ته د لېږلو دنده ورکړه. په ۱۸۵۸م کال کې د استرالیا د ملبورن Melbourne په ښار کې د جارج جیمز لینډلز پواسطه د افغانستان په سیمو کې د اوښانو د اخیستو او د افغانانو د راوستلو پرېکړه وشوه. په دې وخت کې لینډلز په لاهور کې و چې هغه ته د ملبورن پرېکړه لیک ورسېده. په دې لیک کې ورته هدایت ورکړل شوی و، چې هغه دې افغانان او اوښان د ۱۸۶۰م کال په لومړۍ نیمایي کې ملبورن ته راورسوي. څه موده وروسته لینډلز

پېښور ته ولاړ. د ژمي موسم و او په دې موسم کې د افغانستان له سړو سيمو څخه کوچيان د پېښور، بلوچستان، کشمير، سند او د هند نورو تودو سيمو ته راغلي وو. جارج جيمز ليندلز په پېښور کې څلورويشت اوښان واخيستل او درې افغانان، دوست محمد خان، احسان خان او بلوخ خان يې د معاش په مقابل کې له اوښانو سره يوځای د استراليا د تګ لپاره راضي کړل. ليندلز درې افغانان او څلورويشت اوښان د کراچۍ له بندر څخه په Chinsurah (چينسورا) نومي بېړۍ کې د استراليا پر لور راروان کړل او هغوی تر اوږد بحري سفر څخه وروسته د کال ۱۸٦۰م د جون په مياشت کې د ويکتوريا د ايالت پايتخت ملبورن ته راورسېدل. دلته د Burke (برک) په مشرۍ شل کسيز ګروپ جوړ شو او د دغه ګروپ سره د دوست محمد خان او احسان خان دواړه له راغليو اوښانو سره د ۱۸٦۰ کال د اګست د مياشتې په شلمه نېټه د استراليا له لويې وچې څخه د تېرېدو په نيت د Gulf (خليج) پر لور روان شول. احسان خان او د ګروپ ځينې ملګري په Menindee (ميننډي) کې پاتې شول او دوست محمد خان له برک او نورو سره يوځای د Coopercreek (کوپرکريک) سيمې ته ولاړ. له دغه ځای څخه برک د څلورو نفرو سره يوځای د خليج پر لور روان شول او دوست محمد خان له څلورو نفرو سره په کوپرکريک کې پاتې شو. څو ورځې وروسته احسان خان او ورسره ملګري له ميننډي څخه کوپرکريک ته راغلل او دغه دواړه ګروپونه پوره څلور مياشتې په کوپرکريک کې پاتې شول، چې د ګرمۍ، د اوبو د قلت او د خرابې غذا به وجه د ګروپ ټول غړي د اسهال، ضعف او ستړتيا په ناروغتياوو اخته شول. د خليج پر لور سفر ډېر ګران و او د څلورو مياشتو تر تېرېدو وروسته د برک او د هغه د ملګرو مرګ يقيني ګڼل کېده او په نتيجه کې هم څرګنده شوه چې هغوی مړه شوي وو.

د ۱۸۶۱م کال جون په میاشت کې دوست محمد خان، احسان او د دوی د کروپ نور ملګري د ناروغتیا په حالت کې د کوپر کریک څخه میننډي ته راغلل. دلته دواړه افغانان روغ شول، لاکن څه موده وروسته یو اوښ په دوست محمد خان حمله وکړه او د هغه ښي لاس یې ورمات کړ. د میننډي څخه هغه د ملبورن روغتون ته یوړل شو. دلته ډاکټرانو ډېر کوښښونه وکړل لاکن د هغه لاس ښه نه شو. واپس میننډي ته راغی، دوست محمد خان د درویشت کلونو په عمر و چې د هغه لاس تر پایه فلج پاتې شو. هغه وطن ته تګ غوښت لیکن د سفر د لګښت لپاره پیسې ورسره نه وې او د ډېر عریضو باوجود د ویکتوریا د ایالت له خوا نه ورته خپل حق ورکړل شو او نه ورسره مرسته وشوه. هغه ډېر ځوان و او دغه ځوان افغان د وطن په ارمان له خپل هېواد څخه په زرګونو میله لرې د استرالیا په خاوره کې مړ شو او په میننډي کې خاورو ته وسپارل شو.

اوس د دوست محمد خان قبر د میننډي د تاریخ برخه ګرځېدلې ده او ډېر سیلانیان د دغسې سیمې د تاریخي ځایونو د لیدلو په ترڅ کې د دوست محمد افغان د قبر زیارت هم کوي. د احسان خان او بلوڅ په باره کې پوره معلومات نه شته لاکن د ځینو لیکوالو په حواله دغه دواړه افغانان د دوست محمد خان تر مړینې وروسته خپل وطن ته ولاړل، استرالیا ته د دغو درې افغانانو راتګ او د افغانستان څخه وارد شویو اوښانو دا خبره اثبات کړه چې د نورو خلکو په تناسب افغانان هم زړور و او هم زیارکښ او همدا شان وارد شوي اوښان، لکه د افغانستان د مختلفو سیمو په شان د استرالیا په دښتو، غرونو او ځنګلونو کې هم د بارونو د وړلو راوړلو لپاره ډېر ښه چلېدل.

همدا عوامل و چې د استرالیا ایالتي حکومتونو او تجارتي کمپنیو افغانان او د افغانستان اوښانو ته ترجیح ورکوله او استرالیایانو دې هېواد ته د افغانانو د

**راتګ لپاره کوښښ کاوه چې په نتیجه کې په نولسمه او د شلمې پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې ډېر شمېر افغانان استرالیا ته راغلل او د ځینو لیکوالو په قول د دغو افغانانو شمېر تر درې زره نفرو پورې اټکل کېږي او د ښاغلي پوهاند حمیدالله امین په قول د دغو افغانانو شمېر د درې زره تر اته زره پورې رسېږي. پوهاند امین د استرالیا په سیډني ښارکې اوسېږي او هغه په دغو افغانانو باندې د دوکتورا د تېزس لپاره کار کوي. د دغه د وینا له مخې د دغو افغانانو اولاده د استرالیا په مختلفو ښارونو او سیمو کې ژوندکوي. د دوست محمد خان په قبر غونډه: د تېر جون په میاشت کې د ملبورن په نوبل پارک کې ډاکتر غلام فاروق مېړني مېلمستیا کړې وه او د ده په کور کې یو شمېر نامتو افغانان راټول شوي و. بحث روان و چې په خبرو کې خبره د استرالیا پخوانیو افغانانو ته ورسېده او په خبرو کې یو افغان وویل: ((دا د هر ژوندي ملت ملي وظیفه ده، چې خپل ویاړلي مشران یادکړي، په هغوی راټول شي، د هغوی کارنامې ونمانځي او د خپلو تېرو مشرانو کارنامې راتلونکو نسلونو ته انتقال کړي. دوست محمد خان لومړنی افغان دی چې په ۱۸۶۰ م کال کې د امیر دوست محمد خان په پاچاهۍ کې استرالیا ته راغلی دی، دلته یې کار کړی دی او دلته د امیر دوست محمد خان د مړینې څخه یو کال مخکې مړ او همدلته خاورو ته سپارل شوی دی. دا د نویو راغلو افغانانو ملي دنده ده چې د هغه په قبر راټول شي او د هغه او د نورو پخوانیو افغانانو یادونه او نمانځنه وکړي. په هر کال کې دغه غونډې به په استرالیا کې ټولو اوسېدونکو افغانانو ته د یو بل د پېژندنې او په اینده کې د افغانانو ترمنځ د اتحاد او یووالي زمینه برابره کړي او هم به د خپلو پخوانیو افغانانو اولاده پیدا کړي او دوی به د ځان ملګري کړي.))**

دا نظر د افغانانو خوښ شـــو او ټولو فیصـــله وکړه چې په دې باره کې به د استرالیا د نورو ایالتونو له افغانانو سره خبرې کېږي، مشوره به ور سره کېږي او تر مشورې وروسته به په مناسب وخت او نېټه ټاکل کېږي او بیا به په دغه ټاکلې نېټه د دوست محمد خان په قبر غونډه کېږي.

لومړی به Sydney (سیډني) کې د ښاغلي شاه محمود ساپي سره تلیفوني تماس ونیول شـــو او هغه ته یې د ملبورن د افغانانو د تصـــمیم جریان ووایه، ښـاغلي سـاپي دغه نظر او تصـمیم خوښ او تاییدکړ او هغه په سـیډني کې د مېشــتو افغانانو د خبرېدو وعده هم وکړه. تر دې وروســته د ملبورن افغانانو خپل منځي تماسـونه پیل کړل او دلته محترمې نوریا صـالحي، شـېرکشـتیار، انجنیر نیازمند، مســتوفي محمد اســحق ابراهیمي، عبدالقدوس ننګرهاري، عبدالخالق فضــل، یارمحمد زماني، اقبال موســی غازي، جنرال وزیري، یاور بارکزي، اســیایي او نورو افغانانو خپل منځي مشــورې وکړې او محمد معین باجوړي له افغانانو سره د پرله پسې تماسونو دنده پر غاړه واخیسته.

د جون پر پنځلسمه نېټه ښاغلو ډاکتر غلام رسول اکبر، ډاکتر مېړني او معین باجوړي ســـیډني ته ولاړل او د دغه ځای افغانانو له ملبورن څخه د راغلو افغانانو په ویاړ لویې مېلمســتیاوې شــروع کړې. د جون پر شــپاړســمه نېټه پوهاند حمیدالله امین مېلمســتیا کړې وه او دغې مېلمســتیا ته ښــاغلو پاینده محمد بابکرخېل ده ســـبزي او د هغه د کورنۍ غړي، انجنیر عبدالســـتار یوسـفزي او د هغه د کورنۍ غړي، شـاه محمود سـاپي، شـاه ولي منګل او د هغه د کورنۍ غړي، احســان اذري، اســتاد ســورګل او یو شــمېر نور افغانان راغلي وو. په مېلمســتیا کې د دوســت محمد خان پر قبر د غونډې موضـوع یاده شوه او له خبرو څخه داسې څرګندېدله چې دغه ټول له مخکې خبر وو

او ددغه ځای ټولو افغانانو د دوست ممد خان پر قبر د غونډې ملاتړ وکړ. د سيډني اوسېدونکو افغانانو پرېکړه وکړه چې:

اول: دوست محم خان د افغان په نوم استراليا ته راغلی دی، د افغان په نوم يې ژوند کړی دی، د افغان په نوم مړ او تراوسه د افغان په نوم يادېږي. دوست محمد خان د هرې شخصي ايډيالوژۍ، شخص، ګوند او مشخص نژاد، ژبې، فرقې او سيمې څخه پورته د ټولو افغانانو مشترک ميراث دی او دا د استراليا د ټولو افغانانو وظيفه ده چې د دوست محمد خان پر قبر په غونډه کې برخه واخلي.

دويم: د جولای د مياشتې لومړۍ اوونۍ عمومي رخصتي وه، دغه اوونۍ د غونډې مناسب وخت دی او د جولای پنځمه نېټه د غونډې لپاره وټاکل شوه. د دې غونډې په اړه دې د ملبورن او سيډني محلي راډيوګانې په پښتو او دري ژبو اعلانونه وکړي او په غونډه کې ګډون کوونکي افغانان دې په خپلو ملي جامو کې راشي.

د ملبورن ډېرو افغانانو د دوست محمد خان پر قبر په غونډه کې د ګډون فيصله کړې وه، لاکن د جولای په دريمه نېټه په ملبورن کې دوه افغانان په طبيعي مرګ مړه شول او د دې ځای افغانانو ونه کړای شول چې په دغه غونډه کې په ګڼ شمېر ګډون وکړي. سره له دې هم د جولای پر څلورمه نېټه د ملبورن څخه معين باجوړي او د هغه د کورنۍ غړي، ډاکتر غلام رسول اکبر او د هغه د کورنۍ غړي، ډاکتر مېړنی او د هغه د کورنۍ غړي، محمد اسحق ابراهيمي، د نوريا صالحي د کورنۍ غړي، د عبدالخالق فضل د کورنۍ غړي، اقبال موسی غازي، عبدالقدوس ننګرهاری او نور د Broken Hill (بروکن هيل) پر لور روان شول. په بروکن هيل کې د سيډني (ادليد) او ملبورن څخه

اتیا افغانان راټول شــول او په دې غونډه کې د افغانســتان د مختلفو ســیمو پښــتنو، تاجکو، ازبکو، هزاره، نورســتانیو، بلوڅو او شــیعه او ســني ګډون درلود. له پروګرام سره سم د جولای پر پنځمه نېټه د بروکن هیل په جومات کې چې پخواني افغان فیض الله جوړ کړی دی، د ګهیځ لمونځ وشــو او په نهه بجو په دې جومات کې د قران مجید ختم پیل او د ګهیځ پر یوولس بجو پای ته ورســېد. دې جومات ته د ملبورن افغانانو څو جلده مبارک قران هم هدیه کړل.

د جولای پر دریمه نېټه پوهاند حمیدالله امین بروکن هیل ته د افغانانو د راتګ او په میندي کې د دوســت محمد خان پر قبر د غونډې په اړه د دغه ځای د محلي راډیو او ټلوېزیون سره مرکې کړې وې او د دغو مرکو په وجه د بروکن هیل د ښــار اوســېدونکي د افغانانو له راتګ څخه خبر وو. د قران مجید ختم روان و چې د دغـه ځـای د راډیو نمـاینـده جومـات تـه راغی او لـه پوهـانـد حمیدالله امین ســره یې مرکه پیل کړه. مصــاحبه روانه وه چې د بروکن هیل د ښــار څخه شــپېته کلنه ښــځه او دوه نارینه د جومات دروازې ته راغلل. دغې ښځې د افغانانو په لیدلو ژړا شروع کړه او به مخ یې د اوښکو باران روان شو او په ژړغوني اواز یې په انګلیســـي وویل: (( زه افغانه یم او دغه دواړه زما کشــران وروڼه دي.)) څومره چې دې ښــځې د افغانانو لونګو او پټکو ته کتل هومره د هغې ژړا زیاتېدله. د دې ښــځې ژړا دومره ډېره شــوه چې د بروکن هیل د راډیو نماینده ورســره ژر مصــاحبه شــروع کړه. هغې په ژړغوني اواز ددغه نماینده سوالونو ته په ځواب کې وویل:

((زما اصلي نوم رضیه دی او خلک راته روزن وایي، دغه زما وروڼه دي د یو ورور نوم مې رحمت الله دی او د کشــر ورور نوم مې امین الله دی، بروکن هیل ته د افغانانو د راتګ د خبر په اورېدو مې خوب وتښتېد په دې انتظار وم

چې خپل افغانان به کله وینم. نن د دوی په لیدو دومره خوشاله یم چې د خپل احساس د څرګندولو لپاره هیڅ مناسب الفاظ نه شم پیداکولای. د دوی په لیدو راته خپل پلار را په یاد شو. دوی زما د پلار غوندې پټکي تړلي او جامې یې اغوستي دي. زما نیکه فیض الله دلته راغلی و. زما نیکه دا جومات جوړ کړی دی. اوس دا جومات په موزیم بدل شوی دی او د دې ښار د ښاروالیې په تصرف کې دی. زما مور هندوستانۍ وه، زه او دغه وروڼه د یو پلار او مور اولاد یو. زما د پلار نوم زیدالله خان و دلته په بروکن هیل کې ډېر افغانان اوسېدل. دلته د Ghantown یا د Afghan Town (افغان ټاون په ګان تون بدل شوی دی) په نوم لوی کامپ و. دلته تجارت و، د اوښانو کاروانونه وو، جومات و او په دې کامپ کې پوره ګڼه ګوڼه وه. زه لس کلنه وم چې زما پلار مړ شو. ډېر سخت بنیادم و، تل یې کارکاوه پنځه وخته لمونځ یې نه قضا کاوه او هر سحر یې قران لوست. ډېرې لږې خبرې یې کولې، ماته یې یوازې په ښار او کامپ کې د ګرځېدو اجازه نه راکوله. زما نیکه افغان و او د افغانستان څخه راغلی و. د ځینو اقتصادي، تجارتي، سیاسي او اجتماعي عواملو په وجه دغه لوی کامپ مات شو. افغانان تیت شول او د استرالیا نورو ځایونو ته ولاړل، مور دلته باتې شو او تراوسه په دې ښار کې بې هویته ژوندکوو. د افغانانو په حیث مو خپله ژبه او خپل کلتور بېخي له لاسه ورکړی دی.))

افغانان د ورځې په یوولس نیمو بجو د جومات څخه د ښار په منځ کې پروت لوی پارک ته راغلل، درې وغوړول شوه او ټولو په ملي جامو کې دایروي شکله جرګه جوړه کړه. د قران مجید تر تلاوت وروسته مجلس شروع شو او محترم حاجي حیدري (سدني) د مجلس د رییس او ښاغلو محمد معین باجوړي (ملبورن)، حاجي اقبال (سدني) او انجنیر عبدالقدوس ابراهیمي

(ادلید) د جرګې د منشیانو په توګه وټاکل شول. محترم حاجي حیدري د دې تاریخي غونډې په اهدافو او اهمیت پوره رڼا واچوله او دغه غونډه یې د استرالیا د ټولو افغانانو لپاره نېکمرغه ګام وګاڼه. د ده د وینا نه وروسته افغانانو په نوبت خبرې پیل کړې او هر یو خپل وړاندیز جرګې ته وړاندې کاوه او هر وړاندیز د بحث نه وروسته منظورېده او درې واړه منشیانو منظور شوی وړاندیز لیکه. د دې جرګې اوږد بحث او پیشنهادونه په لاندې ډول خلاصه کېدای شي:

اول: موږ ټول په دې افتخار کوو چې د تاریخ په اوږدو کې افغانانو د بل هر قوم په تناسب د اسلام د خپرطدو او دفاع په لاره کې د هر چا څخه زیاتې سربښندنې کړې دي او بې مثاله قرباني یې ورکړې دي. همدا افغانان وو چې د مرکزي او جنوبي اسیا ډېر ولسونه یې د اسلام په مقدس دین مشرف کړي دي، مونږ ټول په دې تاریخي واقعیت ویاړ کوو چې زموږ ویاړلو مشرانو په نولسمه پېړۍ کې استرالیا ته د اسلام مقدس دین راوړ افغانانو د بل هر قوم نه مخکې په دې خاوره کې اذان وکړ، د بل هر قوم نه مخکې یې په دې خاوره لوی خدای(ج) ته سجده کېښوده او د هر چا نه مخکې یې د استرالیا په پراخه ځمکه جوماتونه جوړل کړل.

دویم: دغه ایالتي انجمنونه به په خپلو ایالتونو کې د پخوانیو افغانانو درک معلوموي، ادرسونه به یې راټولوي او تماسونه به ورسره نیسي. دغه ایالتي انجمنونه به د اوسنیو راغلو افغانانو د مشکلاتو په باره کې د ایالتي حکومتونو له مسوولو مقاماتو سره تماسونه نیسي. د استرالیا د عمومي انجمن لپاره به ایالتي نمایندګان ټاکي، د مرکزي انجمن له خوا د افغانانو ترمنځ د اتحاد پالیسي به عملي کوي او د هر کال د جولای د میاشتې په لومړنۍ هفته کې د دوست محمد خان په قبر باندې د غونډې سره به هر راز مرستې کوي او د

مرکزي انجمن په شــمول به ټول ایالتي انجمنونه دغه غونډه د افغانانو د ملي مېلې په نوم نمانځي او دې ملي مېلې ته به پخواني افغانان، د اســتراليا اوسېدونکي مسلمانان، استراليايان او د استراليا د حکومت مسوول اشخاص رابلل کېږي.

درېیم: د اسـتراليا د افغانانو د انجمن رسـمیت به مرکزي انجمن اخلي او دغه مرکزي انجمن به د ایالتي انجمنونو ترمنځ د رسـمیت او اقتصـادي مرسـتو په اخیسـتوکې مرسـته‌کوي. د مرکزي انجمن او د ایالتي انجمنونو ترمنځ دکار وېش او ارتباط په موضــوع به د ایالتي نماینده‌ګانو تر ټاکلو وروســته خبرې کېږي.

دې جرګې رضـــیه د پخوانیو افغانانو د نماینده په توګه وټاکله. جرګه لا روانه وه چې دوه نجونې پارک ته راغلې او دواړه د افغانانو ترځنګ کېناســتلې. د یوې نوم دونا او د بلې نوم مریم شــمروز و. دواړه د رضـیې ورېرې وې. ژبه او لباس یې بدل وو، لیکن د دوی له خبرو څخه داســې څرګندېدله، لکه چې هم دا اوس یې د اوښــانو کاروان پرېښــودی وي او د غلزي بابا د لوی ټبر څخه همدا اوس استراليا ته رارسېدلې وي. هم هغه دکوچیو لوړ قد، هم هغه دکوچیو ښـکلې خبرې، هم هغه دکوچیو سـترګې، هم هغه دکوچیو زړورتیا او هم هغه د افغانانوکوچیو حیا، جومات او پارک ته د پخواني افغان خانزاده خان لمۍ هم راغله خو ډېر ژر ولاړه.

ټول افغانان له پارک څخه د میننډي پر لور روان شول. میننډي د بروکن هیل څخه یو ســـل او دولس کیلومتره لرې پروت دی د مازیګر پر پنځو بجو راورسېدل او ټول افغانان د دوست محمد خان په قبر چې د میننډید وړوکي ښــار څخه یو کیلو متر باهر جوړ شــوی دی، راټول شـول. د دوسـت محمد

**خان قبر د میندي د ښـــاروالۍ له خوا په ۱۹۵۲م کال کې جوړ شـــوی دی، کتاره ترینه راچاپېره شوې ده او په سر باندې په ولاړه لوحه د هغه نوم، دهغه د مړینې نېټه او د قبر د جوړېدو تاریخ په انګلیسي ژبه لیکل شوی دی.**

**د هغه په قبر د قران مجید مبارک ایات تلاوت شـــو او د تلاوت نه وروســـته ښاغلي پاینده محمد بابکرخېل ده سبزي وویل: ((دوست محمد خان لومړی مســـلمان افغان دی چې د اســـترالیا په خاوره یې د لومړي ځل لپاره لوی خدای(ج) ته سجده ایښودې ده. دی شهید دی، ډېر ځوان او د مسافرۍ په حالت کې مړی دی. دې شهید د یو سل او دېرش کلونو له تېرېدو وروسته د افغانستان د ټولو قومونو او سیمو خلک په خپل قبر راټول کړل. د ده په دې ځانله ځای کې پروت قبر په پټه خوله د دغه مســـلمان افغان د شـــهادت، شهادت ورکوي.))**

**د مازیګر په شپږو بجو د افغانانو دغه تاریخي لومړۍ غونډه پایته ورسېده او هر افغان د مړه دوست محمد خان خاطره ژوندۍ له ځان سره یوړه، دا به په راتلونکو کلونو کې معلومېږي چې ایا افغانان به په راتلونکو کلونو کې د دوست محمد خان په قبر غونډې کوي او که نه؟**

**ایا د دوی فیصله نه ماتېدونکی تصمیم دی او که محض د خولې تشې خبرې؟**

# په افغانستان کې د سیاسي ګوندونو رول

دا لیکنه د (خپلواکي) مجلې د لومړي کال په (۱) ګڼه کې پر (۱۳۸۳ل) کال خپره شوې ده.

**لومړۍ خبرې:** په هرې ولســواکې ټولنې کې داســې مهمه موضــوع چې د ملت د ژوند په مختلفه اړخونو اغېزه کوي، لومړی د دغې موضــوع په چارو پوه اشخاص ټاکل کېږي، چې د موضوع په ټولو اړخونو فکر وکړي، وروسته موضوع د لیکنې په بڼه، یا د سیمینارونو او نورو وسایلو په واسطه د عمومي نظر غوښتنې لپاره د نظر خاوندانو او خلکو ته وړاندې کېږي. څه وخت چې د موضــوع په اړوند نظریې راټولې کړلای شــي، بیا د قانون په شــکل نفاذ مومي.

سره له دې چې په هېواد کې د سیاسي ګوندونو قانون رسماً نافذ شوی او د دې قانون له مخې د ډېرو ګوندونو وجود هم منل شوی دی، اما په دې مهمې موضــوع کې چې د افغانانو د ژوند ســره ژورې اړیکي لري د افغان منورینو نظریو او د خلکو تجربو ته پوره ځای نه دی ورکړل شــوی. بایـد چې د افغانانو د څوکلنو تجربو او د افغاني ټولنې د ځانګړو خصوصیاتو له مخې د ګوندونو د قانون د نافذ کېدو نه مخکې دا پوښتنې مطرح شوی وای چې:

الف: د افغانســتان لپاره د ډېرو ګوندونو وجود ګټور دی او که د څو لږو ګوندونو؟

ب: د ګوندونو د قانون د نافذ کېدو ځنډېدلو ته ضرورت دی؟ او داسې نورې پوښتنې.

**د نورو ولسواکه ټولنو په پرتله په افغانستان کې د ګوندونو تاریخچه لنډه ده، بیا هم د دغې لنډې مودې په دوران کې افغانانو په خپل هېواد کې د مختلفو رژیمونو د ګوندونو سره پوره تجربه لري او د دغو تجربو له امله افغانان د ګوندونو په هکله مختلف نظر لري.**

**د افغانستان د مطالعاتو مرکز د هغو ټولو موضوعګانو سره چې د افغانستان د وجود او د افغانانو د ژوند سره مستقیمه رابطه لري په دقت څاري او د دغو موضوعګانو په اړه د نظر د خاوندانو نظریې معلوموي او بیا دوی نظریې افغانانو ته وړاندې کوي. په تېرو څو ورځو کې د مطالعاتو مرکز د څو تنو هغو افغانانو سره چې هم د خپلې ټولنې په خصوصیاتو پوره پوه دي او هم د افغانستان په تېرو تجربو، حال او راتلونکي باندې د نظر خاوندان دي د ګوندونو په اړوند لنډې مرکې کړې او د دغو مرکو څو ټکي د خلاصې په توګه وړاندې کېږي. البته دغو منورینو د خپلو نومونو د څرګندولو څخه ډډه کړې ده.**

**د دوی د نظر لنډیز: د افغاني ټولنې په اړوند د دوی نظر تقریباً ورته ټکي درلودل. د دغو مشابهه ټکو له مخې چې وایي: د نړۍ مختلفه سیاسي ټولنې ډېر مختلف او څه مشابهه ځانګړي خصوصیات لري، په واقعیت کې د هرې ټولنې سیاسي شعور د دغې ټولنې د ځانګړو تاریخي، اقتصادي، اجتماعي، کلتوري، تعلیمي او علمي او همدا شان د نورو پېچلو فکتورونو له امله په ځینو ټولنو کې سیاسي ګوندونه په شعوري لحاظ پرمختللي دي او د خپل هېواد د ((دولت)) او ((ملت)) لوړې سطحې ته رسېدلي دي. معکوس د ځینو وروسته پاتې هېوادونو سیاسي ګوندونه د دولت او ملت د پورته شعوري سطحې څخه د رهبرۍ د ځان غوښتنې، سیمه ییزې، ژبنۍ، ایډیالوژیکي، نژادي او یوازې د ګوند لپاره د هر ډول امتیاز د اخیستو ډېرې**

کښته سطحې ته راټیټ شوي دي. همدغه ځان غوښتنه او ځان ځاني اساسي عوامل دي چې د وروســـته پاتې هېوادونو ګوندونو خپل دولتونه او ملتونه د هر ډول بدمرغیو او ستونزو سره مخامخ کړي دي.

د دوی د نظر یو لنډیز:

په شــلمه پېړۍ کې د افغانســتان ســیاســي ګوندونه د افغاني ټولنې د ځانګړو خصـوصـیاتو، د نړیوالو جریانونو او د ځینو ګاونډیو هېوادونو د روابطو په رڼا کې ژورې تحلیلي څېړنې ته اړتیا لري او دا څرګندول غواړي چې د افغاني ټولنې د وروســته پاتې کېدو داخلي او خارجي عوامل څه دي؟ ایا په وروســته پاتې کېدو کې داخلي عوامل لوی رول لري او که خارجي او که خارجي او داخلي عواملو یو شان رول لوبولای دی؟

شلمې پېړۍ په افغانستان کې د مطلق العنانه او د بلون خوښوونکو شهزادګانو دورې لیدلي. ځینو مطلق العنانه شـهزادګانو او ورسـره تړل شـویو درباریانو، محافظه کارو او مذهبي علماوو او عنعنوي، قومي او محلي مشـرانو یا د خپلو سـیاسـي، اقتصـادي، اجتماعي او مذهبي قدرت د سـاتلو په خاطر یا د افغاني ټولنې د محدوده عنعنوي روابطو له امله، یا د نړیوالو نویو ســیاســي او اقتصادي جریانونو څخه د بې خبرۍ په وجه او یا د ځینو ګاونډیو هېوادونو د فشار او مداخلو د مجبوریت په نتیجه کې په افغانستان کې د بدلون او سیاسي پرمختګ په مقابل کې د مخالفت ســخت دریځ غوره کړی دی. له بلې خوا هغه واکمن شـهزادګانو چې د منورینو د ګروپونو په مرتسـه په افغانستان کې په ارتقایي ډول د بدلون او سیاسي پرمختګ لپاره هلې ځلې پیل کړي، دوی هم د افغاني ټولنې د محافظه کارو قشــرونو او ګروپونو له لاســه یا د باندنیو په

لمســـه په خپله د افغانانو له خوا د مخالفت او بغاوتونو ســـره مخامخ شـــوي دي.

وايي: (( هېڅ شـــی دومره واقعیت نه لري څومره چې بدلون په خپله یو منل شـــوی واقعیت دی.)) په افغانســـتان کې د بدلون پلویان د بدلون په نړیوال جریان پوهېدل او یو شـــمېر کســـانو زیار ویســـت چې د افغاني ټولنه د نړیوال سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او علمي بدلونونو د بهیر سره ملګری کړي.

له بده مرغه محافظه کارانو په افغانســـتان کې بدلون ته لار نه ورکوله او همدا شان د بدلون پلویانو نه د عنعنوي افغاني ټولنې علمي تحلیل او نه یې د ټولنې د عیني شـرایطو سـره سـم د بدلون لپاره هر اړخیزه سـتراتیژي او نه تاکتیکي ټاکلی پروګرام او پلان درلود. محافظه کارانو هر نوی بدلون غانده او د بدلون په پلویانو یې د کفر ټاپې لګولې او دوی یې د افغاني ټولنې د عنعنوي، مذهبي او تاریخي دودونو دښـمنان معرفي کول. له بلې خوا د بدلون پلویانو محافظه کاران د افغاني ټولنې د وروســـته پاتې کېدو اســـاســـي عاملین ګڼل چې په نتیجه کې د محافظه کارانو پر ضد مساله د افغاني ټولنې د ځینو منل شویو ارزښتونو پر ضـــد تر ســـرحده راورســـېده او په ټولنه کې د محافظه کارانو او بدلون غوښتونکو ترمنځ د افراط منفي بنسټ کېښودل شو.

سوړ جنګ په دوران کې لویدیز بلاک د محافظه کارانو او سوشلستي بلاک د چپ افراط تر شا ودرېدل. د ایډیالوژۍ او سوشلستي بلاک پالیسیو منطقي پیوند درلود.

شوروي اتحاد د ((مشر ورور)) دنده پر غاړه دلوده او کشران چپي ګوندونه د کریملن پورې تړل شـــوي وو او د افغانســـتان د چپي ګوند ( وروســـته دغه ګوند په ګوندونو او ګروپونو ووېشـــل شـــو) په شـــمول د نړۍ یو شـــمېر چپي

ګوندونو د کريملن څخه ايډيالوژيکي الهام، ګوندي دســـتور او اقتصـــادي مرستې اخيستې او کشرانو په پټو سترګو د کريملن هر سياسي دستور ته عملي بڼه ورکوله. د لويديز بلاک پاليسي او سياسي روابط د دې زړې فارمولې پر اساس چې (( ستا د دښمن دښمن ستا دوست او ستا د دښمن دوست ستا دښمن دی)) روانه وه. لويديز بلاک هغو ټولو ګوندونو، ګروپونو او اشخاصو ته چې د ازادۍ، ديموکراســـۍ او ارتقايي پرمختګ لپاره يې هلې ځلې کولې، شاکړه، د دوی پر ځای يې د محافظه‌کارانو ملاتړ ته ملا وتړله، د چپي افراط پر ضد يې ښي لاس افراط منځته راوړه او تقويه يې کړ، د ازادۍ، ديموکراسۍ او اعتدال يون يې له حده زيات ضعيف کړ. د دواړو بلاکونو له خوا سياسي لوبه چپي او ښـــي افراط ته وســـپارل شـــوه، چې په نتيجه کې ملي ګوندونه، ګروپونه او اشـخاص د بې شـمېره سـتونزو سـره مخامخ کړلای شـول او لا تراوسه د ستونزو دغه اوږده پروسه په افغانستان کې روانه ده.

چپ افراط: لکه چې مخکې ورته لنډه اشـــاره وشـــوه د چپ افراط د ايډيالوژۍ، ملګرتيا او مالي مرســـتو مرکز معلوم و او کشـــرانو د مشـــر ورور سياسي دستور په پټو سترګو عملي کاوه. کشرانو د مشر ورور دښمنان خپل دښـــمنان او دوســـتان يې خپل دوســـتان ګڼل. په افغانســـتان کې د کشـــر ورور سياسي فعاليتونه د مشر ورور (شوروي اتحاد) د ملي ګټو په محور څرخېدل او کشر ورور ته د افغانستان د ملي ګټو د دفاع حق نه و ورکړل شوی. چپي ګوند د شـوروي اتحاد په ماډل جوړ شـوی و، د ګوند جوړښـت او فعاليت د احرام بڼه درلوده، په مختلفه ولايتونو کې ګوندي تشـــکيلاتو وجود لره، د ګوند رهبري په کابل کې وه، مرکزي رهبرۍ خپل مختلفه تشـــکيلات لرل، د ټولو تشکيلاتو په سر کې د ګوند عمومي سکرتر ولاړ و او په واقعيت کې هغه

دګون سیاسي او ایډیالوژیکي واکمني پر غاړه لرله. ګوند د زنځیر حیثیت درلود او دګوند ټولې کړې له پورته څخه اداره کېدلې.

سوشلستي ایډیالوژي ، کارګري دیکتاتوري، طبقاتي مبارزه، د شوروي اتحاد سره دوستي، انقلابي بدلون، دګوند رهبرۍ ته وفاداري او د نشنلزم، فیوډالیزم، شونیزم، امپریالیزم، ارتجاع او داسې نور شعارونه دګوند شعارونه وو. د دې پوچو شعارونو د مخالفت په تور ډېر افغانان ونیول شول، مړه شول، د خپل هېواد څخه وشړل شول او د پردیو هېوادونو پنجو ته وسپارل شول. له بده مرغه ډېر شمېر افغانان د طبقاتي دښمنانو په تور د ایډیالوژۍ د خیالي رب النوع په پښو کې حلال شول او برعکس د ((مشر ورور)) په پښو کې د ګلونو ګېډۍ ایښودل کېدلې.

ښي افراط: د خپلو ځانګړو تاریخي او عنعنوي خصوصیاتو او شرایطو له امله افغانستان یوه مسلمانه ټولنه ده او دې ټولنې د هند، مرکزي اسیا او ایراني ټولنو غوندې د نورو مذهبونو پر ضد مذهبي مخالفت او رقابت نه درولد او په افغاني مسلمانه ټولنه کې د ټولو ګاونډیو اسلامي ټولنو په پرتله مذهبي افراط، تعصب، کرکه او دښمني د نشت تر حده لږه وه، دلته سونیانو، اهل تشیع او نورو مذهبي ګروپونو او افرادو د سولې په فضا کې ګډ ژوند کاوه.

محافظه کار قشر د افغاني ټولنې د ځانګړو تاریخي خصوصیات په چوکاټ کې دننه په ټولنه کې اجتماعي، سیاسي او مذهبي نفوذ درلود، لاکن دې قشر د افغاني ټولنې د اجتماعي جوړښت په بنسټ ولاړې د مساوات طلبه اجتماعي روحي او روابطو پر ضد د افراط څخه کار نه شو اخیستلای، په افغاني ټولنه کې ښي افراط په ډیموکراسۍ د دورې څخه شروع کېږي او په

افغانستان کې د شوروي اتحاد له خوا د چپي افراطي ګوند د بنسټ ایښودو سره جوخت ښي لاسی ګوند منځته راغی او دي.

ګوند هم د چپي افراطي ګوند غوندې د افغانانو د ټولنې د واقعي خصوصیاتو پر ځای په باندنیو هېوادونو اتکاء وکړه او د ځینو باندنیو اسلامي هېوادونو د مذهبي ګوندونو څخه یې ایډیالوژیکي نظریه واخیسته او د باندنیو هېوادونو مالي او سیاسي مرستې یې ترلاسه کړې. د افغانانو له بده مرغه د سوشلستي بلاک له خوا چپ افراط او لویدیز او ځینې اسلامي هېوادونو د مذهبي ګوندونو او د وهابي مذهب د پیروانو له خوا ښي لاسی افراط ورځ پر ورځ تقویه کېده. د دواړو بلاکونو د ملاتړ له امله افغانستان د چپ او ښي لاسي افراط د ټیمونو د سیاسي بزکشۍ میدان شو او دواړو ټیمونو د خپلو باندنیو پلویانو (لویدیز بلاک او سوشلستي بلاک) د مالي، ایډیالوژیکي، سیاسي او ګوندي ملاتړ په اتکاء په افغانستان کې د سیاسي تسلط لپاره د بزکشۍ لوبه شروع کړه او په نتیجه کې د کال ۱۹۸۷ د سرطان په میاشت کې د شوروي اتحاد د بزکشۍ ټیم بریالی شو. د ثور د کودتا او شوروي اتحاد د یرغل پر ضد لویدیز بلاک د پاکستان، سعودي عربستان او ځینو اسلامي هېوادونو په همکارۍ اوه ګوندونه جوړ کړل چې ددغه وخت په اصطلاح څلور افراطي او درې اعتدال خوښوونکي ګوندونه ګڼل کېدل. ایران هم خپل افراطي ګروپونه درلودل. لویدیز بلاک، ګاونډیانو او ځینو عربي او اسلامي هېوادونو د ملي ګوندونو پر ځای او د معتدله ګوندونو په تناسب ښي لاسي افراطي ګوندونه او ګروپونه تقویه کول. دوی ته یې پرېمانه اقتصادي او نظامي مرستې ورکولې، نړیوالې ټولنې ته یې په رسمیت وروپېژندل، په بله وینا د افغانستان خلک یې دوی ته د یرغمل په توګه وروسپارل.

د افراط خصوصیات:

په ظاهر کې ښي او چپ افراط دوه جلا عملي ښکاري اما د سياسي علومو د فارمولې له مخې دواړه افراط يو شان ګډ خصوصيات لري او د دغو خصوصياتو له مخې يو شان عمل کوي او د يو شان عمل په وجه دواړه افراط د يوې سيکې دوه مخونه ګڼل کېږي. دواړه خپلې مشخصې ايډيالوژۍ، مشخص سياسي ګوندونه، باندني روابط او ملاتړ لري او د ګوندونو په سر کې ولاړ امير يا عمومي سکرتر ته اطاعت او وفاداري لومړی شرط دی. د ګوند ټول ارګانونه د پورته نه کښته اداره کېږي. د ګوندي ډسپلين پر اساس ټول کښته ارګانونه د پورته ارګانونو او په مشخص ډول ((د لارښود)) او امر په پټو سترګو منل کېږي او عملي بڼه ورکول کېږي. ټول امتيازات يوازې د ګوند غړو ته ورکول کېږي. د ګوند د غړو نه غير نور ټول هېوادوال د خپل هېواد په چارو کې د برخې اخيستو څخه محرومېږي او د مخالف ګوند او ګروپونو او حتی د اشخاصو د مرګ ژوبلې، تهديد او سپکاوي څخه ډډه نه کوي. افراطي ګوند ترپايه زيار باسي چې د هېواد سياسي واکې په خپل لاس کې وساتي او د مشرتابه نه نيولې د ګوند هر غړی په دې واقعيت پوهېږي چې سياسي قدرت د بايللو سره يوځای دغه ګوند اقتصادي او نظامي قدرت هم له لاسه ورکوي او د مشرتابه نه نيولې د ګوند هر غړی د خلکو د محاکمې سره مخامخ کېږي او له دوی څخه د ټولو داخلي جرايمو، خارجي ارتباطاتو او د خارج څخه د ورکړل شويو مالي مرستو پوښتنې کېږي. د افراط په اړوند د سياسي علومو يو نامتو پوهاند وايي: ((څوک چې په توره ژوند کوي هغه په توره له منځه ځي)). افغانانو په خپل هېواد کې د افراط د عمليو پيل او پای په خپلو سترګو ليدلي، په خپل وجود باندې د تجربو څخه پوره خبر دي او اوس هم د افراط د بقا يا د ماضي او حال څخه په بنستيزه توګه هم خبر دی او په اينده کې هم د دغې افراطي بقايا د منفي رول په اړوند ډېر شکونه لري.

**د دوی د نظریو لنډیز:**

**دلته د نظر د خاوندانو نظریې په ډېره لنډه توګه وړاندې کېږي.**

**وايي: تېرو تجربو عملي ښودلې ده چې افغاني ګوندونو هېڅکله د افغانستان د ملي ګټو او د یو واحد ملت په اړوند فکر نه دی کړی، دوی تل د ګوند د مشرتابه، د ګوند په ایډیالوژۍ او د خپل ګوند په سیاسي، اقتصادي او نظامي قدرت مین پاتې شوي او د ګوند له محدودې سطحې څخه د افغانستان د دولت او د ملت سطحې ته نه دي پورته شوي. دې افراطي ګوندونو هېڅکله په افغانستان کې د ښهري په باره فکر نه دی کړی او په دې نه پوهېږي چې افغانستان د ټولو هېوادوالو ګډ کور دی او کار به اهل کار ته سپارل کېږي. په عمل کې یې اثبات کړې چې دوی ټول امتیازات د ځانونو لپاره غواړي او د افغانستان نور ټول ښهریان یې تل محروم ساتلي دي.**

**د دې افراطي ډلو له لاسه افغاني ټولنه په ایډیالوژیکي، سیاسي، اتنیکي او سیمه ییز لحاظ ټوټې ټوټې شوې ده او په اوسنیو شرایطو کې به د ډېرو ګوندونو موجودیت دغه ټوټې ټولنه لاپسې ټوټې ټوټې کړي. د افغانستان د چارو د دې پوهانو په نظر باید چې تر یو وخته د ګوندونو موضوع ځنډول شوې وای، تر څو چې افغانان د دولت او ملت په لوړو مفاهیمو پوه کړای شوي وای. د دې نظریې پلویان د ډېرو ګوندونو د وجود او د افراط د بقایا په باره کې شکونه لري او دوی د رحمان بابا د دې شعر په مصداق چې:**

**هر څه ولاړ شي عادت نه ځي له سړي نه**

**خدای دې نه کاندي په بدو چارو سر**

ځوک د افراطي ګوندونو د بقايا او د ډېروګوندونو د وجود په هکله خوشبين نه دي.

د دويم نظر پلويان په دې عقيده دي چې اوس په افغانســـتان کې د ګوندونو قانون نافذ شـوی او افغانان د انجام شـوي عمل سـره مخامخ دي. د دوی په نظر ډيموکراســـي د ګونـدونو د وجود نه غير نـه چلېږي او د کـال ۱۹٦٤ اسـاسي قانون يې ښـه بېلګه ده. اسـاسي قانون نافذ شـو اما د ګوندونو قانون وځنډول شو او د دغه ځنډ د خلا ځخه چپ او شي افراط ګټه واخيسته. دغو دواړو غير قانوني ګوندونو دغه قانوني خلا ډکه کړه او ددغه افراطي ګوندونو له لاســه افغانســـتان تباه شــو او افغانان د يوې اوږدې غميزې ســره مخامخ کړلای شــو، چې اوس هم دوام لري. د دوی په نظر ګوندونه د خلکو لپاره د سياسي مکتب حيثيت لري د هر ګوند غړی خلکو ته ځي او خلکو ته د خپلو ګوندونو خارجي او داخلي ســياســـي نظر او د هېواد اقتصـــادي او اجتماعي پروګرامونه وړاندې کوي. خلک د هر ګوند پروګرامونه اوري، فکر ورباندې کوي او بيا په خپله خوښــه هغه ګوند ته رايې ورکوي، د کوم ګوند پروګرام چې د هغوی خوښ وي. د دې نظر پلويانو په وينا په اوسنيو شرايطو کې د افغانانو اکثريت بې ســواده دی، ګوندونه ډېرې نيمګړتياوې لري اما د تېرو رژيمونو د افراطي حکومتونو ځخه خلکو دا تجربه ترلاسه کړې ده چې په افغانستان کې د ګوندي ډيموکراســـی ســـربېره بله لار نه شـــته او د وخت په تېرېدو به ډيموکراسي د افغانانو سياسي شعور دومره پياوړی کړي چې دوی به په خپله د ملي او سيمه ييزو او اتنيکي ګوندونو ترمنځ توپير وکړلای شي.

د دريم نظر پلويان د افغاني ټولنې د خصــوصــياتو په ارتباط او د ګوندونو د ترخو تجربو له امله دومره بدبين دي، چې دوی په افغانســـتان کې ګوندي ديموکراســـي نه غواړي. وايي چې د لويديز د ټولنو او افغاني ټولنې ترمنځ له

حده زیات توپیر وجود لري، ډیموکراســي یو بوټی نه دی چې د لویدیز څخه دې راوړل شي او په افغانستان کې دې نهال شي، افغاني ټولنه د ډیموکراسۍ لپاره د جرګو بهترین میکانیزم لري او دغه میکانیزم د افغاني ټولنې د ډیموکراسۍ اساسي بنسټ دی، که د کلیو نه نیولې تر مرکز پورې د جرګو میکانیزم منظم او فعاله کړلای شي، دا به په افغاني ټولنه کې د ډیموکراسۍ پر لور ډېر موثره او عملي ګام وي.

یادونه:

زموږ په اند دا د افغاني منورینو او د نظر د خاوندانو ملي دنده ده چې په افغانستان کې د سیاسي–مذهبي ګوندونو په رول تحقیقي لیکنې وکړي او دغه لیکنې د نشر لپاره د خپلواکې مجلې ته راولېږي، هیله ده چې دغه تحقیقاتي لیکنې به اکاډمیکې او تحقیقي وي، د قلم عفت به په کې ساتل شوی وي، ځکه چې علمي او تحقیقي لیکنې نه د چا په خدمت کې وي او نه د چا په مخالفت کې او ټوله لیکنه د اکاډمیک تحقیق او د واقعیتونو پر بنسټ ولاړه وي.

# افغاني ټولنه، ارزښتونه او د جرګې موسسه

دا ليکنه د (خپلواکي) مجلې د دويم کال په (۳-٤) مې ګڼه کې پر (۱۳۷٤ل) کال خپره شوې ده.

## لومړنۍ خبرې:

هره ټولنه ډېر متلونه او پخې خبرې لري، خو له هغو څخه ځينې د پخو خبرو مقام ته رسـيږي او لږې پخې خبرې هم د متلونو بڼه غوره کوي. هغه متلونه او پخې خبرې چې د ژوند پر واقعيتونو ولاړې وي، ژوندۍ پاتې کيږي او د يوې مشـخصې ټولنې له يو نسـل څخه بل نسـل ته د کلتوري ميراث په توګه انتقال مومي. افغاني ټولنه هم ډېرې پخې خبرې او ډېر متلونه لري او د دې مضـمون پيل هم له يو متل څخه کوم. لکه چې وايي: ((څوک چې ځان نه پيژني هغه جهان هم نه پيژني)). په ظاهره خو دا يو ساده او تکرار شوی متل برېښـي، اما په واقعيت کې دا سـاده او تکرار شـوی متل د ژوند پر واقعيت ولاړ دی او د افغاني ټولنې د بېګانه ګۍ له احسـاس سـره ژور اړيکي او ژور مفهوم لري. که چيرې له ((ځان)) څخه افغان ټولنه او له ((جهان)) څخه نورې ټولنې قياس کړو نو بيا موږ له خپلو ځانونو څخه دا پوښتنې کولای شو، چې ايا موږ افغانانو لومړی ځان پيژندلی دی او که جهان؟ ايا موږ په خپله ځان پيژني او که د نورو له عينکو څخه ځان ته ګورو؟ د متل د مفهوم له مخې لومړی ځان پيژندل کيږي او وروسـته جهان. ليکن زموږ د ټولنې په ارتباط د دغه متل مفهوم سـرچپه غوندې ښـکاري، ځکه چې موږ د ځان له پيژندنې څخه مخکې د جهان د پيژندنې په باره کې هڅې کړي او په خپله د ځان د

پېژندلو پر ځای خپل ځان د نورو له عینکو څخه ګورو او د پردیو د فارمولو پر اساس ژوندکول غواړو.

د رواني بېګانه ګۍ د پروسې عوامل هم زیات او هم پېچلي دي او اوږد بحث ته ضرورت لري. په لنډ ډول له دې سرچپه پروسې څخه د زېږېدلې بېګانه ګۍ د احساس په باره کې د یو شمېر پوهانو نظریې په لاندې توګه خلاصه کېدای شي:

۱- په افغاني ټولنه کې د بېګانه ګۍ احساس د دې هېواد له جغرافیایي موقعیت او تاریخي تکامل څخه سرچینه اخلي.

۲- د دې هېواد سیاسي رژیمونو په افغانانو کې د بېګانه ګۍ احساس منځته راوړی او پیاوړی کړی دی.

۳- په افغانستان کې مختلف قامونه په مختلفو سیمو کې ژوندکوي او دغه قامونه تراوسه د ملي شعور لوړې پوړۍ ته نه دي رسېدلي او تراوسه هر قام ته خپله سیمه وطن او خپل قام ملت ښکاري.

٤- افغاني ټولنه د رووسته پاتې نابرابره اقتصادي ژوند له کړاوونو سره مخامخ و او دغو کړاوونو د افغانانو د بېګانه ګۍ په احساس کې لوی رول درلود.

۵- د دې ټولنې اقتصادي، سیاسي، اجتماعي او کلتوري موسسو پوره وده نه وه کړې او د دغو موسسو نشتوالي یا لږې ودې د بېګانه ګۍ احساس پیاوړی ساته.

٦- د بېګانه ګۍ احساس د افغاني ټولنې له بې سوادۍ سره ژورې اړیکې لري، د بېګانه ګۍ احساس د دې ټولنې د بې سوادۍ زېږنده ده.

۷- په تعلیمي نصـاب کې لویه خلا موجوده وه. د دغه نصـاب له مخې افغان محصـــل د نورو ټولنو د ژوند په مختلفو اړخونو پوهېده، اما هغه د افغاني ټولنې په برخه کې بېخي ګونګ و. د دې هېواد تعلیمي نصـاب د بېګانه ګۍ د احساس د راپیداکېدو او خپرېدو اساسي عامل و.

۸- د ښار او کلیوال ژوند ترمنځ له حده زیات توپیر موجود و. په ظاهره خو د کابل ښـار د افغانسـتان د پایتخت په لحاظ د ټولو افغانانو د کلتور نماینده ګي پر غاړه درلوده، اما په واقعیت کې کابل په افغانســتان کې د یوې جلا جزیرې حیثیت درلود. د کابل ښـار د ټولو امتیازونو او نور افغانسـتان د ټولو محرومیتونو مرکزونه وو او د دې ښـار سیاسي سیسـتم له کابل څخه د اروپا او له نورو افغانســتان څخه د افریقا ماډلونه جوړ کړي وو. د پایتخت بېګانه ګي په افغانانو کې د بېګانه ګۍ افراطي احساس منځته راووړ.

۹- د ځینو په نظر افغانستان ته څېرمه پراته نور هېوادونه، بین المللي شرایط او خارجي ایډیالوژیکانې د بېګانه ګۍ د احساس اساسي عوامل دي او داسې نور.

سره له دې چې د بېګانه ګۍ د احساس په روانه عملیه څه ناڅه خبرې شوې دي او ځینو څېړونکو د ځینو عواملو په تناسـب په ځینو مشـخصـو عواملو ټینګار هم کړی دی، لیکن بیا هم زموږ د ټولنې په اړوند دغه ټول عوامل له یو بل څخه نه جلاکېدونکي ریښـې لري او د دغو پېچلو عواملو په نتیجه کې د بېګـانـه ګۍ احســـاس منځته راغلی دی او اوس د ټولنې په بې تعلیمه او تعلیمیافته دواړو قشـرونو کې یو شـان لیدل کېږي. د بېګانه ګۍ د احسـاس په ټولو اړخونو کرېـدل او د دغو پېچلو عواملو د خپلمنځي اړیکو تحلیلول

اوږده موضـوع ده، شـايد چې په دې مضـمون کې د موضـوع په ارتباط ځينو عواملو ته ځای پر ځای لنډه اشاره وشي.

د تاريخ په اوږدو کې ډېر خارجي ليکوال او سـيلانيان د افغانسـتان سـيمې ته راغلي او د دې سيمې په قامونو، نژادونو او د دوی د ژوند په مختلفو اړخونو يې ليکنې هم کړي دي. د دغو ليکنو لږه برخه د دې سـيمې د ولسـونو د ژوند واقعي يا واقعيت ته نږدې عکاسـي کوي او ډېره برخه يې د ليکوالو د لږو معلوماتو يا د قياس، يا د تقليد او يا د سياسـي او مذهبي تعصـب له مخې شـوې ده او هم دې ليکوالو د خپلو ناسـمو ارزيابيو په وجه په افغانانو کې د بېگانه‌گۍ احساس راپيدا کړی دی. څرگند مثال يې بني اسرائيلو ته د افغانانو منسوبول دي.

دلته د شـلمې پېړۍ په وروسـتۍ نيمايي کې د افغانانو، غرب او د شـوروي اتحاد د ليکوالو په ليکدود او د هغوی په ميتو لنډې خبرې کېږي.

لويديز ليکوال:

انگرېزانو د خپلو څېړونکو، ډپلوماتانو، نظامي پرسونل، سيلانيانو، جاسوسانو او محلي راپورچيانو په وسـيله د افغاني ټولنې په باره کې پراخه څېړنې کړې دي، چې تراوسـه د لويديزې نړۍ د نورو هېوادونو ليکوال د هغوی په اثارو اتکا کوي او د باوري ماخذونو په توگه ورځنې اسـتفاده کوي. د انگرېزانو ليکنې په مختلفو مرحلو پورې اړه لري. په لومړۍ مرحله کې هغه اثار منځته راغلي دي چې د هند په نيمه وچه د انگرېزانو اداري او سـياسـي پولې افغانستان ته نه وې رارسېدلې او د افغانانو او انگرېزانو ترمنځ جگړې نه وې شـوې. په دې مرحله کې انگرېزانو په واقعي بڼه د افاني ټولنې د پېژندگلو هڅې کولې او د دوی د ليکوالو ميتود هم پـه واقعيتونو ولاړ و او د افغـاني

ټولنې د ځانګړو خصوصیاتو په باره کې یې سمه ارزیابي کوله. د دې اثارو له جملط څخه په ۱۸۰۸م کال کې به پېښــورکې د شــاه شــجاع دربار ته د الفنستون په مشرۍ د بریټانیې د ختیز هند د کمپنۍ د هیئت راتګ او وروسته د افغاني ټولنې په مختلفو اړخونو کتاب لیکل یې ښه مثال دی.

پر ۱۸۳۹م انګرېزانو پر افغانســتان یرغل وکړ او د لومړۍ افغان–انګلیســي جګړې نه وروسته د افغانانو په باره کې د انګرېزانو د لیک میتود هم بدل شو او د خپلو سیاسي اهدافو لپاره یې د افغاني ټولنې منفي ارزیابۍ ته ملا وتړله. دغو منفي ارزیابۍ اغېزه له ورایه ښــکاري. د مثال په توګه وایي: په افغان اعتماد کول ډېر ګران کار دی. یو افغان به دې ډېر نږدې دوســـت یا وفادار نوکر وي، خو کله چې ستا او د دغه افغان د قام ترمنځ شخړه پیدا شي، نو بیا دغه افغان نه ســتا دوســتۍ ته ګوري او نه وفا دارۍ ته او ســبا ته دې د ســر دښــمن دی: ډېر پاکســتانیان هم د افغانانو په باره کې دغه مثال درته وایي. اما هغوی په دې نه پوهېږي چې د دوو ارزښـــتونو د ټکر په حالت کې یو افغان کوم ارزښت ته ترجیح ورکوي. په دې کې هېڅ شـک نه شـته چې یو افغان د بل هر قام د وګړي په تناســب د دوســتۍ او وفادارۍ په ارزښــت ډېر ښــه پوهېږي او داسې ډېرې کیسې شته چې افغان د خپل دوست او بادار لپاره ډېرې قربانۍ ورکړې دي، اما یو افغان په دې هم پوهېږي چې د هغه وجود او هویت د قام له وجود او هویت څخه جلا هېڅ اهمیت نه لري او څه وخت چې د افغان د شخصي دوستۍ او وفادارۍ او د هغه د قام د وجود او هویت ترمنځ ټکر پیداکېږي، نو بیا هغه د خپل ځان پر ځای د قام په ننګ ودرېدو ته وردانګي.

د شلمې پېړۍ په وروستۍ نیمایي کې د لویدیزو هېوادونو یو شمېر ټولنپوهانو (سوشیالوجستانو) وګړ پوهان (انتروپالوجستان) ارکیالوجستان، تاریخ پوهان

او د اجتماعي علومو مختلف څېړونکي افغانستان ته راغلل او دوی د هېواد په مختلفو سیموکې یې څېړنې وکړې. د دوی د څېړنو میتود علمي و او د افغاني ټولنې په مختلفو اړخونو یې علمي تبصرې او تحلیلونه کړي دي، خو بیا هم دوی خارجیان وو؛ په خارج کې روزل شوي وو او د هر خارجي لپاره دا یو مشکل کار دی چې هغه دې د افغاني ټولنې په اجتماعي جوړښت، اجتماعي اړیکو او اجتماعي روحیاتو پوره پوه شي او یا دې د دې ټولنې د پېچلو ارزښتونو، کودونو او عنعنو احساس داسې وکړي، لکه څنګه چې یو افغان یې کولای شي.

افغان لیکوال:

په افغاني ټولهکې یو مشخص سیاسي سیستم تسلط درلود او د دې سیستم پر اساس ځینې نامتو پوهان په دربار پورې تړل شوي وو او هغوی محض د دربار په حکم لیکنې کولې. تر دغه سیستم لاندې زموږ مشران لیکوال مکلف وو چې د دربار په ګټه او طرفداری لیکنې وکړي او یا داسې لیکنې وکړي چې اقلاً د سرکار قچرې را ونه توروي. ډېرې لیکنې عندي بنې لري. یا لیکوالو افغاني ټولنه او د دې ټولنې سیاسي سیستم دومره ستایلی دی چې د دوی د لیکنو له مخې په افغاني ټولنه او د دې ټولنې پر سیاسي سیستم د سر د وینبنته هومره عیب هم نه شته او ځینو داسې خپله ټولنه او سیاسي سیستم ټکولای دی چې هر ښه اړخ یې هم بد معرفي کړی دی.

د شلمې پېړۍ په وروستۍ نیمايي کې زموږ د مشرانو پوهانو او لیکوالو یوې برخې د افغانستان د مختلفو قامونو د شجرو، ژبو، تاریخ او ادبیاتو څېړنې کړي او یا یې د نورو ژبو اثار ترجمه کړي دي. دوی په خپلو رشتوکې د قدر وړ زیار ایستلی دی او هر یو له خپل استعداد او وس سره سم ګټور مواد د

کتابونو، رسالو او مضمونونو په شکل ملي او بین المللي ټولنو ته وړاندې کړي دي. په دوی کې د ځینو پوهانو علمي څېړنې د معاصر علمي میتود پر اساس شوي دي او ځینو محض مواد راټول کړي او د علمي میتود نه غیر یې د خپلې خوښې او ناخوښې له مخې د موضوع په اړون محض عندي تحلیلونه کړي دي.

د نورو علومو په تناسب ټولنپوهنه، وګړپوهنه، معاصر اقتصاد او اجتماعي روحیات نوي علوم ګڼل کېږي او د دې علومو د میتودونو پر اساس د مختلفو ټولنو د ژوند څېړنو رواج هم وروسته منځته راغلی دی. له همدې امله زموږ د مشرانو لیکوالو په څېړنو کې داسې اثار چې هغوی دې په کې د سوشیالوجي، انتروپالوجي، معاصر اقتصاد، اجتماعي روحیاتو او د نورو معاصرو علومو د میتودونو پر اساس د افغاني ټولنې هر اړخیز علمي تحلیلونه کړي وي، د نشت برابر دي.

د زده کړې او روزنې د انکشافي پروګرامونو پر اساس یو شمېر ځوان افغانان د لوړو زده کړو لپاره لویدیزو هېوادونو ته ولېږل شول او ځینو د سوشیالوجی، انتروپالوجی، معاصر اقتصاد او نورو اجتماعي علومو په څانګو کې د لوړو شهادتنامو سره خپل هېواد ته راغلل او له دوی څخه ځینو د دموکراسۍ د دورې د پیل نه د ثور تر کودتا پورې د افغاني ټولنې به مختلفو اړخونو ابتدایي څېړنې شروع کړې او د خارجي علماوو پر ځای یې د خپلې ټولنې په ظاهره ساده اما په واقعیت کې د پېچلي اجتماعي جوړښت، اجتماعي روابطو، اجتماعي فعالیتونو، اجتماعي روحیاتو، ارزښتونو، کودونو، نورمونو او عنعنو څېړنو ته ملا وتړله. له بلې خوا د جمهوریت په دوره کې د افغان ځوان نسل د بېګانګۍ احساس ته پاملرنه وشوه او د دې دورې مسوولو اشخاصو ځینو افغان پوهانو ته (( د افغانستان پېژندنې)) په نوم د کتاب د

لیک وظیفه ورکړه او ټینګار یې وکړ چې دغه کتاب به د افغانستان په پوهنتونونو او د لوړو زده کړو په نورو موسسوکې د زده کړې د نصاب د یوې مهمې برخې په حیث تدریس کېږي. د کتاب د لیک او تدریس په پروګرام لاس پورې شوی و، چې د غوبي کودتا هر څه په ښکر ووهل او د بېګانه ګۍ د احساس د مخنیوي پر ځای یې ټول هېواد د بېګانه وو په لاس کې ورکړ.

شوروي لیکوال:

د کمونستي بلاک او په مشخص ډول د شوروي اتحاد څېړونکو او لیکوالو د هرې ټولنې څېړنه د ایډیالوژۍ او ګوندي فارمولو پر اساس کوله او د ټولو ټولنو لپاره یې یو شان افاقي فارمولې استعمالولې. دوی له ورکړل شویو فارمولو څخه د انحراف اجازه نه درلوده او شوروي لیکوالو نه شو کولای چې د یوې ټولنې د مشخصو واقعیتونو د څېړنو په نتیجه کې دې کمونستي ایډیالوژي او یا ګوندي اهداف د تضاد سره مخامخ کړي. د افاقي کمونستي فارمولې له مخې هره ټولنه د تولیدي وسایلو او اقتصادي پرمختګ له امله د یوې مرحلې نه بلې مرحلې ته تېرېږي او د هرې مرحلې مشخص زیربنایی بدلون د دغې ټولنې سربنایي، اقتصادي، سیاسي، اجتماعي او کلتوري روابطو ته تغییر ورکوي او دغه ټولنه پرمخ ځي.

د دوی په نظر د کار د ساده تولیدي وسایلو په وجه لومړی کمیون یا ابتدایي ټولنه منځته راځي او په دې دوره کې د تولید وسایل او تولیدي منابع ګډه ملکیت ګڼل کېږي. د غلامۍ په دوره کې د غلامانو د کار له امله د تولید وسایل او ورسره اقتصادي تولید انکشاف کوي او په دې مرحله کې ټولنه په پورته او کښته طبقه وېشل کېږي او د بادار او غلام پورته او کښته طبقې

جوړېږي او د استثمارکوونکي او استثمار شوي یا د پورته اوکښته طبقو ترمنځ مبارزه پیلېږي. په فیوډالي دوره کې د زمکې لرونکي فیوډال او بزګرو ترمنځ طبقاتي روابط او مبارزه لا پسې زیاتېږي او د سرمایه دارۍ په دوره کې د سرمایه دارو اوکارګرې طبقې ترمنځ د استثمار عملیه او مبارزه شدت مومي، چې په نتیجه کې د سرمایه دارو استثمارګره طبقه ماتې خوري او د دې طبقې تر ماتې وروسته سوشلستي دوره شروع کېږي چې په دې دوره کې د دولت طبقاتي ماشین دکارګرې طبقې نمایندګونو ته په لاس ورځي او د دولت د ماشین په واسطه پورته طبقه او د دې طبقې ټولې بقایا ټکوي او په دې مرحله کې د ټولنې ټول تولیدي وسایل دګوند او له ګوند څخه د جوړ شوي دولت په لاس کې پرېوزي، خصوصي ملکیت له منځه ځي. د ټولنې غړي وګړي اد خپل استعداد او کار په مقابل کې اجوره اخلي او هم په دې دوره کې بې طبقې کمونستي دورې ته لار اوارېږي چې په بې طبقې کمونستي مرحله کې په ټولو تولیدي وسایلو او زېرمو ګډ ملکیت عملیه شروع کېږي او هر څوک د خپل ضرورت له مخې اجوره اخلي او په پای کې د دولت طبقاتي ماشین د څرخې او نورو زړو شیانو سره یوځای په موزیم کې ایښودل کېږي.

د شوروي اتحاد پوهانو د دغې افاقي فارمولې په چوکاټ کې د افغاني ټولنې د تاریخ تکامل په باره کې یو لړ څېړنې کړې دي او د دوی د دغې افاقي فارمولې له مخې افغاني ټولنې هم د نړۍ د نورو ټولنو په شان له کمیون څخه د غلامۍ دورې ته او د غلامۍ له دورې څخه د فیوډالۍ دورې ته رارسېدلې ده. (د کمیون او غلامۍ د دورو له بحث څخه تېرېږو او دلته یوازې د فیوډالۍ پر موضوع ډېر لنډ ګړېږو) سره له دې چې معاصرو نامتو ټولنپوهانو، وګړپوهانو (بشر شناسو) تاریخ پوهانو، اقتصاد پوهانو او د سیاسی علومو

**پوهانو د کارل مارکس او د هغه د پیروانو له خوا د تکامل په تړله نظریه او په مشخص ډول د د فیوډالیزم د تکامل او تحلیل په ډېرو اړخونو مستند علمي انتقادونه کړي دي او دغه افاقي تحلیلونه یې ناقص ګڼلي دي، که بیا هم موږ د دغو انتقادونو او نیمګړتیاوو باوجود د لویدیزې نړۍ د فیوډالیزم په باره کې د مارکس او د هغه د پیروانو نظر او تحلیل صحیح هم وګڼو، سره له دې هم د لویدیزې نړۍ د فیوډالۍ دورې او د افغاني ټولنې د مشخصاتو ترمنځ لوی توپیر شته. لویدیزو ټولنو د خپلو مشخصو جغرافیایي، اقلیمي، اقتصادي، تاریخي او مذهبي، اجتماعي، کلتوري او سیاسي شرایطو پر اساس تکامل کړی دی او د فیوډالۍ دورې ته رارسېدلي دي. د دې لوېې وچې زراعت په بارانونو کېږي، عیوسي مذهب لري او دغه مذهب په یو وخت کې له یوې ښځې سره د نکاح اجازه ورکوي، فیوډال په خپله سیمه کې د سیاسي، اقتصادي، قانوني او اداري چارو خپلواکي درلوده، هغه د پاچا مشاور او د جګړو په دوران کې د پاچا په طرفدارۍ د خپلې سیمې د ولس سرلښکر و. د فیوډال زمکه یا جاګیر نه وېشل کېده او دغه جاګیر د کورنۍ له یو غړي څخه بل غړي ته انتقالېده او په ځینو ټولنو کې بزګران هم خصوصي ملکیت ګڼل کېدل، په زمکې پورې تړل شوي وو او د جاګیر له خرڅلاو او انتقال سره جوخت یې نوي فیوډال د ملکیت بڼه غوره کوله. په لویدیزو ټولنو کې شخصي او خصوصي ملکیت ته قانوني تحفظ ورکړل شوی و او د پاچا په شمول هېچا د بل جایداد او ملکیت به زور نه شو اخیستلای.**

**برعکس افغاني ټولنه په مرکزي اسیا کې پرته ده او د دې هېواد په سلو کې اته اتیا برخه غرونو او شاړو دښتو نیولې ده او په سلو کې دولسمه برخه یې د زراعت وړ ده. د دې زراعتي زمکې لویه برخه د لویو او وړو ویالو په واسطه او به کېږي. د ټور ترکودتا مخکې د ټولنې د اقتصادي ژوند ډېره برخه په**

زراعت او مالدارۍ ولاړه وه او د دغه اقتصـــاد تر څنګه د ســـرمايه دارۍ د اقتصـاد پروسـه هم په ابتدايي بڼه رامنځته شـوې ده. افغاني ټولنه مسـلمانه ده، خپل مشخص اسلامي او ملي ارزښتونه لري او په دې ټولنه کې ملي او مذهبي ارزښـتونه دومره له يو بل سـره اخښـل شـوي دي چې ډېر خلک يط له يو بل څخه جلاکولای شي. په دې ټولنه کې بډايان يا د ډېرو زمکو خاوندان د يوې ښـــځې پر ځای دوه او درې او کله څلور ښـــځې کوي، طبيعي ده چې د يوې ښځې په تناسب د ډېرو ښځو اولاد هم ډېر وي. د اسلامي قانون له مخې د پلار زمکه يا د پلار په ژوند يا د هغه له مړينې نه وروســـته د کورنۍ د غړو ترمنځ ترکه کېږي او په عمومي ډول په افغاني ټولنه کې ترکه د ښـــځو او لونړو پر ځای د زامنو ترمنځ وي. د مثال په توګه که يو ســـړی زر جريبه زمکه لري او د ډېر ښځو څخه لس زامن لري، نو د ترکې په صورت کې د دغه سړي هر يو زوی ته ســـل جريبه رســـېږي او د هغه تر لســـمو پورې دغه زمکه دومره وېشـل کېږي چې به دويم يا په درېيم پښـت کې د دغه خان يا د کمونسـتانو په اصـــطلاح د فيوډال له اولادې څخه د وچې خانان جوړېږي. له بلې خوا په افغاني ټولنه کې شـخصـي او خصـو صـي ملکيت قانوني تحفظ نه درلود او نه د دې ټولنې په سـياسـي سـيسـتم کې خان، بای او ارباب ته په خپله سـيمه کې د سـياسـي، اقتصـادي، قانوني او اداري چارو د چلولو واک ورکړل شـوی و، بلکې د زمکې لرونکي حيثيت، وقار او قدرت دربار ته په وفا دارۍ پورې تړل شوی و. د وفا دارۍ په صورت کې هغه له خپلې زمکې او نورو امتيازونو څخه ګټه اخيستله او د هغه په وفادارۍ باندې د شک په صـورت کې دربار د هغه زمکـه او نور جـايـداد ضـــبطـاوه او هغـه او د هغـه د کورنۍ غړو تـه يې مختلفې جزاګانې ورکولې. د افغاني ټولنې د تاريخ په حواله دربار ډېر قوي قومي مشـــران محض د ډار په وجه بنديان کړي، يا يې وژلي او يا يې نورو

سیمو ته تبعید کړي دي. دربار سیاسي قدرت هغه چاته ورکاوه چې هغه دغه سیاسي قدرت او شخصیت د دربار مهرباني ګڼله او دربار ورځنې سیاسي قدرت په اسانه واپس اخیستلای شو. په بل عبارت سیاسي قدرت او شخصیت یې هغه چاته ورکاوه چا چې تر شاه قومي یا سیمه ییز ملاتړ او قوت نه درلود.

د یورپ په فیوډالي دوره کې قبیله یي روابط بېخي له منځه تللي وو او دغه روابط یوازې د فیوډال او بزګرو ترمنځ وو او د اروپا د فیوډالیزم د دورې د بزګرانو برعکس د افغاني ټولنې بزګران مستقل هویت او شخصیت لري. دوی د لویدیزو ټولنو د بزګرانو غوندې نه په زمکې پورې تړل شوي دي او نه د خان، بای او ارباب خصوصي ملکیت ګڼل کېږي. دوی په خپله خوښه بزګري او په خپله خوښه بزګري پرېږدي او په نوروکسبونو لاس پورې کوي.

په لنډه توګه ویلی شو، چې د افغانستان د روانې کشالې اساسي عامل دغه افاقي څېړنه ده او د دې څېړنې په وجه په ځینو افغانانو او په مشخص ډول په ځینو ځوانانو کې د بېګانه ګۍ عملیې وده وکړه او هم د دې عملیې په نتیجه کې زموږ ملي تراژیدي شروع شوه.

ټولنیز ارزښتونه:

د پوهانو په نظر بنیادم طبیعي او اجتماعي دواړه خصوصیات لري او د هغه ټولنیزو نورمونو او ارزښتونو هم د هغه له طبیعي غریزو او غوښتنو او اجتماعي مشخصاتو څخه سرچینه اخیستې ده. بنیادم خپلې ډېرې طبیعي غریزې او غوښتنې د ټولنې د اجتماعي ارزښتونو، دودونو او عنعنو تر کنټرول لاندې راوستلې دي او د هرې ټولنې غړو وګړو ورته له خپلو ځانګړو شرایطو سره سم د ټولنې د اجتماعي موسسو په چوکاټ کې مجرا ورکړې

ده، لکه څنګه چې بنیادم د اجتماعي خصوصیاتو په درلودلو او انکشاف په برکت د ارتقا د اوږدې پروسې په ډګر کې نور ژوي تر شا پرېښودل همدغه شان مختلفې انساني ټولنې د خپلو مادي او معنوي شرایطو او خصوصیاتو په لحاظ د ارتقا له مختلفو پړاوونو څخه تېرې شوې دي او د انسانانو د طبیعی غریزو او غوښتنو د ورته والي او مشابهت باوجود د هرې ټولنې ځانګړو مادي او معنوي مشخصاتو او شرایطو دغې ټولنې ته له نورو انساني ټولنو څخه جلا او مشخصه بڼه ورکړې ده.

دځینو لرغونپوهانو (ارکیالوجستانو) او تاریخپوهانو په نظر افغانان پنځه زره کلن او د ځینو په قول پنځوس زره کلن تاریخ لري او نامتو تاریخ پوهانو او ټولنپوهانو د افغانستان سیمې ته د تېرېدو او راتېرېدو د لویې لارې، د فاتحانو مضبوط سنګر، د هند د فتحه کېدو دروازه او د مختلفو قومونو د ټاټوبي او د مختلفو قامونو او ولسونو په یو او بل کې د ویلې کېدو د لوښي او نورو نومو نه ورکړي دي. دې ستراتیژیکې سیمې ته مختلف قامو نه، یرغلګر پوځونه او د خپل وخت لوی مذهبونه راغلي او له دې ځای څخه نورو سیمو ه تېر شوي او راتېر شوي دي. له ډېرو قامونو څخه ځینې قبیلې او خلک هم دلته پاتې شوي، مېشت شوي او یو تربله سره خلط شوي او د وخت په تېرېدو یې په دې سیمه ځلانده تمدنونه جوړ کړي او د تاریخ په اوږدو کې د دې خاورې د اوسېدونکو قامونو تمدنونو د چاپېره ولسونو د تمدنونو به ځنځیر کې د اتصال د کړۍ په حیث مهم مقام درلودلی دی.

د اسلام د مقدس دین نه مخکې په دې سیمه قبیله یي، محلي، هندویزم، بودیزم او زدشتي مذهبونه تېر شوي او د دوی په نتیجه کې د لرغونو مختلفو اما مختلفو قامونو عنعنه یي دودونو او مذهبي ارزښتونو د افغانستان د ولسونو د ژوند په ځانګړو اړخونو ډېرې ژورې اغېزې کړې دي. په زغرده

ویل کېدای شـی چې د افغانسـتان د عنعنه یي ټولنې دودونه او ارزښـتونه د یو قام ژبېږنده نه ده او نه په یوه لنډه موده کې د دې ټولنې غړو وګړو ته د منلو وړ ګرځېدلې دي، بلکې زموږ د عنعنـه یي ټولنې ولســـي دودونه او مذهبي ارزښـــتونه د یوې اوږدې عملیې په نتیجه کې منځته راغلي او زموږ د هېواد مختلفو قامونو په ډېر لږ توپیر یو شان منلي دي.

افغانسـتان ته د ویلې کېدو لوښـی ځکه وایي چې دلته له بومي خلکو برسـېره اریایي قبیلو، تور او ســـپین هونز، یونانیانو، عربو، مغلو او نورو قومونو ګډه ژوند کړی او د دغه ګډ ژوند له امله یو نژاد په بل او بل په بل ژبني او کلتوري اغېزې کړي او هم یې تر خپل منځ مشـــخص قبیله یي مهارتونه، د تخنیکي وسایلو استعمال او اجتماعي او کلتوري دودونه او مذهبي ارزښتونه یو او بل ته ورکړي او اخیستي دي.

زموږ په ټولنه کې چې کومو دودونو او ارزښـتونو د دې ټولنې په ژوندي پاتې کېـدو او پرمختـګ او د ټولنې د غړو وګړو د اړیکو ترمنځ د همـاهنګۍ او اجتماعي روحیاتو د پیاوړتیا په لار کې ګټوره نتیجه ورکړې، دغه ارزښـــتونه د ټولنې له خوا منل شوي، عملي شوي او په درونـد نظر ورته کتل شـوي دي او هغه عملونه چې د ټولنې د منل شویو نورمونو پر ضد شوي، د دې ټولنې غړو دغو عملونو ته انحراف، بد اخلاقي او د ټولنې پر ضـــد عملونه ویلي دي. زموږ د دودونو او ارزښـــتونو له مخې د افغاني ټولنې د ژوند په ټولو اړخونو کې د ښـه او بد عمل ترمنځ واضـح فرق شـته او د نورو انسـاني ټولنو غوندې دې ټولنې هم د ښـــه عمل نمانځلو او د بد عمل د رټلو او مخنیوي لباره د خپلو اجتماعي او مذهبي موســـســـو په چوکاټ کې دننه مختلف معیارونه او کړنلارې ټاکلي دي او د ټولنې هر غړی له دغو اجتماعي نورمونو ســره ســم چې زموږ د ټولنې د ژوندي، عملي او اخلاقي قانون بنې لري، د ښـه عمل په

کولو او د بد عمل په نه کولو مکلف ګڼل کېږي. دودونه او ارزښتونه د شرایطو له بدلون سره سم څه ناڅه بدلون مومي او د دوی ساتل او پرېښودل د بدلو شویو شرایطو لاندې له ګټې او تاوان سره ارتباط لري. هغه دودونه او ارزښتونه چې د ټولنې غړو وګړو ته ګټه رسوي، هغوی ساتل کېږي او هغه چې تاوان رسوي هغوی پرېښودل کېږي.

د افغانستان سیمه د ستراتیژیک موقعیت په لحاظ د تېرېدو او راتېرېدو لویه لار د هاو د دې سیمې ولسونو تل د هر یرغلګر په مقابل کې پرله پسې اوږدې دفاعي جګړې کړي او دغو جګړو په دوی کې له وطن سره د مینې او ازادۍ روحیه دومره ژوندۍ او قوي ساتلې ده، چې حتی دوی د افغانستان د مرکزي حکومت تسلط ته هم په اسانه غاړه نه ږدي. له بلې خوا د افغانستان مرکزي حکومت هم په اقتصادي، نظامي او اداري لحاظ دومره قوي نه و، چې د دې هېواد سیاسي پولو دننه ټول قامونه دې د مرکزي حکومت د ادارې لاندې راوستلای شي او ټول قامونه په پرتله د پښتنو قبیله یي ژوند د دوی د قبیله یي جوړښت، قبیله یي روابطو، قبیله یي فزیکي قوت، ساده اقتصادي ژوند، د پښتونولۍ د عنعنه یي کودونو او د ازادۍ د روحیې په لحاظ ډېر دوام کړی دی او دوی د مرکزي حکومت ادارې او قوانینو ته په خپلو چاروکې د مداخلې او بندیز په نظر ګوري. په لنډه توګه ویلی شو، چې د افغانستان ټول قامونه خپلې ډېرې مسالې د خپلو عنعنه یي دودونو او ارزښتونو سره سم د جرګو او مرکو له لارې فیصله کوي او د دې هېواد ټول ولسونه جرګه یوه منل شوې تاریخي موسسه ګڼي.

د جرګې موسسه:

د افغاني ټولنې د نورو اجتماعي موسسو غوندې د جرګې موسسې د دې هېواد د مختلفو قامونو له ولسي دودونو او مذهبي ارزښتونو څخه سرچینه اخیستې او له ډېرې لرغونې دورې څخه یې تراوسه د دې خاورې د ولسونو د ژوند په ټولو اړخونو کې مهم او ډېر فعال رول لوبولی دی. که پخوا اریاییانو کلیوالي جرګې ته سبها او د لویانو یا خاصانو ملي جرګې ته سمیتي ویلې، که نورو قامونو ورته نور نومونه ورکړي او که اوس د دې هېواد په مختلفو قامونو کې د مجلس، اجلاس، جلسه او شورا په نومونو شهرت لري او که د ځینو څېړونکو په نظر د جرګې موسسه د افغانستان په ټولو قامونو کې یوه پېژندل شوې، تجربه شوې او منل شوې عنعنه یې موسسه ده او د دې هېواد ټول ولسونه د دې موسسې د جوړښت او ترکیب او په جرګه کې د فعالو او موثرو اشخاصو د هویت، حیثیت او شخصیت سره پوره بلد دی.

د جرګې موسسه د افغاني ټولنې ټول واحدونه، کورنۍ، قبیلې، د محل اوسېدونکو او ملت سره او هم د دې ټولنې د اجتماعي، کلتوري، اقتصادي، سیاسي او نظامي ټولو چارو سره ژور ارتباط لري او د ولس د ژوند ټول اړخونه احتواکوي. زموږ په ټولنه کې هره جرګه او مرکه د مسالې د اهمیت په لحاظ دایرېږي او هم د هرې مسالې په ارتباط د اشخصو شمېر، حیثیت او جرګه ځای معلوم وي. د کورنۍ د مسالې لپاره د کورنۍ مشر یا مشران، د قبیلو ترمنځ د مسالې لپاره د قبیلو مشران د محل د مسالې لپاره د محل مشران او د ملي مسالې لپاره د ټول هېواد د مختلفو ولسونو مشران او متنفذ اشخاص په ټاکلو ځایو کې راټولېږي چې د معمول له مخې مرکې یا وړوکې جرګې به هوجرو او دېرو کې، د قبیلې، قبیلو او محل د جرګې په ټاکلو جرګه ځایو کې او لویې جرګې د هېواد په پایتخت کې دایرېږي.

په خپله سیمه کې هرڅوک هر چا ته معلوم وي، چې څوک څوک دی؟ زموږ به ټولنه کې مشرتوب زموږ له عنعنه یي خصوصیاتو سره ارتباط لري او هر څوک په یوه سیمه یا په یوه قبیله کې د مشرتوب دعوه نه شي کولای او نه د محل او قبیلط خلک د هر چا مشرتوب مني او نه ورته غاړه ږدي. د جرګې اشخاص معمولاً د سیمې خانان، ملکان، بابان، اربابان، سپین ږیري، پیران، سیدان او ملایان دي. مشر د خپل محل یا قبیلې د مشرتابه د کورنۍ غړی وي، د ده کورنۍ ویاړلې تاریخچه لري، خلکو ته د هغه د مشرانو خصوصیات معلوم وي او خلک د هغه د کورنۍ په لحاظ د هغه مشرتوب مني، شخصیت ته یې په دروند نظر کتل کېږي او ساهو کورنۍ او ساهو شخص یې ګني او درناوی یې کوي. له دې برسېره د هغه د مشرتابه تر شا ولسي قوت ولاړ وي، د زمکې څښتن وي، هوجره یا مهمانخانه چلوي، مېلمه دوست وي، د خپل ولس د غړو او نورو خلکو ترمنځ د ارتباطي او نماینده شخصیت موقف لري، د ولس ترمنځ امنیت ساتي، ولسي شخړې اواروي، د سولې او جګړې په دوران کې لارښوونه کوي، مستعد، پوه او زړه ور وي او د ولس عنعنه یي نورمونو کودونو او مذهبي ارزښتونو ته عملي بڼه ورکوي او په ټولو ولسي چارو کې پوره مهارت لري. ولسي ژوند او ولسي روابط یو مشر دې ته مجبوروي چې د محل یا قبیلې د غړو یا د نورو ولسونو له مشرانو سره تر خپله وسه ښه روابط وساتي او د ولس د منل شویو کودونو په چوکاټ کې دننه ولسي چلند وکړي.

مشخص اقتصادي تکامل د ټولنې په بنستیز جوړښت کې بدلون راولي او د دغه بدلون له راتګ سره د وروسته پاتې ټولنې سیاسي سیستم په ملي دولت بدلېږي او ورسره د ټولنې ټولې اجتماعي موسسې او اجتماعي روابط هم بدلون مومي او ملي کلتور هم ملي بڼه غوره کوي. تراوسه افغانستان په واقعي

مفهوم د ملي دولت مرحلې ته نه دی رسېدلی او د ملي سیاسي سیستم د نشتوالي له امله موږ تراوسه یو داسې ملي کلتور ته چې افغان شموله ملي بڼه ولري او ټولو ولسونو ته دې یو شان د منلو وړ وي، وده نه ده ورکړې. همدا وجه ده چې زموږ په وروسته پاتې ټولنه کې تراوسه د کلتوري روزنې او زده کړې عملیه په کورنیو پورې محدوده ده او تر اوسه د کورنۍ د غړو د روزلو او د ټولنې په کودونو، دودونو او ارزښتونو باندې د پوهېدو اساسي واحد کورنۍ ګڼل کېږي. هوجره یا مهمانخانه د مشرتابه د کورنۍ د غړو د اجتماعي کېدو، په ولسي روابطو د پوهېدو او د اجتماعي او سیاسي موقف د ساتلو اساسي مرکز دی. دلته کښېته، مساوي او پورته خلک راځي، دلته له مختلفو قشرونو سره د راشه درشې په سلوک پوهه پیداکېږي، د هر چا خبرې اورېدل کېږي او د جرګې او مرکې د منلو شویو اصولو پر اساس د مخالفینو نظر هم په سړه سینه زغمل کېږي.

زمکه او جایداد د مشرتوب مهم بنسټ ګڼل کېږي او منل شوی مشر د نورو په تناسب د ډېرې زمکې په درلودلو په خپلو سیالانو یا د خپلې قبیلې د مساوي غړو ترمنځ د اول فرد حیثیت پیداکوي. مشر د وینې او سیمې په ارتباط د یو مشخص واحد غړی وي او په مشخصه سیمه کې ژوندکوي. سره له دې چې د مشرتابه د کورنۍ  د خصوصي ملکیت برخه معلومه وي، لیکن تراوسه د خصوصي ملکیت پروسې زموږ د هېواد لوی اکثریت ګروپي او سیمه ییز شعور ته دې مات کړي او تراوسه هر مشر ځان په دغه شعور پورې منسوب ګڼي او ((زما)) پر ځای ((زموږ)) اصطلاح په شعوري ډول استعمالېږي. د مثال په توګه څه وخت چې یو مشر  نورو سیمو څخه راغلو مېلمنو ته  خپل قام او یا ولس ساحه او زمکه ورښیي، لومړی هغه ((زموږ)) د قبیلې یا ولس د سیمې حد، بیا ((زموږ)) د ټبر د واحدونو بریدونه (حدود)

وروســـته ((زموږ)) د کورنۍ او په پای کې ((زما)) برخې ته اشـــاره کوي او ((زموږ)) پرځای ((زما)) اصـــطلاح يوازې د خپلې محدودې برخې لپاره استعمالوي. سـره له دې چې زموږ په ټولنه کې د فرد خصـوصـي ملکيت يو منل شـوی واقعيت دی، خو بيا هم زموږ د هېواد په ډېرو سـيمو کې د زمکې خرڅلاو ته په سـپک نظر کتل کېږي او په عنعنه يي توګه د زمکې خرڅلاو ته د پلار او نيکه د هډوکو د خرڅلاو نوم ورکوي. له دې برســـېره د زمکې د خرڅلاو مساله ډېر محدوديتونه لري او که د ځينو مجبوريتونو په صورت کې يو شـــخص زمکه خرڅوي د نوموړي ده زمکه او جايداد د هغه ورونه اخلي او ورپسې يې د تره زامن او نږدې خپلوان د اخيستو حق لري او که دوی يې نه اخلي، نو بيا نورو ته د خيستو حق ورکول کېږي.

که له يوې خوا د زمکې اضـــافي توليد پ هوجره او مهمانخانه لګېږی او د هوجرې موسسه د مشرتابه د روابطو او حيثيت د ساتلو اساسي مرکز دی او د خلکو په اصـــطلاح چا چې هوجره او جرګه نه وي ليدلې، هغه د افغانانو په اجتماعي جوړښـــت او اجتماعي روابطو او اجتماعي روحياتو هم نه پوهېږي، له بلې خوا د قام او د زمکې قباله درلودل په مشـــرتابه کې دې شـــعور ته هم وده ورکوي چې د يو مشـــر د کورنۍ او د زمکې واحد د هغه د کهول او د کهول د زمکې د واحدونو برخه ده او د هغه د کهول او د کهول د زمکې واحدونه د هغه د ټبر او د ټبر له واحدونو ســـره ارتباط لري. د هغه ټبر او د ټبر د زمکې واحدونه د هغه د قبيلې او د هغه د قبيلې واحدونه او سيمه د قام په واحدونو او ســـيمو پورې پراخېږي او په نتيجه کې د قام واحد او د ســـيمو واحدونه د افغانســـتان د نورو قامونو او د ټول هېواد د خاورې نه جلا کېدونکې برخې ګڼل کېږي. هم د دې شـــعور په برکت د افغانســـتان مختلفو قامونو او ولســـونو د مشـــرتابه کورنۍ ((زما)) د وړوکي خصـــوصـي ملکيت

ځخه ((زموږ)) د هېواد پراخه مفهوم پوهطږي او همدا علت دی، که چېرې یو مشر د خپلې سیمې زمکې او ولس د نورو قامونو او ولسونو لاس لاندې نه غواړي، همدا شان هغه ته افغانان او افغانستان د نورو د لاس لاندې کېدل او یا غلامول له حده زیات ګران کار ښکاري، ځکه چې د افانانو د مذهبي او ملي عنعنو له مخې زمکه، ښځه او وطن د ناموس لوړ مقام لري. ناموس ته يې د تقدس درجه ورکړې ده او د افغانانو د واقعي دودونو او ارزښتونو ساتندوی دي. د مشرتابه د کورنۍ غړي هېڅکله د خپلو مقدساتو سره لوبه نه کوي.

د هرې جرګې تر راBللو مخکې جرګه ځای، د جرګې نوعیت، موضـــوع، اهداف او په جرګه کې د ګډون کوونکو هویت، مقام او د نماینده ګۍ حیثیت څرګند وي. زموږ په عنعنه يي ټولنه کې د قومي او روحاني مشرتابه په سر کې قومي مشـــران او روحاني شـــخصـــیتونه ولاړ دي. ځکه چې زموږ په ټولنه د هرې مهمې جرګې د ترکیب، کړنلارې او پرېکړو لپاره د قام فزیکي قوت او د روحاني شخصیتونو مذهبي نفوذ دوه مهم عنصره ګڼل کېږي او د یو عنصر د نشـتوالي له امله بل عنصـر جرګه د بریالیتوب پړاو ته نه شـي رسـولای. په مهمو جرګو کې قومي مشـران د خپلو قامونو او ولسـونو او پیران، سـیدان او ملایان د مذهبي موسسې نماینده ګي کوي. په جرګه کې د هر مشر حیثیت او نفوذ د هغه د قبیله يي او ولسي ملاتړ په بنسټ ولاړ وي او د مذهبي شخص نفوذ د هغه له مذهبي حیثیت څخه سـرچینه اخلي. قومي مشـران د جرګې د پرېکړې د عملي کېدو فزیکي قوت تشـــکیلوي او روحاني شـــخصـــیتونه د مذهبي نفوذ له استعمال څخه کار اخلي او د دغو دواړو موسسو نماینده ګان هر یو په خپل وار خپل موقف او حیثیت پر اســـاس د جرګې په اهمیت، جریان، پرېکړو او د پرېکړو په عملي کېدو مشخص تاثیر لري.

د جرګې د منل شـــویو عنعنه يي اصـــولو له مخې قومي مشـــران په حقوقي او جنايي دواړو جرګو کې په خپل دې موقف چې: کوتک په دورو لپاره وهې او خبره به د خدای لپاره کوې. پوره پوه وي. جرګه مار د هویت، حيثيت او شـخصـيت ځبنـتن وي او په جرګو کې يې د رښـتيا د ويلو، اعتماد سـاتلو، د جرګې په چارو د پوهې او په قضـيو کې د بېطرفۍ امتحان ورکړی وي. جرګه مار په دې پوهېږي چې په جرګه کې مدعي او مدعي عليه حاضر وي او دواړه خواوې له خپلو حقوقو څخه د دفاع د کولو د جرګې په پرېکړه د قناعت د نه کولو په صـــورت کې د بلې جرګې د راغوشـــتلو او يا په جرګه کې د نورو اشخاصو د شاملولو پوره حق لري. هغوی په دې هم پوهېږي چې د جرګې د بحث په موضـــوع د سـيمې خلک او د جرګې نور ګډون کوونکي پوره معلومات لري چې د مسـالې واقعي عوامل څه دي، اصـلي واقعيت څه شـی دی، څوک په حق او څوک په ناحق پورې نښـتی دی او په مسـاله کې څوک پړ او څوک وړ دی. که په قضيه کې د مشرتابه د کورنۍ يا قام غړی هم دخيل وي، د جرګې د نورمونو له مخې مشر ځان مکلف ګني، چې جرګې تر پايه په ده باندې د اعتماد کولو په وجه خپله بېطرفي او ازاد قضاوت ټينګ وساتي او د بې ځايه دفاع او وکالت، بډې اخيســـتو او طرفدارۍ څخه ډډه وکړي. د جرګې د نورمونو پر ضـــد عمل د هغه شـــخصـــيت ته لوی تاوان رســـوي او ســـيمې په ولس کې د دروغجن، پلوي بې اعتماده او رشـــوت خور په نومونو شهرت پيداکوي، د مشرتابه لپار خصوصيات له لاسه ورکوي او په نتيجه کې د ده د مشرتابه مقام د هغه نږدې تربور ته انتقال مومي.

په افغـاني ټولنـه کې د تربګنۍ متقـابـل رقـابـت د فردي او ډلـه ييز قـدرت د انحصـار پر ضـد فعاله عمليه ده او دغه عمليه تل زموږ د ټولنې په اجتماعي او ســياســي جوړښـــت کې د برابرتيا د اعاده کولو او خوندي ســـاتلو لپاره عمل

کوي. همدا شــان د متقابل رقابت پروســه زموږ د ټولنې په اجتماعي روابطو کې د انحصــاري قدرت او اختیار او خپل ســرۍ پر ځای د ولســي کېدنې پروسې ته چې موږ ورته ډله ییز او یا د جرګې سیستم وایو، وده ورو ي. زموږ په ټولنه کې د متقابل رقابت او د تربور په طرفدارۍ د خلکو د ملاتړ او وفادارۍ د تغییر ډار مشــر دې ته مجبوروي چې تر خپله وســه دې په ولســي کودونو ټینګ ودرېږي او د خپل ســرۍ پر ځای دې د جرګې له پرېکړو ســره سم چلند وکړي.

جرګه تل د ملا د قران مجید مبارک ایت پر تلاوت پیلېږي او زموږ د ټولنې په دې ولسي یا د دموکراسۍ په عملیې کې د ولسي او مذهبي مشــرانو او د ســیمې له خلکو برســېره مدعي او مدعي علیه هم حاضــر وي. په جرګه کې دواړه ډلې د قضــیې په اړون منطقي مســتند بحث کوي، د مســالې په مختلفو اړخونو رڼا اچوي او دواړه خواوې له خپلو حقونو څخه دفاع کوي او جرګه مار د دواړو ډلو خبرې په ډېر دقت اوري. زموږ په جرګو کې د ازادۍ او په ازادۍ باندې د بندیز حد معلوم دی. د تعامل له مخې به جرګه کې د نظر د ازادۍ او په نظر باندې د بندیز د اصــولو ټینګ مراعت کېږي. که له یوې خوا په جرګه کې ګډون کوونکي او مدعي او مدعي علیه دواړه د خپلو نظریو د څرګندولو د ازادۍ پوره حق لري، نو له بلې خوا هغوی د داســې الفاظو له اســتعمال څخه چې د ســپکاوي، تحقیر، پیغور، تحکم، راپارونې او تبعیض رنګ لري، پوره ډډه کوي او د جرګې ترپایه د دغه شان الفاظو د نه استعمال مراعت کېږي.

د ســردارمحمد داود خان د جمهوریت د دورې په وروســتنیو کلونو کې د کونړ ولایت او د خوســت د لویې ولســوالۍ په مرکزونو کې د محلي جرګو بنســټ کېښــودل شــو. دې جرګو تجربوي بڼه درلوده او قومي او مذهبي

مشـــران یې غړي وو. دوی ته په دغو مرکزونو کې د حکومت له اداري او قضايي پرسونل سره د حقوقي، جنايي او سياسي قضيو په حل کې د مرستې وظيفه او واک ورکړل شــوی و. د دغه وخت حکومت اراده کړې وه چې به دغو دوو مرکزونو کې د تجربې نه وروســـته د محلي جرګو ســـيســـتم نورو ولايتونو ته هم وغځوي، رواج یې کړي او د محلي جرګو له لارې د محل خلکو ته د خپلو ســيمو په اداري او قضـــايي چارو کې د برخې اخيســتو لاره اواره کړي.

د ۱۹۷۷ م کال په وروستۍ نيمايي کې استاد حکيم تنيوال او زه د يونسکو له خوا د پښتنو ټولنيز– اقتصادي جوړښت د پروژې د ريسرچ په اړوندکونړ او خوســـت ته ولاړو او د پروژې د موادو د راټولولو او ليکلو په ترڅ کې مو د دغو دواړو مرکزونو د محلي جرګو له غړو سـره خبرې هم وکړې چې د دغو جرګو د پراخه هر اړخيزو فعاليتونو په باره کې زما شـخصـي تاثرات په لاندې ډول خلاصه کېدای شي:

۱– افغانستان د مرکزي حکومت سيستم درلود. (درلود ماضي فعل دی او زه د ماضي ټکی ځکه استعمالوم چې اوس په افغانستان کې نه مرکز شته او نه د حکومت کولو ســيســـتم). په ټولو ولايتونو کې لو رتبه ملکي او عســـکري مامورين او صـاحب منصبان د مرکز له خوا مقررېدل. د کونړ او خوست لوړ رتبه مامورين او قاضـــيان هم له نورو ســـيمو څخه راغلي خلک وو او په مشـــخص ډول د کابل اوســـېدونکي مامورين د خوســـت او کونړ د خلکو د اجتماعي جوړښـــت او قبيله يي روابطو او دودونو سـره بېخي نا اشـنا وو. په اکثره حقوقي مسـايلو کې به يا اسـناد نه وو او يا به جعلي اسـناد جوړېدل او په جنايي قضـــيو کې به په پيســـو اخيســـتل شـــوي شـــاهدان تېرېدل، خو بيا هم مامورينو او قاضـــيانو به ورباندې ســـترګې پټولې او ډېرې فيصـــلې به په جعلي

اســـنادو او د کرايي په شـــاهدانو کېدلې. له بده مرغه د افغاني ټولنې ســـره د بېګانه‌ګۍ احساس، رشوت او سفارش زموږ اداري او قضايي سيستمونه د فساد په رنځ اخته‌کړي وو. عدالت د رشوت په تله تلل کېده. چا چې په تله کې د ډېرو پيســـو د اچولو توان درلود هغه وړ او مقابل لوری يې پړ و او د قوي سفارش څښتن بريالی ګڼل کېده. ځينو د مدعي او مدعي عليه نه يو شان رشوت اخيست او ځينو قاضيانو له ځينو قضيو څخه لنګه غوا جوړه‌کړې وه، دوی بډې اخيستې، ليکن فيصله يې نه‌کوله او د دې لنګې غوا شيدې به يې راتلونکو قاضيانو ته هم پرېښودلې.

د کونړ خلکو د حکومت شـــرعي، قانوني او اصـــولي اجراتو ته خپل محلي تعريف ورکړی و. د دوی د تعريف له مخې د شرعي ټکي معنا ده چې لومړی مدعي او مدعي عليه دواړه د شريعت په نوم محکمې ته راوله او دلته دواړه ډلې په شـــر اخته‌کړه او محکوم يې کړه. قانوني ټکي معنا ده چې بيا دغه دواړه ډلې د دوی د شرارت او محکوميت په ناوړه انجام پوره قانع‌کړه او د اصولي ټکي مقصـد دا دی چې د شـرارت او محکوميت په ناوړه انجام له قانع‌کېدو وروسته له دواړو ډلو څخه ډېرې پيسې حصول کړه.

۲– د کونړ او خوست د تجربوي جرګو مشران، قومي او مذهبي مشران وو او د دې جرګو ټولو غړو په قومي او ولسي چارو کې پخه تجربه لرله. دوی د قومي مشـــرانو په حيث د خپلو قامونو په دودونو، ارزښـــتونو او عنعنو پوره پوهېدل، خپـل خلـک يې پېژنـدل او خلکو تـه هم دوی او د دوی کورنۍ معلومې وې. د جرګې غړو ته پړ او وړ معلوم دی او دوی د جرګې غړي له نورو سيمو څخه د راغليو مامورينو او قاضيـانو غوندې په رشـوت، سفارش، جعلي اسنادو او د کرايي په شاهدانو نه شي تېر ايستلی، د قضيې دواړه ډلې

مجبوربېدلې چې د خوســـت په اصـــطلاح ((نرخ)) او د کونړ په اصـــطلاح ((تړې)) ته غاړه کېږدي او د جرګې پرېکړه ومني.

۳- د مامورینو او قاضـــیانو د ((ملات)) مفهوم د دغو ســـیمو د قبیله یي دودونو او اجتماعي روحیاتو سـره تضـاد درلود، ځکه چې خلکو ته د ملات مفهوم د زور، تحکم او ماتې معنا لرله او د محکمې له خوا د ملامتیا اعلان او اوازې د ملامت شـــخص، شـــخصـــیت او د هغه د کورنۍ حیثیت ته لویه صـــدمه رســـوله او هغوی یې د ماتې خوړلې ډلې په حیث د ولس له پیغور او ســـپکاوي ســـره مخامخ کول. له همدې امله په کونړ کې ځینې ســـاده حقوقي مســـالې د ملامتیا حکم نه وروســـته په جنایي قضـــیو یا په مرګ ژوبله بدلې شوې دي.

برعکس د تجربوي جرګو کړنلارې هم ســـاده او هم عملي وې. د مهمو حقوقي او جنایي قضـــیو د حل لپاره د جرګې غړي د مدعي او مدعي علیه کورنیو ته تلل، د قضیې په ټولو اړخونو ورسره پټ او ښکاره ګړېدل، مذهبي علماوو د اسـلامي احکامو پر اسـاس او قومي مشـرانو د اجتماعي دودونو او واقعیتونو له مخې د دواړو ډلو پام په دنیا او اخرت کې د شخړو ناوړه عواقبو ته راګرځاوه، دواړو ډلو ته یې واقعیتونه ویل، پړ یې پړ او وړ یې وړ باله او د مشرانو د جرګې په خاطر یې د تېرېدو، ښنبلو او روغې، جوړې هیلې کولې. د مدعي او مدعي علیه کورونو ته د مشـــرانو ورتګ، د مشـــرانو هیلې منل او د مشـــرانو د جرګې درناوی په واقعیت کې د دواړو ډلو درناوی ګڼل کېده. د تجربوي جرګو هره پرېکړه له اسلامي روحیې د ولس د ارزښتونو، نرخونو او تړو سـره سـمه کېدله او د جرګې پرېکړه نه ملامتیا وه، نه زور، نه تحکم او نه ماتې، سپکاوی او پیغور ګڼل کېده، بلکې تر پرېکړې وروسته دواړو ډلو به په

ویاړ ویل چې هغوی د مشـــرانو په خاطر یو او بل ته تېر شـــول او د جرګې په احترام یې خپلو کې سره روغه جوړه وکړه.

د دغو جرګو له پرېکړو څخه ســـرغړول ډېر ګران کار و، ځکه چې د هرې پرېکړې په ســـند به د جرګې غړو هم د شـــاهدانو په حیث امضـــاګانې کولې، پرېکړه به رسمي کېدله، دوسیه به بندېدله او د مامورینو او قاضیانو لنګه غوا به هم وچېدله او له پرطکړې څخه د سرغړولو په صورت کې سر غړوونکي د جرګې د غړو په عکس العمل او د ســـر غړولو په ناوړه نتایجو هم په خپله پوهېدله.

لویه جرګه:

له قومي او محلي جرګو سره د لویې جرګې توپیر په دې کې دی چې به قومي او محلي جرګو کې سیمه ییز مشـران ګډون کوي او په لویه جرګه کې د هېواد د ټولو ولسـونو او قشـرونو مشـران او نماینده ګان د لویې ملي موضـوع لپاره راټولطږي او د حل لار ورته پیداکوي. په تاریخي لحاظ زموږ په هېواد کې ډېرې لویې جرګې دایرې شـوې او ډېرو لویو شـخصـیتونو په کې ګډون کړی دی او دغه لویې جرګې یا د منل شـــویو مشـــرانو له خوا او یا د پاچا له خوا رابلل شـــوې دي. په دواړو صـــورتونو کې د هرې لویې جرګې د رابللو نه مخکې د جرګې په جوړښـــت، د جرګې په ملي اهمیت او په لویه جرګه کې د قومي او مذهبي مشـرانو د شـخصـیت، حیثیت، نفوذ، واقعي نماینده ګي او د لویې جرګې د پرېکړو د عملي کېدو په باره کې پوره توجه شوې ده، چې دلته د ډېرو لویو جرګو له جملې څخه ځینې د مثال په توګه وړاندې کېږي.

پر ۱۷۰۷م کال میرویس خان د کندهار په مانجه کې لویه جرګه راوغوښـــتله او د دې لویې جرګې لویه ملي مســـاله د ایران له صـــفوي ســـلطنت څخه د

افغانستان د ازادۍ او خپلواکۍ موضوع وه. په دغه وخت کې میرویس خان نه پاچا او نه امیر و، بلکې هغه د غلجو د مشرتابه قبیلې هوتک و او په هوتکو ې د یوې منل شوې مشرتابه کورنۍ منل شوی مشر و او د دغه مشر کورنۍ او د هغه شخصیت، حیثیت هویت او د نفوذ ساحه ټولو قامونو او ولسونو ته څرګنده وه. د قام د لوی مشر په وینا په دغه لویه جرګه کې د مختلفو قامونو او ولسونو منل شویو نامتو قومي او مذهبي مشرانو د ابدالیانو، غلجیانو، تاجیکو، هزاره او نورو... په نماینده ګۍ ګډون وکړ او په جرګه کې د هېواد د خپلواکۍ په ستراتیژۍ او تاکتیکونو هر اړخیز بحثونه وشول، د جرګې به دوران کې د ملي مسالې د اهمیت په لحاظ خپ لمنځي قومي او ولسي شخړې هېرې شوې، ټول مشران د خپل هېواد د هویت او استقلال په لار کې هر ډول ځاني او مالي قربانۍ ته چمتو ودرېدل او په ګډه یې د ملي خپلواکۍ لپاره هلې ځلې شروع کړې؛ د خپلواکۍ نهضت یې د بریالیتوب پړاو ته ورساوه، لیکن میرویس خان تر پایه د پاچا، امیر او نورو القابو پر ځای د مشر په نوم اکتفا وکړه او محض د مشر په توګه یې د خپل ملت مشرتابه ته دوام ورکړ.

د نادرشاه افشار تر وژلو وروسته د افغانانو عمومي قوماندان نورمحمد خان لجي او قوماندان احمد خان ابدالي د غلجو، ابدالیو، تاجکو او نورو له عسکرو سره کندهار ته راغلل او نورمحمد خان غلجي د جرګې غوښتنه وکړه. د ۱۷٤۷م کال جرګه کې د پښتنو، تاجکو، بلوڅو... او نورو قامونو مشرانو ګډون وکړ. په بحث او پرېکړې لپاره وړاندې شوه. د مشرتابه مقام ته نورمحمد خان غلجی، محبت خان پوپلزی، جمال خان بارکزی، موسی خان اسحق زی او نصرالله خان نورزی کاندید وو. پوره اته ورځې د مشرتابه د ټاکلو موضوع دوام وکړ او هر کاندید د خپلې کورنۍ او قبیله یې فزیکي

قوت او اهمیت په لحاظ خپل ځان د مشــرتابه د مقام مســتحق ګڼله او جرګه اوږده او جنجالي وه. بالاخره په نهمه ورځ د جرګې غړو صابرشاه کابلي ته د انتخاب واک ورکړ او صابرشاه په جرګه کې ناست زلمی احمدخان ابدالي د افغانانو د مشرتابه او د افغانستان د خپلواکۍ د اعاده کېدو لپاره وټاکه او هغه په خپل لاس احمدخان ته د غنمو تاج ور په سـر کړ او د احمدشــاه ابدالي په نوم یې اعلان کړ. د دې جرګې دا لاندې څو ټکي د یادونې وړ دي:

پیر صــابرشــاه کابلی یو روحاني شــخصــیت و او هغه له کندهار او د افغانانو قبیلو ســـره د وینې ارتباط نه درلود. د تعامل له مخې افغانان تل په لویو خپل منځي قامي شخړو او قضـیو کې منل شـوي روحاني شـخصـیت ته د پرېکړې واک ورکوي. صابرشاه ته د افغانستان د مشرتابه د انتخاب د واک له ورکولو څخه دا واقعیت په خپله څرګندېږي چې افغانان په خپل دین مین ملت دی. د روحاني شخصیت په پاکۍ، پوهه، تجربه او بېطرفۍ پوره باور لري او روحاني شـخصـیتونه د خپلې عنعنه یې ټولنې نه جلا کېدونکې برخه ګڼي. له بلې خوا د روحاني پیرانو دربار د قامونو او ولسونو د درناوي مرکز وي. دلته د قبیلو او ولسونو مشران، مذهبي علما او هر ډول خلک راځي او ځي، هر ډول خبرې کېږي، هر ډول معلومات تبادله کېږي او د دربار د مرکزیت په لحاظ روحاني شخصیت هم د سیمې په ټولو قبیله یي، ولسي او ملي سیاسي جریانونو او په مشخص ډول د نامتو کورنیو د نامتو شخصیتونو د شخصیت استعداد، نفوذ او سیاسي تمایلاتو په باره کې کره معلومات لري. د ځینو لیکوالو په اثارو کې دا خبره تکرار راغلې ده چې د احمدخان د سدوزو قبیله وړوکې وه او د دغې وړوکې قبیلې له فزیکي قوت څخه نورو قبیلو ډار نه کاوه، نو ځکه صـابرشـاه احمدخان د مشـرتابه لپاره وټاکه. شـاید چې ځینو لیکوالو دغه تعبیر د بارکزو شــهزادګانو د خوشــالۍ په خاطر کړې وي، د دوی په نظر حاجي جمال خان

بارکزی ځکه ونه ټاکل شــو، چې د هغه قبیله لویه وه او نورې قبیلې له هغه د ده د قبیله يې فزیکي قوت څخه ډارېدلې.

ســره له دې چې د قامونو ترمنځ په عملي سیاسـت کې د لویو قبیلو د فزیکي قوت د انحصار ډار یو واقعیت دی، اما د احمدخان په اړوند دغه نظریه سمه نه ښـــکاري، ځکه چې په ټولو ابدالیانو کې د احمدخان کورنۍ ډېره اوږده تاریخچه درولده او د ده کورنۍ د خپل وخت په ملي ســـیاســـت کې عملي امتحان ورکړی و او د عملي ملي سیاست په لحاظ د هغه کورنۍ په افغانستان او په خواوشا نورو هېوادونو کې منل شوې او پېژندل شوې کورنۍ وه، بلکې د هغه کورنۍ د قام د مشرتابه نه بورته د دربار سطحې ته رسېدلې وه. له دې برســېره په خپله زلمی احمدخان یو مســتعد ســیاســي مشــر، تجربه شــوی عسکري جنرال، سوفي او شاعر شخصیت و او د خپل وخت له سیاسي او عســکري تجربو ســره یوځای کندهار ته راغلی و. ټول پوهېدل چې د جمال خان بارکزي په تناسب د نورمحمد خان غلجي قبیله يې قوت زیات و. په دې لویه جرګه کې د قبیلې د فزیکي قوت پر ځای د شخصیت موضوع مطرح وه او دغه شــخصــیت یوازې د صــابرشــاه غوندې روحاني شــخصــیت لیدلی او پېژندلی شــو او هغه دغه شــخصــیت او د افغانســتان د خپلواکۍ د اعاده کېدو توان یوازې د زلمي احمدخان په وجود کې لیده. د صابرشاه انتخاب په عمل کې اثبات کړه، چې زلمی احمدخان له احمدشـــاه کېدو وروســـته ډېر ژر د ((بابا)) لوړ مقام ته ورســـېد، د افغانانو په زړونو يې پاچاهي کوله او د خپل هېواد په تاریخ کې ژوندی او ابدي پاتې شو.

د ۱۸٤۱م کال د نومبر پر لومړۍ نېټه د کابل په ښـــار کې لویه جرګه خپل ځانګړي خصـوصـیات لري. په دغه وخت کې د برېټانوي هند او سـکهانو له یرغلګر پوځ سـره یوځای شـاه شـجاع په کابل کې دی او امیر دوسـت محمد

خان له تخت نه غورځېدلی دی. په دې جرګه کې د قامونو نامتو مشـــران او مذهبي علما د انګرېزانو پر ضـد د ملي پاڅون، د غازيانو د مشرتابه او د شاه شجاع په باره کې له ډېرو مهمو سوالونو سره مخامخ دي. دا هغه وخت دی چې د انګرېزانو په پراخه امپراتورۍ کې لمر نه ډوبېږي او د دوی د نړيوال نظامي قوت د هيبت نه په وجود ويښـــته نېغ ودرېږي او غازيان هم په دې واقعيت پوره پوه دي. په دې جرګه کې د غلامۍ او خپلواکۍ ترمنځ فيصــــله حتمي ده. يا به غازيان د انګرېزانو غلامي مني او يا به د خپلواکۍ لپاره هر ډول قربانۍ ته چمتو کېږي. بالاخره د قربانۍ فارموله ومنل شـوه او د پاڅون لپاره ترتيبات ونيول شـول. په دې جرګه کې غازيانو د افغانانو له منل شـوې عنعنې سـره سـم وزير اکبرخان د امير دوسـت محمد خان څلورويشـت کلن زلمی زوی د مشـــر په توګه وټاکه. وزيراکبر خان نوی له بخارا څخه راغلی و او له غازيانو څخه يو هم دا اعتراض ونه کړ چې غازيان له انګرېزانو ســـره په غزا بوخت وو او وزير اکبر خان په بخاراکې نـاســـت و. غـازيان خپلواک افغانان وو او هغوی د افغانستان د مشرتابه عنعنه يې موسـسه پېژندله. په دې کې هېڅ شک نه و چې شاه شجاع د لوی احمدشاه لمسی او د افغانستان د تاج او تخت وارث و، اما غازيانو هغه معاف نه کړ، ځکه چې هغه لاس پوڅی و. د انګرېزانو د يرغلګر پوځ په مرســـته راغلی و، تحميل شـــوی و او دغه شـــهزاده د افغانانو د خپلواکۍ په ناموس تېری کړی و او افغانان يې د نورو غلامانکول غوښـتل. د جګړې په ډګرکې د غازيانو او انګرېزانو دوه جګړه مارې ډلې مخامخ شوې. بله ډله هېڅ نه وه. نه مشران بهر جوړ شوي وو او نه يې عرب او عجم تر شا ولاړ وو. په نتيجه کې انګرېزانو ماتې وخوړله، شاه شــجاع په مرګ محکوم شــو او خپلواکو غازيانو په خپلو قربانيو د خپلواک ملت خپلواکي وګټله.

لومړۍ نړیواله جګړه روانه وه، د جرمنیانو او ترکانو جرګه کابل ته راغلې وه او دې جرګې کوښښ کاوه چې د افغانستان په مرسته او ملګرتیا د برېتانوي هند پرضد د جګړې نوی محاذ پرانیزي. د دغې جرګې له راتګ سره د افغانستان دربار، شهزادګان، بیروکراتان، قومي او ولسي مشران او روحاني او مذهبي شخصیتونه په درې ډلو ووېشل شول. انقلابي ډلې د افغانستان د بشپړې ازادۍ او خپلواکۍ لپاره د انګرېزانو پر ضد د جګړې پلوي کوله، دویمې ډلې د انګرېزانو طرفداري کوله او درییمه ډله د افغانستان د بې طرفۍ طرفداره وه. لومړی ځل امیر حبیب الله خان د درې ډلو د غوښتنو او د خارجي هېوادونو د لوی فشار سره مخامخ شو. امیر حبیب الله د افغانستان د عیني شرایطو او د نړیوالې جګړې د جریان او نتایجو له امله د بې طرفۍ سیاسي غوره کړ او افغانستان یې بې طرفه هېواد اعلان کړ. هغه د افغانستان د بې طرفۍ په اړوند په ۱۹۱۵م کال لویه جرګه راوغوښتله او د جرګې ټولو نامتو شخصیتونو د افغانستان د بې طرفۍ پالیسي تایید کړه. په واقعیت کې هم د دې جرګې پرېکړه د افغانستان د راتلونکو حکومتونو د بې طرفۍ د سیاست اساس وګرځېد او هم د دغې پرېکړې په تعقیب افغانستان په دویمه نړیواله جګړه کې بې طرفه پاتې شو، د سرې جګړې په اوږده موده کېپې په نړیوالو مسالو کې د فعالې برخې اخیستو، د ازاد قاوت او په نظامي ډلو ټپلو کې د ګډون د نه کولو اصول ټینګ وساتل، افغانستان د سیمې لومړنی بې طرفه هېواد و چې پر ۱۹۵۵م کال د باندونګ (اندونیزیا) د ناپیلو یا بې طرفه هېوادونو په لومړۍ غونډه کې د دغه نړیوال نهشت بنسټ ایښودونکی غړی شو. زموږ د هېواد د بې طرفۍ درې شپېته کلن عنعنه یې سیاست د خلق–پرچم د رژیم د تحمیل د شوروي اتحاد د یرغل او د خارجیانو له خوا د افغانانو لپاره د جهادي مشرتابه د ټاکلو په نتیجه کې له منځه ولاړ.

د ۱۹٦٤م کال د سپتمبر په میاشت کې د اساسي قانون د تصویب لپاره لویه جرګه جوړه شوه، په دې لویه جرګه کې د ولسي جرګې د یوولسمې دورې غړیو، د مشرانو جرګې غړیو، د پاچا انتصابي وکیلانو چې څلور ښځې هم په کې شاملې وې؛ د کابینې غړیو، د سترې محکمې غړیو، د اساسي قانون د مسودې د جرګه کی غړیو او د مشورتي کمېسیون غړیو برخه درلوده، په دې لویه جرګه کې ٤٥٢ تنو ګډون کړی وو.

دا لویه جرګه د افغانستان د خپلواک پاچا له خوا د خپلواک هېواد پایتخت کابل کې د خپلواکو افغانانو د نوي اساسي قانون د تصویب په خاطر رابلل شوې وه. په دې لویه جرګه کې د افغانستان نامتو قامي او ولسي مشرانو، روحاني او مذهبي شخصیتونو، ملکي او نظامي لوړ رتبه مامورینو، ښځو، تعلیمیافته او پوهو اشخاصو د هېواد د ټولو قشرونو نماینده ګي کوله. د نوي اساسي قانون موده د جرګې د بحث موضوع وه. په اته ورځنۍ لویه جرګه کې د اساسي قانون هره ماده لوستل کېده او د بحث وړ هره ماده تر ازاد بحث او نظر وروسته منظورېدله. د نوي اساسي قانون له نافذېدو وروسته لویه جرګه د اساسي قانون برخه شوه او د اسلامي اصولو، افغاني عنعنو او نړیوال سیاسي، اقتصادي او اجتماعي نویو جریانونو سره سم په هېواد کې د دموکراسۍ او ازادۍ دوره پیل شوه. د دولت اجرائیه، مقننه او قضاییه قواوې یو له بلې څخه جلا شوې، د خلکو حقوقو او وظایفو ته قانوني بنه ورکړل شوه، د ګوندونو او مطبوعاتو ازادي او فعالیت ومنل شو او د افغانستان په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره خپل سره او مطلقه پاچاهي په قانوني او مشروطه پاچاهۍ بدله شوه او د دې اساسي قانون له مخې د پاچاهي کورنۍ یو غړی هم د کابینې، پارلمان او سترې محکمې غړیتوب ته د کاندیدېدو حق نه درلود.

د دې لويې جرګې لـه ګـډون کوونکو څخـه لوی اکثريت د دولســـمې او ديارلســـمې دورې په انتخاباتو کې له خپلو انتخاباتي حوزو څخه د وکيلانو په حيث وټاکل شـول او د دغو وکيلانو مطلق اکثريت قامي او ولسـي مشـران او روحاني او مذهبي شـــخصـــيتونه او ملي عناصـــر وو. دوی د خپلې ټولنې اجتماعي جوړښـــت، اجتماعي روابط او خپل تاريخي رســـالت پوره پېژندہ. دوی د څو وکيلانو غوندې چې (( روح او جسد دواړه يې په شوروي شيطان خرڅ کړي وو)) د نورو هېوادونو مـدحې نـه کولې، بلکې د خپلو خلکو د غوښـــتنو نماينده ګي يې کوله، د افغانانو، افغانســـتان او نړيوال پرابلمونه يې په ګوته کول، د ولس او حکومت ترمنځ يې د ارتباطي وســـيلې رول لوباوه، په خپلو حوزو کې يې د دولت د انکشافي پروژو له عملي کېدو سره مرسته کوله او په ولسي جرګه کې په مهمو موضوعګانو باندې د دوی ويناوې مستقيماً له راډيو څخه خپرېدلې او ورځپاڼو نشـرولې. سـره له دې چې افغانسـتان ډېری سـياســـي، اقتصـــادي او اجتماعي ســـتونزې درلودې، اما زموږ ټولنه زموږ له داخلي او خارجي شرايطو سره سمه د ارتقا د اصولو پر اساس مخ پر وړاندې روانه وه او د ســياســي، اقتصــادي او اجتماعي ســتونزو له منځه وړلو لپاره اساسي پلانونه په نظر کې نيول شوي وو.

ولې د جرګې د نوم مخالفت کېږي؟

زموږ د رواني ملي تراژيدۍ د ډېرو عواملو په باره کې زياتې پوښـتنې کېږي او د دغو پوښـــتنو په لړ کې ځينې خلک دا پوښـــتنې هم کوي چې ايا زموږ دغه ملي تراژيدي په شـعوري توګه تحميل شـوې او که په لاشـعوري توګه؟ ولې د افغانانو د جرګې د عنعنه يي موسسې پر ضـد دومره شـديد مخالت روان دی که له اوږده بحث څخه تېر شو، نو د دې دواړو پوښتنو ځواب په يوه سياسي فارموله کې پروت دی. عملي سياست دغه فارموله حکم کوي چې:

د سیاست په عملي ډګر کې هېڅوک په هېڅ د خدای لپاره مفته سرمایه ګذاري نه کوي، بلکې د دې سیاسي فارمولې له مخې د لاس باندې (څوک چې سرمایه ګذاري کوي) او لاس لاندې ( پر چا چې سرمایه ګذاري کېږي) سیاسي ډلو ترمنځ ((د راکړې ورکړې)) خبره ډېره اهمیت لري او دغه عملیه (د څه راکړه او څه واخله) د عملي سیاست پر محور چاپېره ګرځي. دغه عملیه نه د ریاضي پېچلې فارموله او نه مغلقه فلسفه ده، بلکې یوه ساده او تجربه شوې نسخه ده او د عملي سیاست په ډګر کې دا نسخه داسې عملي کېږي؛ لاس باندې ډله لاس لاندې ډلې ته وایي: ته به زما د هر حاکم اطاعت کوې او د خپل هېواد د واکمنۍ واګې به زما په لاس کې راکوې او زه به تا سیاسي قدرت ته رسوم. اقتصادي او نظامي قوت به درکوم او تا ته به شان او شوکت دربښم: کله چې لاس لاندې ډله د لاس باندې ډلې دا نسخه ومني، نو بیا بېچاره لاس لاندې ډله هغه څه کوي څه چې ورته لاس باندې ډله د کولو حکم کوي. لاس باندې ډله ورته ستراتیژي او دغې ستراتیژۍ ته د رسېدو تاکتیکونه ټاکي. ستراتیژي د لاس لاندې ډلې د هېواد د واکمنۍ واګې په لاس کې نیول دي او تاکتیکونه د لاس لاندې ډلې د ټولنې هغه ټول ملي ارزښتونه او عنعنې، ملي او جتماعي موسسې او ملي قشرونه له منځه وړل دي، هغه چې د لاس باندې ډلې د ستراتیژي پر ضد یا مقاومت کوي او یا خنډ واقع کېږي. لاس باندې ډله هوښیاره وي. هغه په دې پوهېږي چې د بل هېواد د واکمنۍ واګې په لاس کې نیول اسانه ستراتیژي نه ده، ځکه چې د یو مستقل هېواد خلک د بل هېواد لپاره د خپلې واکمنۍ او خپلواکۍ څخه نه تېرېږي او په اسانه ځانونه نه تسلیموي. د دې لپاره چې په خلکو کې د واکمنۍ او خپلواکۍ روحیه ضعیفه کړي، لاس باندې ډله لومړی د دغې روحیې ترشا ولاړ اساسي مذهبي ارزښتونه، ملي عنعنې او موسسې او ملي

قشــرونه ځان ته معلوموي او بيا لاس لاندې ډلې ته د دغو ارزښــتونو، عنعنو، موســـو او قشــرونو د مســخه کېدو، رنګېدو او له منځه وړلو حکم کوي او لاس لاندې ډله د دغه حکم د تعميل نه د ســـر د ويښـــته په اندازه هم د ســرغړونې جرئت نه شــي کولای، هو به هو هغه څه کوي څه چې ورته حکم کېږي.

د شــوروي اتحاد ســتراتيژي د نړۍ د هېوادونو رالاندې کول وو چې په دغه ســتراتيژۍ کې افغانســتان هم شــامل و. هسې خو دغسې ســتراتيژۍ ته يې د رسېدو لپاره زيات تاکتيکونه پکارول ليکن دا تاکتيکي شعارونه چې کارګران وطن نه لري او يا د نړۍ کارګرانو يو شــئ له حده ډېر زيات اســتعمالېدل، د لاس لانــدې خلق–پرچم ګونــد مشـــرانو د خيــال کــارګرانو، بزګرانو او روشنفکرانو په نمايندګۍ د لاس باندې شوروي اتحاد ((د راکړې ورکړې)) ټول شرطونه منلي وو او په افغانستان کې سياسي قدرت ته له رسېدو وروسته يې ددغو شرطونو د عملي کېدو لپاره ملا وتړله.

د خلق–پرچم ګوند غړو د افغانستان د ولسونو د زرګونو کلونو ملي دودونو او مذهبي ارزښتونو ته د خرافاتو او پوچو عقيدو نومونه ورکړل. د افغانستان د وياړن ســـياســـي تاريخ يې د طبقاتي مبارزو مجموعه اعلان کړه او د دې سرلوړي هېواد ټول تاريخي ملي شخصيتونه يې د استثمارګرو طبقو په سر کې ولاړ استثمارګر معرفي کړل او زموږ د ټولنې د عنعنه يي جرګو اساسي او مهم عناصــر، قامي او ولســي مشــران او روحاني او مذهبي شــخصــيتونه يې د فيوډالانو، مرتجعينو، اســتثمارګرو او د طبقاتي دښـــمنانو په نومونو ونيول، بنديان يې کړل، د پلار او نيکه زمکې يې ترېنه واخيســـتلې او يو شـــمېر يې شــهيدان کړل. ((د راکړې ورکړې)) له موافقې ســره ســم کې.جي.بي په ټول قوت د افغاني ټولنې د جرګې د عنعنه يي موســې د مســخه کېدو او رنګېدو

عملیه پیل کړه او د دې شبکې د غړو په حکم پر ۱۹۸۵ کال د خلق–پرچم ګوند د محلي جرګو قانون نافذ او په کابل کې یې مسخه شوې لویه جرګه راوبلله. د جوړښت او فعالیت په لحاظ دغه محلي جرګې د شوروي اتحاد د سویتونو (د شوروي اتحاد د کاګرو نماینده شوراګانې) کاپي وه او په مسخه شوې لویه جرګه کې د افغاني ټولنې د منل شویو قامي او ولسي مشرانو او روحاني او مذهبي شخصیتونو پر ځای ((بې وطنه کارګرانو، بې قبیلې بزګرانو، خرڅ شویو مامورینو او نظامي صاحب منصبانو او بېګانه شویو روشنفکرانو)) برخه واخیسته او په کابل کې په ځینو مېشت سپین ږیرو هم د افغانستان له مختلفو ولایتونو د زیارکښانو په نومونو نماینده ګي وکړلای شوه.

ځینو جهادي ګوندونو هم د ځینو باندنیو هېوادونو په لمسون د افغاني ټولنې د جرګې د موسسې د ړنګېدو، د قامي او ولسي مشرانو او د ملي روحاني او مذهبي شخصیتونو او د ملي عناصرو په ټکولو پسې کلکه ملا تړلې ده. د دغو ډلو غړي د جرګې له نوم څخه کرکه کوي، جرګه ورته یوه لویه بلا ښکاري او د جرګې پر ځای د شورا نوم ورته خوند ورکوي.

ډېر افغانان دا پوښتنې کوي چې ولې لوړی شوروي اتحاد د افغانانو د جرګې د عنعنه یي موسسې مسخه کول غوښتل او ولې نور خارجي هېوادونه یې له منځه وړل غواړي؟که له تفصیلي بحث څخه تېر شو او لنډې خبرې ورباندې وکړو؛ په واقعیت کې د افغانستان په باب ټول خارجي هېوادونه یوه ستراتیژي لري او هغه د افغانستان کې د افغانستان په باب ټول خارجي هېوادونه یوه ستراتیژي لري او هغه د افغانستان رالاندې کول دي. لکه څنګه چې ورته اشاره وشوه د جرګې عنعنه یي موسسه زموږ د ملي دودونو او کودونو، زموږ د ولسي دموکراسۍ، زموږ د ملي هویت، د اسلام د مقدس دین په لارکې د

افغانانو د بې ســـارې قرباني، د افغانانو د وياړلو ملي قهرمانانو د ملي او اسلامي کارنامو سره ژورې تاريخي اړيکي لري. هغه خارجي هېوادونه چې په خپله د افغانانو پواســطه د افغانســتان د رالاندې کولو خوبونه ويني هغوی په دې پوهېږي چې په افغاني ټولنه کې د جرګې د عنعنه يي موســـسې د ژوندي پاتې کېدو په صورت کې د دغه هېواد قامي او ولسي مشران او ملي، روحاني او مذهبي شـخصـيتونو ژوندي پاتې کېږي، افغانان به د خپل قام او وطن سـره مينه کوي، خپل ملي هويت به ورته ياد وي، په خپلو ملي اتلانو به افتخار کوي او ځانونه به د هر چا سـيال او برابر ګڼي. څو چې په افغانانو کې د ځان، د اســلام د مقدس دين لپاره د قرباني وياړ، له قام او وطن ســره مينه، په ملي اتلانو وياړ او له نورو قامونو سره د سيالۍ او برابرۍ احساس ژوندی وي، تر هغې په افغانانو بـاندې خارجي ايډيالوژي، خـارجي لاس پوڅي او خارجي تلســلط تحميلول بېخي ناشــونی کار دی. خارجي هېوادونه فکر کوي چې د جرګې د موسسې د ړنګېدو په صورت کې په افغانانو کې د مذهبي ارزښتونو، ملي عنعنو، ملي هويت، ملي اتلانو او د ملي تاريخ احســـاس له منځه ځي، د وخت په تېرېدو د دې ملت ځوان نســـل له خپل ځان څخه بېګانه کېږي او وروســته د بېګانه وو تســلط ته اماده کېږي. هم دغه خوب لومړی شــوروي اتحاد ليده او اوس يې نور خارجيان ويني.

که شـــوروي اتحاد او د هغه زېږنده خلق– پرچم ګوند په ګډه زموږ عنعنه يي خپلواک سـياسـي سـيسـتم رامات کړ، زموږ د هېواد ټول دولتي ارګانونه يې د کمونستي سيستم د تحميل په لار کې استخدام کړل، د دغه ناپاک هدف لپاره يې په مليونونو افغانانو په خپل وطن کې شـــهيدان کړل، په مليونونو يې اواره کړل، کلي او باندې او ښـــارونه يې له خاورو ســره برابر کړل، بيا هم افغانانو دغه ټول بړونه، کړاوونه، بربادۍ او وحشـــتونه ځکه زغمل چې هغوی ته د

خپل هېواد د دښمنانو خبرې پوره څرګندې وې او افغانان د دين او دولت د دښمنانو په مقابل کې هر ډول قرباني خپله ملي او ديني فريضه ګڼي او د قربانۍ په دوران کې د يو افغان په څېره کې هم د ګيلې او شکايت نښې نښانې نه ليدل کېږي.

د افغانستان په روانه تراژيدۍ کې د روسانو او هندوانو اهداف په ډاګه څرګند دي. روسيه د شوروي اتحاد د امپراتورۍ د وارث په حيث له افغانانو څخه په افغانستان کې د روسانو د ماتې بدل اخلي، د افغانانو د جنګ د تاوان له ډاره او د خپلو غير انساني ظلمونو او وحشتونو د پټولو په هڅه د جګړو د اور لمبو ته لمن وهي. هند د روسيې زوړ ملاتړی دی، څه چې روسان کوي، هند يې ملاتړ کوي او هند د اسلامي هېوادونو د قوت مخنيوی خپله دنده ګڼي.

البته اوس د ځينو (( ورونو)) هېوادونو په باره کې ډېرې پوښتنې کېږي. وايي: ولې ((دغه ورونه هېوادونه)) د ځينو (( ورونو)) ګوندونو په لاس د افغانانو خپلواک سياسي سيستم، ملي اقتصاد، علمي، اجتماعي او کلتوري موسسې او دولتي ارګانونه له بنسټ څخه ړنګول غواړي؟ ولې (( دغه ورونه)) هېوادونه د ځينو ((ورونو)) ګوندونو په لاس د افغانانو ملي دودونه، ملي عنعنې، ملي ارزښتونه او ملي شخصيتونه او قشرونه له منځه وړل غواړي؟ ولې (( دغه ورونه)) هېوادونه د ځينو ((ورونو)) ګوندونو په لاس د افغانانو تاريخي، مذهبي او اجتماعي خصوصياتو ته د خپلو ټولنو د مشخصو مذهبي او اجتماعي خصوصياتو مصنوعي رنګ ورکول غواړي؟ ولې ((دغه ورونه)) هېوادونه د ځينو ((ورونو)) ګوندونو له لارې د لرغوني خپلواک افغانستان خپلواکي تر خپلو واکمنيو لاندې راوستل غواړي؟ او داسې نور.

د اهمیت په لحاظ یو ځل بیا تکرارېږي، هغه سیاسي، اجتماعي او اقتصادي سیستمونه چې د خپلې مشخصې ټولنې له مشخصو خصوصیاتو سره نه شلېدونکې ریښې او پیوند لري او د نویو شرایطو سره د تطابق ظرفیت، دغه وطني ټولنیز سیستمونه د خلکو له خوا منل کېږي، پرګنې یې تر شا ودرېږي، تکامل کوي او د بریالیتوب د مختلفو پړاوونو په لور مخ پر وړاندې روان دي.

برعکس هغه سیستمونه چې د نورو ټولنو له مشخصاتو څخه سرچینه اخلي، د نورو ټولنو تقلید کوي، وطني خصوصیات نه لري او یا د نورو له خوا په زور او یا په چل تحمیلېږي. دغه ډول سیستمونه حتماً د خپلې مشخصې ټولنې د خلکو د اجتماعي جوړښت، اجتماعي اړیکو او اجتماعي روحیاتو سره ټکر کوي او د خلکو له شدید مقاومت سره مخامخ کېږي. دغه تقلیدي یا تحمیل شوي سیستمونه لویه تراژیدي منځته راوړي؛ ټول ولس ربړوي او ټوله ټولنه په لوی رنځ اخته کوي. سره له دې چې د دغه لوی افت عمر لنډ وي او خلک یې ډېر ژر د تاریخ کندې ته ورغورځوي، لیکن د دغه لوی افت هر اړخیز ناوړه تاثیرات تر اوږدې مودې پورې پاتې کېږي او د ټولنې بیا رغونه ډېر وخت غواړي. د دغو تقلیدي سیستمونو ښه مثال زموږ په هېواد کې د تېرو اوه لس کلونو راهیسې روانه ملي تراژیدي ده، چې د تراژیدی لومړی پړاو پای ته رسېدلی او دویم پړاو یې ان شاالله مخ په ختمېدو روان دی.

افغانستان د جرګو وطن دی، جرګه زموږ وطني موسسه ده او دغه موسسه زموږ د پلرني هېواد د ټولو ولسونو د ژوند له ټولو اړخونو سره ژورې ریښې لري. دا یوه تجربه شوې او منل شوې عنعنه یي موسسه ده، افغانان یې تر شا ولاړ دي او د جرګو په دې هېوادکې ټولو مسالو او قضیو د دې موسسې له

لاري حل موندلی دی. د جرګې مو سسه یوه ځایي او وطني دموکراسي ده او د دې وطني دموکراسۍ د منل شویو ارزښتونو، عنعنو، کودونو او دودونو په وجه په افغاني ټولنه کې یو فرد په بل فرد، یوه کورنۍ پر بله کورنۍ، یو قام پر بل قام او یو نژاد پر بل نژاد خپله فردي او ګروپي دکتاتوري نه شي تحمیلولی، بلکې د دې وطني دموکراسۍ له منل شویو اصولو سره سم زموږ په ټولنه کې د هر فرد، هرې کورنۍ، د هر قام او هر قشـــر د انســـاني او اجتماعي حقوقو پوخ تضمین شته او تحفظ یې کیږي.

تر روانې تراژیدۍ وروسته راتلونکی افغانستان د جرګو یو داسې پراخ بنسټ سیاسـي او اجتماعي سیسـتم ته ضـرورت لري چې په هغه کې زموږ د ټولنې مذهبي ارزښـــتو نه او ملي عنعنې بایډ حتماً خوندي وي، خلکو تـه پـه ټولو محلي او ملي چارو کې د فعالې برخې اخیســـتلو پوره ازادي وي، قانوني بنه ولري، له دولتي ارګانونو سـره مرسـتیال فعال قوت وي، له نویو واقعیتونو او فکتورونو د جذب او هضـــم ډینامیک ظرفیت ولري، د افغانســـتان د ورونو ولسـونو ترمنځ د دموکراسـۍ او ورورولۍ روحیه لا پیاوړې او تقویه کړي. د ټولو هېوادونو او په مشـــخص ډول د ورونو اســـلامي ملکونو او افغانســـتان ترمنځ روابط د دوســـتۍ او برابرۍ پر اســـاســـاتو ودروي او زموږ ټولنه د یوویشتمې پېړۍ د پرمختګ له کاروان سره ملګرې کړلای شي. افغانان هیله کوي چې وروڼه هېوادونه دې له دې ځېل شوي ملت سره د وطني دموکراسۍ په جوړېدو، ټینګېدو او په پښو د ودرېدو په عملیه کې صادقانه مرسته وکړي او بس. همدا به یې په افغانانو لوی احسان وي.

ماخذونه:

۱– رفیع، حبیب الله: جرګې او د افغاني جرګو اجتماعي او رواني ارزښتونه، د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې خپرونه، ۵۲ مخونه، ۱۳۷٤ل کال، پېښور.

۲– فیض زاده، محمد علم خان: جرګه های بزرګ ملی افغانســـتان (لویه جرګه ها) و جرګه های نام نهاد تحت تســـلط کمونســـتها و روســـها، ۳۹٤ مخونه، ۱۳٦۸ل کال، لاهور.

۳– لویه جرګه ها مظهر دموکراســي در افغانســتان: پوهنوال محبوبه، نشــریه اتحادیه نویسنده ګان افغانستان ازاد، ۸٤ مخونه، ۱۳۷۳ل کال، پېښور.

٤– ثابت، عبدالجبار: د لویې جرګې تاریخي او حقوقي ماهیت او د افغانستان د روان جنجال په حل کولو کې یې احتمالي رول، د ازاد افغانســـتان حقوقو پوهانو د اتحادیې له خپرونو څخه، ۳۰ مخونه، ۱۹۹۰ م کال، پېښور.

۵– مهربان، عبدالله: تاریخ جرګه های ملی در افغانســتان، منتشــره جبهه ملی پدر وطن جمهوری دموکراتیک افغانســـتان، ۲۷٤مخونه، ۱۳٦۱ل کال، کابل.

٦– لویه جرګه جمهوری دموکراتیک افغانســـتان، ۲۵۹ مخونه، ۱۳٦٤ل کال، کابل.

۷– د پښـــتنو ټولنیز– اقتصـــادي جوړښـــت: لیکوال ورباندې نه دی لیکل شـــوی، د افغانســـتان د علومو اکاډمي، د پښـــتو څېړنو د بین المللي مرکز خپرونه، ۲۹۰ مخونه، ۱۳٦۲ل کال، کابل.

8– William A. Haviland: Cultural Anthropology: New York، 1975.

۹– زما یادښتونه.

# اعلامیه اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد

دا لیکنه د (خپلواکي) مجلې د دویم کال په (۱-۲) مې گنه کې پر (۱۳۷٤ل) کال خپره شوې ده.

اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد که در اغازین روز سال روان خورشیدی دهمین سال تاسیسش را تجلیل کرد، در جریان سالهای جهاد ملت ما علیه اجانب از سوی شماری از درسخوانده گان، قلم به دستان و منورین افغان در دیار هجرت اساس گذاری گردید.

اتحادیه نویسنده گان افغانستان ازاد اساساً نهادیست فرهنگی اما چون در برهه خاص زمان تاسیس گردید و ان وقتی بود که میهن ما را قوای بیگانه اشغال نموده بود و مردم ما علیه بیگانه گان به پیکار و مبارزه برحق برخاسته بودند؛ بنا بر همین ضرورت بود که اتحادیه ما تمام نیروی خود را وقف مساله افغانستان، پیروزی جهاد، تقویه پهلوهای فکری و اندیشه یی جهاد و مسایل مربوط به مهاجرین کرد و مبارزه سرسخت علیه بیگانه گان و بیگانه پرستان را اساس کار خود گذاشت. تحلیلها، تفسیر ها و نظریات اتحادیه ما که زیاده تر در نشرات موقوف و غیر موقوف اتحادیه و همینسان در رسانه های گروهی جهان بازتاب یافته است، همه از واقعیتهای موجود در جامعه افغانی مایه گرفته است. ما همه بررسیهای مربوط کشور خود را با در نظرداشت به اساسات دین مقدس اسلام، ساختار اجتماعی مردم افغانستان، ارزشهای ملی و روان مردم کشور خود اراسته ایم؛ هیچگاه بر مسایل و دشواریهای کشور خود بر اساس نبشته های دیگران فکر نکرده ایم. اتحادیه ما از نخستین روزهای کارش بدین باور بود که در پهلوی پیشبرد مبارزه و جهاد علیه مهاجمین، بایست درباره اینده کشور نگاه داشت تمامیت ارضی، استقلال سیاسی و طرز حکومت اینده، جلوگیری از خلای قدرت و بسی

**مسایل دیگری که جوامع انسانی را تا سرحد نابودی مواجه به دشواریها میسازد، خردمندانه اندیشید. مسایل مربوط به کشور خود را بدون هرگونه مداخله و نفوذ اجنبی خود مان بر اساس روشهای پذیرفته سنتی و ملی حل و فصل باید کرد.**

**اتحادیه ما باورمند بود که نخستین دشواری مسایل مربوط به کشور ما، که همیش در خم و پیچ سیاستهای کشورهای منطقه و ابر قدرتها راهش را گم میکرده است از نبود زعامت واحد ملی ناشی میشود؛ زعامتی که قابل قبول به همه اقشار و قبایل و اقوام افغانستان باشد، مردم به شخصیت او اعتما کنند؛ ایشان را بشناسند و اعتقاد راستین به پاکیزه گی، میهندوستی و مردم پروری او داشته باشند. به نظر اتحادیه ما تمام این مشخصات و ویژه گیها در شخصیت پادشاه سابق افغانستان اعلیحضرت محمد ظاهرشاه سراغ میتواند شد. ایشان شایسته گی زعامت ملی افغانها را دارا بودند و اکنون نیز استند. اتحادیه ما طی ده سال فعالیت خود همواره و پیهم مساله زعامت ملی را در تحلیلهایش مطرح نموده، این زعامت را در وجود اعلیحضرت محمد ظاهرشاه خلاصه کرده است، زیرا به نظر اتحادیه ما اعلیحضرت محمد ظاهرشاه وجاهت ملی و بین المللی داشته، حیثیت موسسه یی را دارد، که تمام باشنده گان افغانستان در وجدش موجودیت خود را در کشور شان حس کرده میتواند. از مهربانیها، دلسوزیهای حضور اعلیحضرت و همینسان از ارامش، امنیت، ازادیها و احترام به کرامت انسانی و حقوق بشری دروان سلطنت پر میمنت شان خاطره های فراموش ناشدنی دارند. افزون بر ان اعلیحضرت خود شان نیز بالاثر عشق و علاقه یی که با کشور و مردم خود دارند، طی دوران جهاد برحق از موقف ملت مجاهد افغانستان و مجاهدین افغانستا پیوسته پشتیبانی سیاسی نموده اند و از هیچگونه تلاش ممکن در زمینه دریغ نه ورزیده اند. با بروز جنگهای خانمانسوز سه سال اخیر فعالیتهای شان را سریعتر کردند؛ پیشنهادی را برای خاتمه جنگ و برون**

رفت کشـــور از بحران طرحریزی کردند که با اســـتقبال اکثریت قاطع مردم افغانستان و حلقات سیاسی جهان مواجه گردید.

اکنون که با ســفر هیئت خاص اعلیحضــرت به منطقه، گامهای نخســتین اما استوار در ارتباط فعالیتهای عملی اعلیحضرت در زمینه برداشته شده است ما امیدوار اســتیم که این پروســه به دلگرمی پی چویی خواهد شــد و مســاعی پادشــاه ســابق افغانســتان در راه اســتقرار صــلح و امنیت در کشــور و اعاده حیثیت ملی و بین المللی افغانستان مثمر ثمر واقع خواهد گردید.

استقبال گرم، صـمیمانه و شـایسته افغانها از هیت اعلیحضـرت گواهی میدهد که اعلیحضـرت پادشاه سـابق و نام گرامی شـان هنوز هم در دلهای مردم حق شناس افغانستان جایگاهش را محفوظ نگه داشته است.

اتحادیه نویســـنده گان افغانســـتان این گام نخســـتین را روزنه یی به ســـوی فرداهای روشـــن پنداشـــته از بارگاه ایزد متعال متنی اســـت که هر چه زود تر صـــلح و ارامش، قطع جنگ و برادرکشـــی به افغانســـتان برباد رفته به ارمغان بیاورد.

ما چنان که گفته امدیم به زعامت پادشـاه سـابق یقین کامل و اسـتوار داریم و پشـــتیبانی بیدریع خود را از پیشـــنهادها و فعالیتهای شـــان اعلام میدارم و به اســـتعانت پروردگار یکتا با کار خســـته یی ناپذیر در راه موفقیت آن خواهیم کوشید.

ومن الله التوفیق

# د ځناورو فارم

# یا د روسي کمونیزم هېنداره

داکتاب (د ځناورو فارم یا د روســـي کمونیزم هېنداره) چې (جارجل ارول) لیکلی او پوهاند رســـول امین ژباړلی دی، پر (ل)کال چاپ او خپور شـــوی دی.

## دیباچه

د کتاب تر لوستلو مخکې دا ولولئ!

لکه څنګه چې د کتاب له عنوان څخه څرګندېږي، دا وړوکی کتاب نه یوازې د روســـي کمیونیزم د وحشـــي څېرې واقعي هېنداره ده، بلکې له بلې خوا په انګلیســـي ســـیاســـي ادب کې د روســـي کمونیزم د نظر او عمل ترمنځ د لوی تضاد په هکله د ملنډو وهلو لوی شاهکار هم ګڼل کېږي.

(مارج ارول دا سیاسي شهکار په خپل نوي سبک بېخي د سمبولونو په شکل لیکلی دی. کېدی شـــي چې د لیکوال د لیک په طریقه او ســـمبولونو یوازې هغه خلک پوه شـــي چا چې د اســـتبداد پر ضـــد د ځناورو له خولې او یا د ځناورو په کردار کې زړې کیسې اورېدلي یا لوستلي وي او ورسره د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د تاریخ سره هم اشـنا وي. که چېرې داکتاب ځینې ښاغلي لوستونکي د لیکوال د لیک په سبک او سمبولونو پوه نه شي، شاید

دوی د کتاب دل وســت ښخه هومره خوند نه خلي څومره خوند چې په دې شهکار کې پروت دی.

د دې لپاره چې دغه ډله ښاغلي لوستونکي د کتاب په هدف پوه شي او خوند ترې واخلي، دلته په ډېر لنډ ډول د ليکوال ســوانح، د کتاب ســبک او ((د ځناورو فارم)) د مختلفه ځناورو ســمبوليک کردار او خصــوصــيات معرفي کېږي.

**ليکوال:** پر ۱۹۰۳م کـال اريـک او تهر بلاير پـه بنگـال کې د يو انګرېز صـاحب منصـب په کور کې وزېږېد. پر کال ۱۹۱۱ د انګلستان سـوسـيکس ليليه ښوونځي ته ولېږل شو. د وړکتون ښخه دغه ځيرکه زده کوونکی طبيعي شاعر و. تر زده کړې وروسته اريک په کال ۱۹۲۲م کې په برما کې د برتانيې د پوليســـو مامور وټاکل شــو. په کال ۱۹۲۸م کې هغه له دې دندې ښخه استعفی وکړه او بېرته انګلستان ته ستون شو.

انګلسـتان ته د تګ راهيسـې دغه زلمي د مختلفه اخبارونو د خبريال په توګه کار پيل کړ او په لنډه موده کې يې د ((جارج رول)) په نوم له ډېرو مضــامينو برســېره مختلف ناولونه، کيســې او ســوانح وليکلې د ســياســي نظر په لحاظ جارج ارول لومړی نارشست او ورپسې سوشلست شو. په کال ۱۹۳۷م کې د خبريال په حيث د اسپانيې د کورنۍ جګړې په دوران کې دغه هېواد ته ولاړ او د خبريال برسېره يې د جمهوريت غوښتونکو په مرسته په بارسيلونا کې د کمونســتانو پر ضــد جګړه کې برخه واخيســته. جارج ارول په اســپانيه کې د شوروي اتحاد د طرفدار کمونستانو سياسي اخلاق يا په بل عبارت د سياسي قدرت د لاس ته راوړلو لپاره هر ډول بد اخلاقي له نږدې ښخه وليدله.

د دې تجربې په نتيجه کې جارج ارول د روسيې د تاريخ برسېره په مشخص ډول د شوروي ټيپ کمونستي ايډيالوژۍ، د کارګرانو په نوم د بلشويک يا کمونستي ګوند د يکتاتورۍ د نظريې او عملي اړخونو د کمونستي ګوند د صحنې د لوبغاړو سوانح، بلکې د کال ۱۹۱۷م تر اکتوبر وروسته د شوروي اتحاد د ټولو مهمو سياسي پېښو ژوره مطالعه پيل کړه. د اسپانيې د کورنيو جګړو عملي تجربو او د شوروي اتحاد د سياسي مطالعې جارج ارول په دې متيقين کړ، چې د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند تزاري امپراتورۍ ته د سوشلزم په نوم نوی رنګ ورکړ. د اکتوبر نه مخکې د ګوند مشرانو د تزاري امپراتورۍ مستعمرو ته د خپلواکۍ او د روسيې ولس ته د هر ډول ازاديو وعده ورکړې وه. اما د اکتوبر نه وروسته د مستعمرو او د روسيې ولسونو په عمل کې وليدل چې دغه ټولې ودې محض د سياسي قدرت د نيولو او د مستعمرو او د روسيې د خلکو د غولولو لپاره وې. دوی د تزاري امپراتورۍ اسيايي او يوروپي مستعمرې د کمونستي رژيم نه جلاکېدونکې برخې اعلان کړې. نوي رژيم د ((نوې ټولنې)) او ((نوي انسان)) د جوړولو په پلمه د مستعمرو د اوسېدونکو ولسونو تاريخ، مذهب، فرهنګ او اجتماعي، سياسي او اقتصادي روابط له منځه وړ پيل کړل او د دوی د ژوند په ټولو اړخونو کې د شوروي کوونې او روسي کوونې عمليه په شدت روانه شوه، دغه تزار ځپلي ولسونه لاپسې د کمونست ګوند د ډسپلين، اطاعت، وفادارۍ او د کمونست ګوند د جاسوسي شبکو د زنځيرونو د مختلف بې شمېره کړيو پواسطه د کريملين پورې داسې وتړل شول چې د غلامۍ برسېره د انساني او مدني حقوقو څخه هم محروم شول. د کمونست ګوند مشرانو د روسيې او مستعمرو د ولسونو د ټولو اجتماعي قشرونو او سياسي ګوندونو او ګروپونو پر ضد د يو ګوند جنګ د ټولو پر ضد اعلان کړ. تر اکتوبر وروسته ټول

قشرونه، ګوندونه، ګروپونه او متنفذ اشخاص د فیوډالانو، مرتجعینو، تنګنظره او عظمت طلبه نیشنلستانو، بورژوا، خارجي اجنټانو، رویژنستانو، افراطیونو، ورانکارو، غلو، غولېدلو، د عملي او مترقي، ایډیالوژۍ پر ضـــد، د کارګري ګوند پر ضـد، د رهبرۍ پر ضـد، د دولت پر ضـد او دا شـان په نورو سـلګونو تورونو یو یو وټکول شول.

دکال ۱۰۲۹م نه ترکال ۱۹۳۹م پورې د عمومي تصـــفیې یا ((ســتالین د مور غضـــب)) په دوران کې د زمکې د اشـــتراکي کوونې او د کارګري ګوند د دکتاتورۍ د قایمولو په پلمه خپلې مطلقه دکتاتورۍ ته د لار خلاصولو په هڅه مرګ ژوبلې دسته جمعي بڼه غوره کړه، لکه څنګه چې د هر دکتاتور ګند یا د دکتاتور شـخص ځانګړنه ده چې د یوې مشـخصـې ایډیالوژۍ په نوم د خپل تصور سره سم د ټولنې او انسان د ((سمون)) لپاره قالب جوړوي او په دغه قالب کې د بېلابېلو ټولنو اوسـېدونکي انسـانان ور اچوي. دکتاتورانو ته تل د خدای مخلوق ټول انســـانان د موم یا ربړ څخه جوړ شـــیان ښـــکاري. د کمونست ګند د دکتاتورۍ په سر کې ولاړ لوی دکتاتور ستالین هم د کارګري ګوند دکتاتورۍ په نوم د خپل تصـــور ســـره ســـم خپل قالب جوړ ک او د شـوروي اتحاد د بېلابېلو ټولنو خلک چې په اجتماعي، سـیاسـي، اقتصـادي، مذهبي، فرهنګي، نژادي او ژبني لحاظ یې له یو بل سـره توپیر درلود، دغه قالب ته ورګوزار کړل، طبیعي وه چې د شــرایطو په لحاظ ځیني انســانان د سـتالین د قالب لپاره لنډ او ځیني تربنه اووږده وو. لنډ او اوږده دواړوه د ده د شـخص قالب په اوږدوالي او پلنوالي کې سـم نه برابرېدل. ده لنډ بنیادمان دومره راکښــل چې په لکونو انســانان د ده په قالب کې وشـلېدل، د لکونو اوږدو انسانانو سرونه، پښې، لاسونه او د بدن نور غړي د دې لپاره پرې کړل چې بې سرونو، بې پښو، بې لاسو او بې غړو انسانان د ده تصور په قالب کې

برابر کړي. د ده قالب په بې شـــمېره زور ورکوونکو کوټو، د بیګار په بې شمېره کمپونو، زندانونو، د جاسوسۍ شبکو په دفترونو تر وروستي مرکزونو او اعدام ځایونو کې پروت و. په دې قالب کې د دوی په اصـــطلاح (( د انقلاب وارثان)) په لکونو کارګران او بزګران هم وشـــلېدل او په زرګونو د کمونست ګوند د غړو او نامتو حربي مشرانو غړي هم پرې کړلای شول.

څه وخت چې د ده د تصـــور په قالب کې د تزار د دورې بقایا قشـــرونه او اشـــخاص مات ګوډل شـــول، نو ده د ((ســـوشـــلســـتي انســـان)) یا (( د نوي انســـان)) د جوړېدو لپاره په نویو موادو فکر وکړ او خپله ټوله توجه یې نویو موادو ته ورکړه. دغه نوي مواد د شـوروي اتحاد نوی نسـل او ماشومان وو. ده د نوي نســـل لپاره نوی قالب جوړ کړ او دغه ټول مواد د ده د تصـــور په قالب کې ور واچول شـــول ((نوی انســـان)) راووت. اوس د ده د تصـــور ((د نوي نســـان)) د مغزو څخه ټول انســـاني ارزښـــتونه ((د زړو چټیاتو)) په نوم پرېمینځل شـوي وو او هغه د نویو ارزښـتونو په ګانه ښـکلی شـوی و. د نویو ارزښـتونو په حکم ((نوی انســـان)) د ګوند د دکتاتور لپاره له حده زیات مطیع او وفادار، فعال جاسوس او پروپاګندچي، پوخ دروغجن او استفاده کوونکی، تکړه قاتل او ډار اچوونکی یا په لنډه عبارت د ټولو انســـاني ارزښـــتونو یا د دوی په اصطلاح (( د زړو چټیاتو)) څخه بېخي پاک انسان و.

جارج ارول د شـــوروي اتحاد غولوونکې ایډیالوژي او د عمل په ډګر کې دمنحرفه انســـاني ټولنې د جوړولو او د منحرفه ټولنې تولید منحرف انســـان د انســـاني ارزښـــتونو پر ضـــد د لوی خطر په حیث درک کړ. ده د ژور درک په نتیجه کې په کال ۱۹۴۴م کې ((د څناورو فارم)) او په کال ۱۹۴۹م کې د ((۱۹۸۴)) په نومونو دوه لوی شـاهکارونه انســـاني ټولنې ته لوی ســـوغاتونه ورکړل. د ده لومړنی شـهکار د شـوروي کمونسـتي ګوند عملي برخې سـره

ارتباط لري، په دې کې لیکوال په ډېره ماهرانه توګه د اکتوبر نه وروسته د مخکنیو ورکړل شویو وعدو هېرونه، دګوند د مشرانو ترمنځ رقابت، دګوند مشر مطلق دکتاتور کېدل، په ګوندکې د ممتازه طبقې منځ ته راتلل، د ممتازه طبقې په ګټه قوانین بدلول، دکارګرانو نا انساني استثمار، بیګار ته د وقار درجه ورکول، حقایق معکوس ښودل، خلک محض په پروپاګندو قانع کول، غولول، چل، وحشت، قتل او نور ناوړه عملونه تشریح کوي.

**د لیک سبک:** لکه څنګه چې د جارج ارول (۵۰- ۱۹۰۲) د سوانح څخه څرګندېږي، ده د شوروي اتحاد دکتاتوري رژیم برسېره د مختلفه تمدنونو او په مشخص ډول د شرقي تمدن د دکتاتوریانو پر ضد د لیکل شویو (لکه کلیه او د منه) او شفاهي کیسو په اړه هم پوره معلومات درلودل. د دې کیسو له مخې څه وخت چې یو ظالم دکتاتور خپل ظلم او استبداد له حده زیات کړی دی او د خلکو څخه یې د استبداد پر ضد د شکایتونو او د واقعیتونو د ویلو حق هم سلب شوی دی، نو د استبداد د لاندې ځینې خلک هم لاس تر زنې غلي نه دي ناست، که چېرې دوی به د دکتاتور له ډاره د ده د ظلم پر ضد په ښکاره اواز نه شو پورته کولای، نو بیا به دوی د استبداد پر ضد مجادلې ته د کیسو له لارې مجرا ورکوله. د دې لپاره چې خلکو ته د ظلم پر ضد پیغام ورسوي او هم د دکتاتور تور راونه پاروي، دوی تل خپلې کیسې د تېرو زمانو څخه او یا د لرې واقعې یا افسانوي ځایونو څخه شروع کولې او د خپلو کیسو د ویلو لپاره یې یا د لرې ځایو د خلکو نا اشنا نومونه یا ښاپېري او دیوان، یا ځناور، یا مرغۍ او یا نور مخلوق انتخابوه.

((د ځناورو فارم)) هم د لوی استبداد پر ضد کیسه ده او دا لوی ښهکار هم د تېرو دکتاتورانو پر ضد د زړو کیسو په سبک لیکل شوی دی. د (( مانور

فارم)) چې وروســـته ((د څناورو فارم)) په نوم بدلېږي او یا نور ګاونډي فارمونه او یا نور ځایونه د شوروي اتحاد څخه ډېر لرې په انګلستان کې پراته دي. جرج ارول د تېرو زړوکیســـو په پیروي خپله کیســـه د فارم د مختلفو څناورو لکه د خوګانو، اســونو، ســپیو، مېږو، چرګو او نورو د وینا او عمل په رڼا کې پرمخ بیایي او د ده په کیســه کې د ټولو انســانانو او څناورو نومونه هم لکه جونز او ســنوبال هم انګلیســي نومونه دي. دا لوی فنکار تر پایه په خپله کیســه کې د دکتاتورۍ او اســتبداد اصــلي مرکز د شــوروي اتحاد ځایونو او خلکو نوم هېڅ نه اخلي او نه ورته اشاره شوې ده.

## د سمبولیک نومونو او پېښو لنډه تشریح

۱– جونز: د روسیې وروستني تزار الکزاند ته اشاره ده او د جونز په کرکې د دغه امپراتور د ضعف خصوصیات تشریح شوي دي.

۲– زوړ میجر: د کمونستي ایډیالوژۍ لومړنی بنسټ ایښودونکی دی. میجر د خوب له لارې لرغونی کمیون، طبقاتي تضاد، د انسان او څناور په مفهوم د پورته طبقې له خوا د کارګرو اســـتثمار، د څناورتوب اصـــول یعنې کارګري ایډیالوژي، بغاوت د ((انقلاب)) په مفهوم او د بغاوت ترانه ترانه تشـــریح شـــوې ده. د میجر تر مړینې وروســـته د بغاوت لپاره جدي فعالیت شـــروع کېږي.

۳– پېښـــــه: د کتـاب پـه دویم څپرکي کې د څنـاورو بغـاوت د اکتوبر د ((بغاوت)) په مفهوم تشریح شوی دی. د اکتوبر د پېښې په اړه په کې راغلي دي. کله چې په کال ۱۹۱۷م د فبرورۍ په میاشت کې د پترزبورګ ښاریانو د کال ۱۹۰۵ د خونړۍ یکشنبې کلیزه نمانځله، دغه نمانځنه ناڅاپه په خود

بخودي اعتصاب بدله شوه او د بغاوت بڼه يې غوره کړه. د لومړۍ نړيوالې جګړې څخه ستړو او ستومانو د پترزبورګ عسکرو د ښاريانو په طرفدارۍ اعلان وکړ. بغاوت لاپسې خپور شو، الکزاندر استعفا ورکړه، موقتي حکومت وټاکل شو. په دې مرحله کې بلشويسک د کمونست ګوند د سياسي قدرت لپاره فعاليت زيات کړ او ډېر په اسانه بريالی شو.

۳- سنوبال او ناپولن: دا دواړه ځوان خوګان د دې کتاب اصلي کرکټرونه دي او جارج ارول د دې دوو کرکټرونو په واسطه د کمونست ګوند دننه د تراتسکي (سنوبال) او ستالين (ناپولن) ترمنځ د سخت رقابت، مخالفت او دښمني تشريح کوي.

د پترزبورګ په يوه يهودي کورنۍ کې زېږېدلی تراتسکي (۱۸۷۹- ۱۹٤۰) او د ګرجستان په عيسوي ناداره کورنۍ کې زېږېدلی ستالين (۱۸۷۹- ۱۹۵۳) دوه مختلفه شخصيتونه وو. دواړه د ځوانۍ راهيسې کمونستان وو، ليکوال، فصيح، په ايډيالوژۍ، سياسي او نظامي چارو پوه تراتسکي بين المللي شهرت درلود او په ابتداکې اداره چې خپل سره او په ډسپلين مين ستالين د محلي شهرت څښتن و.

د کمونست ګوند له خوا د قدرت نيولو سره سم تراتسکي د سرو عسکرو د جنګ د وزير او په کال ۱۹۱۸ کې ستالين د مليتونو د کميسار په حيث وټاکل شو، چې يو د سرو عسکرو په تنظيم او بل د مليتونو په نوي اداري چارو بوخت شول. په کال ۱۹۱۸ کې کورنۍ جګړې پيل شوې، د کمونست ګوند پر ضد د سپين ګارډ حملې روانې شوې، کازان ونيول شو او سپين ګارډ د ماسکو د نيولو پر لور راروان و. تراتسکي کازان ته ولاړ او دلته يې په لومړي محاذ کې د مخالف قواوو د مرميو د باران لاندې د سرو عکسرو

لاربسوونه کوله. یو کال وروسته کورنۍ جګړو شدت پیداکړ او دا ځل تراتسکي د پترزبورګ (لیننګراد) دفاع وکړه. کال ۱۹۲۰ کې کمونست ګوند د تراتسکي بریالیتوب ونمانځه او ده ته ((د سور بیرغ نښان)) ورکړل شو. د کورنۍ جګړو د پیل نه ترکال ۱۹٤٥ پورې د ستالین په شمول د کمونست ګون ټولو غړو تراتسکي، ((د لینن پسې په دویمه درجه)) د انقلاب لاربنود)) د سرو عسکرو جوړونکې او د بریالیتوب پلار)) باله او برعکس د کورنۍ جګړو په دوران کې د دغه وخت په لیکل شوي تاریخ او یادښتونو کې د ستالین د نوم ذکر نه دی راغلی.

په شروع کې د تراتسکي او ستالین رقابت شخصي بڼه درلوده. دواړه د کمونست ګوند د مشرتابه لپاره کاندید وو، دواړو دغه شخصي رقابت ته د سیاسي مخالفت بڼه ورکړه. د تراتسکي د مفکورې له مخې ((تر څو چې پرله پسې انقلاب)) ونه شي او مخصوصاً په یورپ کې ((انقلاب)) منځته را نه شي، کېدای شي چې د شوروي اتحاد ((انقلاب)) یا د سقوط سره مخامخ شي او یا انحرافي بڼه غوره کړي.)) له بلې خوا ستالین د تراتسکي ((د پرله پسې انقلاب)) د مفکورې پرضد په یو هېواد کې د سوشلزم ټینګښت بیا په بل هېواد کې د ((انقلاب هڅې)) نظریه وړاندې کړه. د دوی رقابت د اختلاف له حده تېر شو او دښمني یې د سیاسي بیرو نه نیولې د ګوند کښته صفونو ته ورسېده. تراتسکي به ستالین ته غبي، قهرجن، شواړ او خپل سری ګورجي وایه او ستالین تراتسکي د ماجراجو، د ((انقلاب)) سره لوبې کوونکی، تروریست، زوړ منشویک او د بورژوا فکره په نومونو باله.

په کال ۱۹۲٤م کې د لینن تر مړینې وروسته د دسیو پلار دکتاتور ستالین د تراتسکي د مشرتابه د مخنیوي لپاره د کمونست ګوند د سیاسي بیرو دوه غړي زینوویف اکامینوف د ځان ملګري کړل او د ګوند د عمومي سکرتر

واکي يې په خپل لاس کې ونيولې. تر دې وروسته ډېر ژر په يو هېوادکې د سوشلزم ټينګښت ګوند او دولت ته د وفادارۍ شعار اعلان شو. په کال ۱۹۲۵م کې د ((پولادي ډسپلين)) په نوم د سياسي بيرو او ګوند څخه وويستل شو او په کال ۱۹۲۹م کې د شوروي اتحاد څخه تبعيد شو. ورپسې ستالين د تراتسکي ټول ملګري د ګوند او دولت د اورګانونو څخه خارج کړل.

تر تبعيد وروسته د ستالين په حکم د دولت ټولو ارګانونو د تراتسکي پر ضد منظمه پروپاګنده پيل کړه، لکه څنګه چې تراتسکي د کورنۍ جګړو په دوران کې د ستالين رول د نشت برابر ګاڼه اوس ستالين د تراتسکي نوم د کورنۍ جګړو په دوران کې د نشت برابر کړ. د ستالين په حکم د تراتسکي نوم د ګوند، نظامي کمېټې او د پترزبورک د شورا د کمېټې د تاريخونو او د تعليمي نصاب څخه بېخي وويستل شو. د ستالين په حکم نوي تاريخونه، نوی تعليمي نصاب وليکل شو او د کورنۍ جګړو په دوران کې تراستکي فعاليت ته د کمونست ګوند د مرکزي کمېټې وروسته جمعي فعاليت نوم کېښنودل شو. اوس د تراتسکي پر ضد پروپاګنده کې د شوروي اتحاد د ټولو دولتي مطبوعاتو د تراتسکي له نوم سره د غدار، ورانکاري، دسيسه کار او د ګند، ايډيالوژۍ، دولت او د شوروي اتحاد د ولسونو پر ضد د خارجي اجير نومونه ور اضافه کړل.

د کال ۱۹۳٦ م څخه تر کال ۱۹۳۹م پورې د ((سور غضب)) د ساتول لاندې ملکي او نظامي بې شمېره غړي د پرله پسې پټو او ښکاره محاکمو په نتيجه کې پټ او ښکاره اعدام شول. د دې محاکمو له جملې څخه درې محاکمې ډېر شهرت لري؛ د کال ۱۹۳٦ په محاکمه کې د دولت دري دېرش لوړ رتبه ملکي مامورين، د کال ۱۹۳۷ د محاکمې په دوران کې يو مارشال

او یو شـــمېر د لوړ رتبه جنرالانو ډله او د کال ۱۹۳۸ په محاکمه کې د کمونســـت ګوند د ســـیاســـي بیرو او د مرکزي کمېټې یو ویشـــت نامتو غړي محاکمه او اعدام شول. په دې محاکمو کې د تراتسکي او ستالین پرته د لینن د دورې ټوله ســـیاســـي بیرو، د مرکزي کمېټې یو شـــمېر نامتو غړي، یو صدراعظم، د صدارت څو مرستیالان، د بین المللي کمونیزم دوه رییسان، د کارګرې اتحادیې رییس، یو مارشـــال، یو لوی درســـتیز، لوړ رتبه جنرالان، نظامي عمومي سیاسي رییس، د ټولو مهمو قشلو لوړ رتبه قوماندانان، په اسیا او یورپ کې د شوروي اتحاد ټول سفیران او د دغه وخت د سیاسي پولیسو دوه مشران د محاکمې پر ځای کې ودرېدل.

د ټولو پر ضد دا تورونه لګېدلي وو چې ((مجرمین)) د تراتسکي په لمسون ستالین وژل غوښت، سرمایه داري یې راوستله، د هېواد اقتصادي او نظامي بنســـټ یې ړنګوه او د شـــوروي زیارکښ کارګرانو ته یې د زهر ورکولو نیت درلود. ټولو وهل شـــویو کمونســـتي ســـیســـتم د پولیســـو په اصـطلاح په خپله خوښه اعتراف وکړ چې د ((انقلاب)) د پیل راهیسې دوی د برتانیې، فرانس، جاپان او جرمني د جاسوسي شبکو غړي وو او دوی نازي جرمني او جاپان سره پټه موافقه کړې وه چې شوروي اتحاد به تجزیه کوي او د دغو هېوادونو ته به د شـــوروي اتحاد ځینې ســـیمې ورکوي.)) د محاکمو په دوران کې د ستالین په حکم د جاسوسي شبکو او د ګوند د غړو مارشونه روان وو او ټولو به یو شعار ورکاوه چې ((دا لېوني سپي اعدام کړي.))

دلته ((د سور غضب)) د ساتول د لاندې ((د خپلې خوښې)) د اعتراف څخه دوه مثالونه وړاندې کېږي. درې ((مجرمینو)) هولزمات، داوید، او برمات یورین ((په خپله خوښه)) اعتراف کې وویل: ((موږ او تراتسکي د ډنمارک په یوه هوټل کې ولید او دلته مو د ســـتالین د قتل فیصـــله وکړه.)) د دوی د

محاکمې او اعدام څخه وروسته ثابته شوه چې په دغه نوم هوټل د محاکمې نه لس کلونه مخکې تړل شوی و او لویه مغازه ترینه جوړه شوې وه. همدا شان پیاتاکوف ((په خپله خوښه)) اعتراف وکړ چې، ((زه د تراتسکي ارتباطي غړی یم. زه د نازي جرمني په یوه الوتکه کې د ناروې پایتخت اوسلو ته ولاړم، دلته مې د تراتسکي سره وکتل، ده ته مې راپوروونه ورکړل او له دغه ځایه مې د ده هدایتونه راوړل.)) وروسته څرګنده شوه چې کومه نېټه تورن اوسلو ته د تګ ښودلې وه له دغه نېټې څخه څلور میاشتې مخکې او دوه میاشتې وروسته د جرمني یوه الوتکه هم د اوسلو په هوایي ډګر نه وه کښېنته شوې.

د محاکمو په دوران کې د ستالین دا فرمان چې ((دکور د یو غړي جرم دکور د ټولو غړو جرم ګڼل کېږي او کـه چېرې د کورغړي مجرم غړی یـا غړي پولیســو ته ور نه کړي، نو په دې صـورت کې به د کورنۍ ټولوغړو ته ســخته ســزا ورکول کېږي.)) په شـــدت عملي کېده. د دې فرمان له ډاره ډېر زامنو، لوڼو، مېرمنو، ورونو، خوینـدو او پلرونو د خپلو پلرونو، مېړونو، ورونو او زامنو پر ضــد ((د جرم)) شـــهادت ورکړ. ځینو ((مجرمانو)) په دې هیله چې خپله کورنۍ د مرګ څخه وژغوري ((په خپله خوښــه په خپلو جرمنو اعتراف کاوه)) او د دوی د ((اعتراف)) وروسـته دولتي څارنوال د ((هر غدار)) لپاره اعدام غوښــتنه کوله او مرګ ته چمتو ((مجرمان)) به ســم له لاســه ((د ســور غضب)) د ساتول لاندې ټوټې ټوټې کېدل.

کال ۱۹۳۹ کې عممي تصفیه یا ((سور غضب)) لږ سوړ شو. د دغه کال د مارچ په میاشــت کې ســتالین وویل: (( د پخو اســنادو او د ډېرو مجرمینو د اعترافاتو څخه اثبات شوې ده چې تراتسکي د انقلاب راهیسې د خارج اجیر جاسـوس و او اوس هم د خارجي جاسـوسـي شـبکو سـره یوځای د شـوروي

اتحاد پر ضد دسیسې کوي. دې غدار جاسوس ته د مرګ سزا ټاکل شوې ده.))

کال ۱۹۳۹ یا (( د سور غضب)) په شروع کې تراتسکي د ناروې څخه لاتین امریکا مکسیکو ته ولاړ. دلته په ده باندې څو ځله د قتل حملې وشوې او د ده ټول ماشمان په ډېر مرموز ډول یو یو مړ شو. کال ۱۹٤۰ د اګست په شلمه نېټه د لوی دکتاتور اوږد لاس جاسوسي شبکې په تېره تبر تراستکي د هغه په کور کې په سر وواهه او د هغه ماغزه یې د کتاب په پاڼو وشیندل. کله چې ستالین خپل دښمن له منځه یوړ، نو اوس هغه د تراتسکي څخه ((د تراتسکیزم)) نوې لویه ټاپه جوړه کړه او تل یې دغه نوې ټاپه د نورو ټاپو سره یوځای په خپلو داخلي او خارجي مخالفینو لګوله او اوس هم ترېنه استفاده کوي.

٤– سکیولر: سکیولر د ستالین د دورې د پروپاګنډې او تبلیغاتو لوی ماشین ته اشاره ده. د لوی دکتاتور په حکم دغه لوی ماشین د اکتوبر نه مخکې او وروسته ټولې واقعي پېښې په معکوس شکل وړاندې کوي. د شوروي اتحاد لیکل شوي قوانین د کمونست ګوند د ممتازه طبقې او د لوی دکتاتور په ګټه تعبیروي (ښه مثال یې په دې کتاب کې د اوه احکامو تعبیر دی، چې په پای کې دا حکم چې ((ټول څناور مساوي دي.)) په دې حکم چې ((ټول څناور مساوي دي اما ځینې د ځینو په تناسب ډېر مساوي دي.)) بدلیږي.) د شوروي اتحاد ولس د تراتسکي د (((جرمونو)) او ((غدارئ)) په باره کې قانع کول غواړي او د ستالین نظر او عمل د شوروي اتحاد د خلکو او نړۍ د کارګرانو د ژوند د مشکلاتو د حل او د راتلونکې کارګرې ټولنې د هوسا ژوند لپاره د عملي اساساتو په حیث معرفي کوي.

**۵– بوکسر، کلو ور او بنجامین: دا درېواړه د شوروي اتحاد د مختلفه کارګرانو د ژوند مختلفه سمبولونه دي:**

**۱) کارګر او وفادار بوکسر د شوروي اتحاد د هغو کارګرانو نماينده اصلي کرکتر دی چې په ((انقلاب)) عقيده لري. دی به بغاوت کې زخمي کېږي او ((د ځناورو قهرمان لومړی درجه نبښان)) اخلي، د خپل صحت څخه بې پروا شپه او ورځ کار کوي اما څه وخت چې د ځواني د کار انرژي له لاسه ورکوي، نو بيا د يوې استهلاک شوې متاع يا د يو استثمار شوي کارګر په توګه په قصاب خرڅېږي.**

**۲) کارګره کلو ور کار کوي، د خپل صحت خيال ساتي او بوکسر ته هم د صحت د ساتلو توصيه کوي. د ممتازه طبقې او دکتاتور په ګټه د قوانينو يا ((اوه احکام)) تغير ته متوجه ده، خو په پټه خوله د نورو څخه د احکامو د تغير په باره کې پوښتنه کوي. د بوکسر معکوس کلو ور د سنوبال په باره کې د سکيولر سره هېڅ استدلال نه کوي او ترپايه ژوندی پاتې کېږي.**

**۳) د فارم د ټولو ځناورو په تناسب هوښيار، دقيق او پټه خوله بنجامين د ((بغاوت)) په ماهيت او د ((بغاوت)) وروسته د ممتازه طبقې او دکتاتور په ټولو غولونکو تاکتيکونو پوهېږي اما دی په دې مسايلو د هېچا سره خبرې نه کوي. د بوکسر غوندې د نږدې ملګري په مرګه خفه دی، خو هر څه په پټه خوله د ځان سره ساتي، هر څه زغمي او ترپايه د ټولو غمونو باوجود ژوندی دی.**

**٦– سپي: سپي د ستالين د دورې د جاسوسي شبکو يا خفيه پوليسو سمبول دی. ستالين جاسوسي شبکې له حده زياتوي، جاسوسانو ته له حده زيات امتياز ورکوي، شوروي اتحاد ته پوليسي دولت بنه ورکوي، د پوليسو**

پواسطه خپل ((سور غضب)) عملي کوي، خپل ټول مخالفین د دوی پواسطه له منځه وړي او د جاسوسي شبکو له ډاره د شوروي اتحاد ولس د مرګ له ډاره د اطاعت پرته بله هېڅ لا نه لري.

۷– موسز: موسز د مذهبي موسی سمبول دی، د سیاسي قدرت تر نیولو وروسته کمونستي ګوند دوه فیصلې وکړې؛ د لومړۍ فیصلې له مخې د ګوند او دولت ټول ارګانونه به په ټول قوت په ماشـــومانو یا په نوي نســـل تمرکز کوي. دوی به د ایډیالوژۍ په چوکاټ کې دننه د ټولو ملي عنعناتو پر ضـــد روزي او د دویمې فیصـلې له مخې تر څو چې ((نوی سـوشـلسـتي انسـان)) روزل کېږي، تر هغې به ځینو مذهبي مشرانو ته هر ډول امتیازات ورکوي چې د دوی پواسطه راتلونکې کمونستي ټولنې ته لاره خلاصه کړي.

۸– چرګې، بتې او نور د بزګرانو نماینده ګي کوي.

۹– مېږې: مېږې د ګوند د ســـیاســـي بیرو او د مرکزي کمېټې د هغو غړو سمبول دی چې ستالین به د دوی پواسطه خپل ګوندي مخالفین تهدیدول او یا به یې د دوی د ویناګانې وربانديې ګډوډولې.

۱۰– کوترې: دوی په خارجي هېوادونو کې د ســـتالین د پروپاګندچیانو او اجنټانو سمبول دی.

۱۱– مولي: د شوروي اتحاد دکتاتوري رژیم څخه د ناراضي خلکو تېښتې او په نورو هېوادونو کې پناه اخیستلو ته اشاره ده.

۱۲– د فوکس ووډ او پنجفیلډ فارمونه د خواشـــا ســـرمایه داري هېوادونو ســـمبول دی. د یوې خوا ســـرمایه داري هېوادونه د کارګري بغاوتونو څخه

ډارېږي او له بلې خوا رقيب هېوادونه د شوروي اتحاد سره د تجارتي ګټو په هيله د تجارت د ټينګولو لپاره هلې ځلې کوي.

۱۳- ليکوال په وروستني لسم څپرکي کې د کمونستي ګوند د نظر او عمل ترمنځ تضـــاد، د دکتاتور په ګټه د قوانينو بدلېدل، په ګوند کې د ممتازه طبقې منځته راتګ د کارګرانو اســـتثمار او تزاري امپراتورۍ ته د ســـوشـــلســـتي امپراتورۍ د رنګ ورکولو په باره کې په زړه پورې نتيجه ګيري کوي.

مننه: ښـاغلو جهاني او ثابت د مترجم سـره پوره مرسـته کړې ده او د دواړو څخه ډېره مننه کېږي.

# لومړۍ څپرکی

د مانورفارم Man or Farm خاوند مســـتر جونز Mr—Jones د چرګانو کوډلې وتړلې، خو هغه دومره نشــــه و چې د بوتل بندول یې له یاده ووتل. دهغه په لاس کې لانټین اخوا دېخوا ټوپونه وهل او د لانټین په رڼاکې یې د کور دغولي اړیکي وا چاوه. خپل بوټونه یې په درب د دروازې تر شـــاه وغورځول. په اشپزخانه کې د پروت بیرل نه یې د بیرو وروستنی ګلاس په سر راواړوه او بیا نېغ بسترې ته ولاړ. مېرمن یې پر بستره ویده وه او په خوب کې خرېده.

کله چې د خوب کوټه تیاره شوه، د فارم په ټولو کوټو کې د ځناورو شور او د مرغیو د ځانګونو پړکهار پیل شو. د ورځې داګونګسی روان و چې تېره شپه زوړ میجر عجیبه خوب لیدلی او غواړي چې خپل خوب نورو ځناورو ته هم ووایي. ټولو ځناورو دا فیصــله کړې وه، څه وخ چې مســتر جونز یوې خواته ولاړ، نو هغوی به د زوړ میجر د وینا د اورېدو لپاره د انبار په لویه کوټه کې ســـره راټولېږي. د فارم ټولو ځناورو د زوړ میجر ډېر درناوی کاوه او هر ځناور دې ته چمتو و چې د هغه د وینا د اورېدو په خاطر یو ساعت بې خوبي په ځان تېره کړي.

له مخکې نه میجر د انبار د لویې کوټې د کنج په یو اوچت ځای د بوســـو په بســـتره کې ډوب پروت و. د ده د بســـترې له پاســـه یو لانټین په موړې کې ځوړند و. په دې وخت کې دولس کلن و، جود یې غټ شـوی و، خو د ښخوا غوندې د ځوانی قوت په کې نه و پاتې. خو له ورایه له قاره ډک هوښـــیار او مهربان خوګ ښکارېده. له ټولو ترمخه د انبار لویې کوټې ته درې سپي بلوبل Blue bele ژیســـي Jessie او پنچر Pincher رانوتل، په دوی پســـې خوګان راغلل او د راټلو سره سم د اوچت ځای مخامخ په بوسو کې پرېوتل. چرګانو

د کړکیو په درشـــلو کې ځای ونیو، کوترې پورته لرګو ته والوتلې او مېږې د خوګانو تر شاه پرېوتلې او د پرې وتو سره سم یې په شخوند لاس پورې کړ. د کراچۍ دوه اسـونه بوکسـر Boxer او کلوور Clover یو ځای رانوتل. د دې لپاره چې بوسو کې پټ پراته واړه څناور تر پښو لاندې نه کړي، ډېر ورو ورو تلله او په ډېر احتیاط یې خپل لوی او ببر سومان ایښودل.

کلوور پوخ عمر ته رســـېدلې قوي اســـپه وه، خو تر څلورم بیاڼ تر زېږولو وروسته په کې اوس د ځوانۍ هغه پخوانی خوند نه و پاتې. بوکسر د وجود نه ډېر لوی څناور و. قد یې تقریباً اتلس لویشتې و او د دوو عادي اسونو قوت یې درلود. د شونډک د لاندې د سپینې کرښې له کبله څه ناڅه ساده غوندې معلومېده دا هم څرګنده وه چې دی لومړۍ درجه ځیرک څناور نه و، خو د کړو وړو او د کار د زیات قوت په وجه ورته د فارم ټولو څناورو په درانه نظر کتل.

تر اسونو وروسته سپینه اوزه موریل Muriel او زوړ خر بنجامین Benjomin د یو بل پسـې راغلل. بنجامین په فارم کې له ټولو نه زوړ او ډېر بد خویه څناور و. هغه ډېرې لږې خبرې کولې، که چېرې به یې خبرې هم وکړې، نو د ده هره تبصره به د بدبینۍ نه ډکه وه. د مثال په ډول هغه به داسې ویل: ((خدای راته لکۍ د دې لپاره راکړې چې مچان پرې وشـــړم. که لکۍ یې نه وای راکړې، نو مچان به هم نه وو.)) په ټول فارم کې منجامین یوازینی څناور و چې ده په ټول ژوندکې نه و خندلي. که چېرې به چا ترېنه وپوښـــتل چې ته ولې نه خاندې، نو هغه بد ورته تل دا ځواب ورکاوه چې ((ما په ټول عمر کې د خندا وړ هېڅ شـــی نه دی لیدلی.)) ســـره له دې چې منجامین به ښـــکاره اعتراف نه کاوه مګر هر چاته څرګنده وه چې هغه په ټول فارم کې یوازې د بوکســـر مخلص دوســـت و. دواړه به تل یو ځای د باغچې نه وړاندې کور ته

نږدې په وړوکي مالګړکې خوا په خوا څرېدل، خو يو تر بل يې هېڅ خبرې نه کولې.

ايله دواړه اســـونه پربوتي و چې د بتې بچي د انبار لويې کوټې ته راننوتل. له دوی نه مور ورکه شوې وه، ټول د کوټې دننه‌کتار ودرېدل او په ((ځيو ځيو)) يې شـــروع وکړه. دوی د يو ځای نه بل ځای ته منډې وهلې او د کېناســـتلو لپاره يې داسې ځای پلټه چې د پښـو لاندې نه شـي. کلوور د خپلو مخکينيو اوږدو پښـــو څخه د دوی چاپېر دېوال جوړکړ د بتې بچي د کلوور د پښـــو دننه دېوال کې راټول شول او ډېر ژر خوبو يوړل.

مولي Mollie د مستر جونز نازولې، ښکلې مګر بېعقله سپينه اسپه وه. مستر جونز وربانديې تل د ښکار دامونه وړل. څه وخت چې هغه په ډېر ناز او مکېز انبار ته راننوتله، نبات يې په خوله کې وو او په خوند خوند يې ورباندې شخوند واهه. په دې ورځ هغې د څټ په ويښتو کې سرې پټې تړلې وې، دې په کوټه کې دننه په مخکې کتارکې ځای ونيو او په دې اميد چې ځان ته د نورو پام راوګرځوي، مولي د څټ د سپينو ويښتو او په ويښتوکې تړلې شويو سرو پټيو سره لوبې شروع کړې.

تر ټولو وروسته پيشو راننوتله، د خپل عادت سره سم هغې د تود ځای په لټه اخوا دېخوا کتل او په پای کې د بوکســـر او کلوور ترمنځ غونجه پرېوتله. ډېر ژور خوب يوړله او په خوب کې په خرار شروع وکړه. په خواړه خوب ويدې پيشکې تر پايه د ميجر د وينا يو ټکی هم وانه ورېده او نه پر دې پوه شوه چې زوړ ميجر څه وويل.

د کورني کارغه موســـز Mosses نه پرته چې د لويې دروازې تر شـــاه په خپله جاله کې ويده و، نور ټول څناور حاضـــر شـــوي وو. کله چې ميجر د ښو د

لاندې وکتل چې د فارم ټول څناور راغلي دي او هر يو په خپل ځای پروت دی او ټول د ده د وينا انتظار باسي، نو ميجر لومړی خپله غاړه تازه کړه او بيا يې په خبرو پيل وکړ:

(( ملګرو! پوره باور لرم چې تاسو به زما په تيرې شپې په عجيبه خوب خبر يئ. مخکې له دې چې د خوب په باره کې درته وګړيږم. د خوب تر ويلو دمخه درته يوه بله مهمه موضوع ويل غواړم.))

(ملګرو! زه فکر کوم چې يو څو مياشتې وروسته به زه ستاسو په منځ کې نه يم. مخکې له دې چې زه مړ شم، دا خپله وظيفه ګنم چې تاسو ته خپله هغه پوهه چې ما د اوږد ژوند د تجربې په نتيجه کې حاصله کړې ده، منتقله کړم. ما په دې فارم کې اوږد ژوند تېر کړ، زه تل په غوجل کې ځانله پروت يم او په غوجل کې د ځانله پرېوتو په وجه زه د فکر کولو لپاره ډېر وخت لرم. په زغرده درته ويلی شم چې زه د ژوند په ماهيت او په زمکه باندې د اوسېدونکو څناورو په برخه کې له هر چا نه ښه پوهيږم. زه غواړم چې د خوب د ويلو ترمخه تاسو ته په دې موضوع څه خبرې وکړم.))

ملګرو! زموږ د ژوند ماهيت څه دی؟ راځئ چې د داسې ژوند مقابله وکړو، زموږ ژوند د ستونزو او شاقه کارونو څخه ډک او ډېر لنډ دی. کله چې موږ پيدا شو، موږ ته دومره خوراک راکول کيږي چې په دې خوراک مو ايله په بدن کې ساه غړيږي. کله چې موږ د کار وړ شو او کار کولای شو، نو موږ مجبور يو چې د خپل قوت او توان تر وروستۍ شېبې پورې کار وکړو او کله چې زموږ څخه نوره ګټه نه شي اخيستل کېدای، نو بيا ټول په ډېره بې رحمۍ حلاليږو. تر يو کلنۍ وروسته په انګلستان کې يو څناور هم د خوشالۍ او ارامۍ په مفهوم نه پوهيږي. په انګلستان کې يو څناور ښاد او ازاد نه دی،

بلکې دا يو څرګند حقيقت دی، چې دلته د څناور ژوند خواري او غلامي ده.))

(( ايا دا د طبيعت حکم دی؟ ايا زموږ وطن دومره غريب دی چې د دې زمکې اوسېدونکو څناورو ته ښه ژوند نه شي برابرولای؟))

((ملګرو! واقعيت داسې نه دی، زر ځله درته ويلی شم چې واقعيت داسې نه دی. د انګلســـتان زمکه حاصــــل خېزه ده او اقليم يې هم ډېر ښــــه دی، د انګلستان حاصر خېزه زمکه د دې وړ ده چې د اوسنيو اوسېدونکو څناورو په تناســـب نورو ډېرو څناورو ته پرېمانه خوراک برابر کړي. يوازې دا زموږ فارم يو درجن اســونو، شــلو غواوو او په ســلګونو اوزو ته خوراک ورکولای شي، چې د دې فارم ټول څناور به يو داسې هوسا او با وقاره ژوند ولري چې اوس يې موږ هېڅ تصــــور هم نه شـــو کولای. نو موږ بيا ولې په داســـې ناوړه شـــرايطو کې ژوندکوو؟ د دې مســـلې عامل دا دی چې زموږ د کار او زيار د توليد شتمني راڅخه انسان پټوي.))

((ملګرو! زموږ د ټولوکشــالو علت درته په لنډه خلاصــه کوم او هغه دا چې زموږ د ژوند ټولې کشــالې راته د انســان له لاســه راپېښــې دي. زموږ اصــلي دښــمن انســان دی او بس. زموږ د ژوند ټولې کشــالې له دغه دښــمن ســره نه جلاکېدونکې اړيکې لري. تاســو انســان له صــحنې وباسئ. زه ډاډ درکوم څه وخت چې دغه دښــمن له منځه ولاړ، نو د ده ســره يوځای زموږ د لوږې او شاقه کارونو ټول عوامل هم په خپل له منځه ځي.))

((انســـان يوازينی مخلوق دی چې توليد نه کوي، خو خوراک کوي. انســـان شـــيدې نه ورکوي، انســـان هګۍ نه اچوي، دی يوې نه شـــي راکښـــلای او نه دومره چټک زغاستلای شي چې سوی دې په منډه ونيسي. عجيبه ده چې بيا

هم د ټولو ځناورو بادار انسان دی، ټول ځناور په‌کار اچوي، انسان د ځناورو د توليد ډېره برخه په خپل جيب کې اچوي او د ځناورو له توليد څخه دومره لږه برخه بېرته ځناورو ته ورکوي، چې دوی محض د لوږې مړه نه شي. زموږ د کار په قوت زمکه يوې کېږي، زموږ سـرې دغه زمکې څربوي، بيا هم په موږ کې يو داسې ځناور نه پيداکېږي چې هغه دې د خپل پوستکي نه پرته د نورو شيانو خاوند هم وي!)).

((ماته مخامخ پرتو غواوو! تاسو تېرکال څو زره ګلينه شيدې ورکړې؟ په دغه شيدو تاسو د خپلو خوسو يو قوي نسل روزلای شو، ستاسو شيدې څه شوې؟ د دغو شيدو هر څاڅکی زموږ د دښمنانو د ستوني نه تېر شوی دی.))

((تاسو چرګو سږکال څومره هګۍ واچولې؟ له دغو هګيو څخه څومره چرګوړي راوتلي دي؟ د دغو هګيو ډېره برخه د دې لپاره بازار ته ولاړه چې جونز او د هغه مزدوران پرې پيسې وګټي.))

((کلوور؛ هغه څلور بيانې چې تا زېږولي وو، څه شول؟ دغه بيانې چې بايد ستا د زوړ عمر د ساتنې او خوشالتيا تکيه وای، هر يو د يوکلنۍ په عمر خرڅ شو، افسوس چې ته به له هغوی څخه يو هم په خپل ټول ژوندکې په سترګو ونه ګورې، تاته د څلورکرته بلاربېدو او په زمکه‌کې د شپه او ورځ د کار په بدله‌کې له ډېرې لږې څيرې او د اخور نه پرته نور څه درکړل شوي دي؟))

(( او سره له دې هم چې موږ د خوارۍ او تکليف ډک ژوند تېروو بيا هم موږ ته دا موقع نه راکول کېږي چې خپل ژوند به طبيعي صورت تر پايه ورسوو. زه د خپل ځان په باره‌کې شکايت نه لرم، ځکه چې زه يو د نېکمرغه ځناورو څخه يم. زه اوس دولس‌کلن يم او تراوسه مې د څلور سوه څخه

زيات بچي زېږولي دي او د يو خوګ طبيعي ژوند هم دومره دی. په صراحت درته وايم چې يو ځناور هم د انسـان د بې رحمه چړې څخه نه خلاصـېږي. تاسو واړه خوګان چې زما مخامخ پراته يئ، په يو کال کې دننه به تاسو قصاب خانې ته يوړل شئ، دلته به تاسو ډېرې بغارې ووهئ خو ستاسو د بغارو سره سـره به سـتاسـو ژوند ته خاتمه ورکړل شـي. موږ ټول ځناورکه غواوې يو او که خوګان، که چرګان يو او که مېږې، بلکې زموږ څخه هر يو ځناور حتماً د دغه بوګنوونکي سرنوشـت سـره مخامخ کېدونکی دی. همدا شـان اسـونه او سپي هم څه ښه ورځ نه لري.))

(( بوکســره؛ کله چې ســتا لوی او قوي غړي خپل قوت او توان له لاســه ورکړي، په هم هغه ورځ دې جونز په قصــاب پلوري، ته به د قصــاب په بې رحمه چاړه حلالېږې او ستا غوښې به د ښکاري سپو لپاره پخېږي، په سپو هم دغه ورځ راتلونکې ده. کله چې دوی زاړه او بې غاښـو شـول، جونز به د دوی د ورمېږونو پورې لوی کاڼي وتړي او په ډنډونو کې به يې غرق کړي.))

((ملګرو! ايا دا د لمر په شــان روښــانه واقعيت نه دی، چې زموږ د ژوند ټـ،لې خواري او بدبختي د انسان د ظلم او استبداد له لاسه دي؟که غواړئ چې تاسو په خپله د خپل کار د توليد خاوندان شئ، بيا نو پورته شئ او د دغه ظالم انسـان نه ځانونه خلاص کړئ. که د انسـان نه مو ځانونه خلاص کړل، نو زه زېری درکوم چې په يوه شپه کې به د ټولو شتمنيو او ازاديو خاوندان تاسو شئ.))

(( څه بايد وکړو؟ د انسـانانو د نسـل د غورزولو لپاره پرله پسـې او نه سـتړي کېدونکې مبارزه وکړي. ملګرو! تاســو ته زما يو پيغام دی او دغه پيغام دی ((انقلاب)) زه اوس نه پوهېږم چې دغه ((انقلاب)) به کله راشـي، کېدی شـي

چې دغه ((انقلاب)) یا په یوه هفته کې راشي او یا په سلګونو کلونو کې، لکه څنګه چې زه د خپلو پښو د لاندې دا بوس په خپلو رڼو سترګو وینم همدا شان زه پوخ باور لرم چې ژر یا وروسته دغه ((انقلابي عدالت)) خامخا راتلونکی دی.))

((ملګرو! په دې لنډ او د ستونزو نه په ډک ژوندکې د انقلاب نه پرته په بل هېڅ شي فکر ونه کړئ. د دې لپاره چې راتلونکي نسلونه خپلو مبازو ته د انقلاب د بریالیتوب پورې دوام ورکړي، نو زما دغه پیغام راتلونکو نسلونو ته هم ورسوئ.))

((ملګرو! په خپله اراده او تصمیم کې هېڅ تزلزل پیدا نه کړئ، پام کوئ چې د انسانانو استدلال مو بې لارې نه کړي. کله چې درته انسانان وایي چې د انسان او څناوروګټې مشترکې دي او یا د څناورو او انسان خوشبختي یو شی دی، دا ټول دروغ دي. دا پوچې خبرې دي، پام کوئ چې غوږ ورته ونه نیسئ، ځکه چې انسان د خپلو ګټو پرته د بل هېڅ مخلوق د ګټو خیال نه ساتي راځئ چې د انسان پر ضد مبازه کې موږ ټول څناور په خپل منځ کې مکمل اتحاد او ملګرتیا وساتو او باید چې موږ په یو اواز دا چیغه پورته کړو چې ټول انسانان زموږ دښمنان دي او ټول څناور د یو بل ملګري او عزیزان دي.))

کله چې میجر بیانیه ورکوله په دې وخت کې درې غټې مږې د خپلو سورو څخه راوتلې وې او په وروستیو پښو ولاړې د هغه خبرو ته یې غوږ نیولی و. ناڅاپه ورباندې د پیشو نظر ولګېد. هغوی په یو ټراټ په منډه په خپلو سورو ورننوتلې او په ډېره چټکتیا یې ځانونه د مرګ له کومې خلاص کړل. په دې

شپېه کې د ځناورو شور پورته شو او ميجر د شور د غلي کېدو په خاطر خپله مخکنۍ پښه پورته کړه.

((ملګرو! هغه ويل: (( دلته ستاسو سره فيصلې ور يوه مهمه موضوع طرح کوم. ايا وحشـــي ځناور لکه مږې. ســـوي او نور زموږ ملګري دي او که دښمنان؟ ايا مږې ملګرې دې؟ راځئ چې دا موضوع رايې ته وړاندې کړو او زه غونډې ته د دوی سوال د وړاندې کېدو وړانديز کوم.))

ډېره ژر رايې واخيستل شوه او ټولو په مطلق اکثريت فيصله وکړه چې ملګرې دي. په ټوله غونډه کې درې سپي او يوه پيشو مخالف وو، اما وروسته د رايې د شـــمېرلو څخه څرګنده شـــوه چې دوی هم دواړو خواوو ته خپلې رايې ورکړې وې. ميجر خپلو خبرو ته دوام ورکړ.

((ملګرو! لږ نور څه هم ويل غواړم او شـــايد چې دا زما د تېرو خبرو تکرار وي. د انســان او د هغه د لارو چارو پر ضـــد د دښـــمنۍ وظيفه هېره نه کړئ. هر څه چې په دوو پښـــو ګرځي هغه زموږ دښـــمن دی. هر څه چې په څلورو پښـــو ځي او يا ځانګو نه لري هغه زموږ ملګری دی. پام کوئ چې حتی د انسان پر ضد د جګړې په دوران کې هم تاسو د انسان غوندې ښکاره نه شئ او هرکله چې تاسـو په انســان بريالیتوب مومئ بايد د انســان فســاد خپل نه کړئ. د انســان ټول عادتونه خراب دي او تاسـو په کلکه د انسـان د عادتونو څخه ځانو نه وســـاتئ. د انقلاب وروســـته دې هېڅ ځناور په کور کې نه اوسېږي، په بستره دې نه ويده کېږي، جامې دې نه اغوندي، شراب او تمباکو دې نه څښـي، پيسـو ته دې نه نږدې کېږي او تجارت دې نه کوي. يو ځناور دې په بل ځناور ظلم نه کوي، ضـعيف يو او که قوي هوښـيار يو او که سـاده،

موږ ټول ځناور د یو بل وروڼه یو. پام کوئ چې یو ورور بل ورو مړ نه کړئ، ټول ځناور مساوي دي.))

((ملګرو! اوس درته د تېرې شـپې خوب وایم. زه درته د دې خوب تشـریح نه شـم کولای، ځکه چې دا د داسـې نړۍ خوب دی چې د زمکې په سـر به ټول انسـان له منځه تللی وي او یوازې ځناور به د دې زمکې اصـلي وارثان وي. ډېر وخت کېږي چې یو شـی زما نه هېر شـوی و او تېره شـپه راته دغه شـــی په خوب کې رایاد شـــو. زه لا وړوکی خوګ وم چې زما مور او نورو خوګانو بـه یوه زړه ترانه ویله او دوی ټول یوازې د دې ترانې پـه اهنګ او درې مخکنیو ټکو پوهېدل. په ماشـــومتوب کې زه هم د دې ترانې په اهنګ پوهېدم لاکن ډېره موده کېږي چې د ترانې اهنګ مې له یاده وتلی و. د تېرې شـپې په خوب کې راته هېر اهنګ بیا را په یاد شـو. د خوب مهمه برخه دا ده چې په خوب کې راته د زړې ترانې ټول الفاظ هم راپه زړه شول. زه پوره باور لرم چې ډېر پخوا ټولو لرغونو ځنـاورو هم دا ترانـه ویلـه خو لـه بـده مرغـه ورپسې نسلونو دغه ترانه هېره کړه.))

((ملګرو! زه به اوس درته دا ترانه ووایم، تاســو پوهېږئ چې زه اوس زوړ یم او اواز مې هم بغن دی خو چې زه درته د دې ترانې اهنګ یو ځل در زده کړم بیا یې تاســـو په خپله ښــه ویلی شـــئ. د دې ترانې نوم دی: د انګلســـتان ځناورو.))

(( وړ میجر غاړه تازه کړه او ورپسې یې ترانه شروع کړه. لکه څنګه چې هغه ویلي وو چې اواز مې بغن دی، برعکس هغه ترانه په ډېر خوند وویله او د دې ترانې خوږ اهنګ د فارم ټول ځناور په مستۍ راوستل، د ترانې الفاظ دا دي:

ځناورو د ایرسنډ او انګلستان
ځناورو د هر ملک او ټول جهان
د راتلونکي طلایي وخت په باره کې
واورئ زما د خوشالیو ډک زیری
ژر یا وروسته هغه ورځې دي راتلونکې
چې غورځیږي مستبد انسان له تخته
او دا زموږ پر حاصل خیزو ښکلو زمکو
به یوازې ځناور ګرځي راګرځي.
»»»

زموږ د پوزو پېزوانونه به نور نه وي
او انسان به مو په خولو کې
ملونه نه شي اچولای
زنګ وهلي به پراته وي
ټول ملونه رکابونه
نور به نه وي شړکهاری د غمچینې
»»»

که غنم دي که اوربشې که جودر دي
که وابښه دي که لوبیا که چغندر دي
که شوتل دي او که هر څه شتمني دي
دا به زموږ وي، ټول به زموږ وي
د دې ورځې تصور تاسو ته ګران دی.
»»»

دا پټـــي د انګـلســـتــان بـــه ټــول ســـــمســــور وي
او اوبـــه بـــه يـــې لا نـــورې هـــم رڼـــې وي
خــــوږ نســـــيـــــم بـــــه پـــرې چـــلـــيـــږي
پـــــه دې ورځ بـــــه مـــــوږ ازاد يــــــو
د دې ورځـــې پـــه خـــاطــر بـــه ټـــول جـــنـګـيـږو
کــه څـو مـړه شــو تـر هـغـه سـبـاوون مـخـکـې
»»»

کــه آســـونــه کــه غــواګـــانــې پــيــل مــرغــان دي
کــه څــه بــتـــې او يـــا نـــور ټـــول حـــيـــوانـــان دي
بـــايـــد يـــو شـــي پـــه تـــلاش د ازادۍ کـــې
ځـــنـــاورو د ايـــرلـــيـــنـــډ او انـــګـــلســـتـــان
ځـــنـــاورو د هـــر مـــلـــک او ټـــول جـــهـــان
د راتـــلـــونـــکـــي طـــلايـــي ژونـــدون لـــپـــاره
مـــاتـــه خـــېـــر شـــئ او دا زمـــا زيـــري خـــپـــاره کـــړئ
»»»

ترانې دفارم په ټولو ځناوروکې زبردســـت جوش راپيداکړ. ميجر لا ترانه پای ته نه وه رسولې چې تقريباً ټولو ځناورو د ميجر سره يوځيا ترانه زمزمه کوله. ســـاده ځناورو اهنګ او ترانې څو ټکي زده کړي وو. د خوګانو او ســـپيو غوندې هوښـــيار ځناورو په څو دقيقوکې ټوله ترانه په ياده ياده کړه. د څو کرته تکرار وروسته په ټول فارم کې ((د انګستان ځناورو)) د ترانې لړزوونکی اهنګ خپور شو. غواګانو په رمباړو، اوزو په بغ بغ، سپيو په سرنګېدو اسونو په شـــنېدو او بتو په قاقا ســـندره ويله. له ډېرې خوشـــالۍ څخه د فارم ټولو

ځناورو پنځه کرته دغه ترانه تکرار کړه. که چېرې د دوی د ترانې په ویلو کې مداخله نه وای شوې، ښایي چې دغه ترانه به ټوله شپه روانه وای.

له بده مرغه مستر جونز راویښ شـو هغه د بسـترې نه راودانګل او فکر یې کاوه چې ګوندې د کور غولي ته ګیدړه رانوتې ده. هغه د خوب په کوټه کې ولاړ ټوپک ته لاس کړ او په تیاره کې په شـپږم نمبر کارتوس ډزې وکړې. د ټوپک ګولۍ د انبار دکوټې په دېوال ورننوتلې او د ډز سـره د ځناورو پټه غونډه ډېره ژر خپره شـوه او ټول ځناور په یوه منډه د ویده کېدو ځایونو ته وتښـتېدل. مرغیو خپلو جالو ته ودانګل او نورو ځناورو په سـوکې ډوب پرېوتل او په یوه شېبه کې ټول فارم ویده شو.

# دویم څپرکی

درې شپې وروسته زوړ میجر په خوب کې په ارامه ساه ورکړه او د هغه مړی د باغچې تر څنگ ښخ شو. دی د مارچ د میاشتې پر لومړنیو ورځو کې مړ شو.

د زوړ میجر تر مړینې وروسته د راتلونکو درې میاشتو په دوران کې ډېر جدي فعالیت روان و، ځکه چې د میجر وینا اوس د فارم هوښیار ځناورو ته د ژوند په باره کې بالکل نوې جهان بیني ورکړې وه، سره له دې چې هوښیار ځناور هم په دې نه پوهېدل چې د میجر د وړاندوینې له مخې دغه انقلاب کله راتلونکی دی او نه د دې داسې کومې نښې نښانې لیدلې چې گوندې دغه انقالب به د دوی په ژوندکې راشي. خو بیا هم دوی دا خپله وظیفه گڼله چې د راتلونکي انقلاب لپاره لار هواره کړي. خوگان د فارم تر ټولو ځناورو هوښیار وو، ځکه نو د فارم د ټولو ځناورو د تدریس او تنظیم کار یوازې د خوگانو پر اوږو پرېوت. د ټولو خوگانو په جمله کې سنوبال Snowball او ناپولن Napolean دوه مشهور ځوان خوگان وو او دوی دواړه مستر جونز د خرڅولو لباره ډېر ښه ساتلي وو. په ټول فارم کې ناپولن د برک شیر Berk shire د خوگانو د نسل څخه یوازې خوگ و. دې د وجود نه لوی، سخت مزاجه چپ او خپل سری حیوان و. د ده په مقابله سنوبال ژوندی زړې، فصیح او ځیرک خوگ و، مگر سنوبال دناپولن غوندې د دروند شخصیت څښتن نه و، له دوی بر سبېره د فارم نور ټول نر خوگان ارگجه پورکز Porkers وو. په دوی کې سیکولر لنډې او څورب خوگ و. ده گرد غمبوري، رپنده سترگې چست حرکتونه او چیغنده اواز درلود. په خبرو کې ډېر تکړه و. کله چې به یې د ځینو مشکلو مسایلو د تشریح په باره کې استدلال کاوه، هر

وخت به یې یوې او بلې خوا ته ټوپونه وهل او دا دده مخصوصه طریقه وه، هما شـــان به یې خپله لکۍ ژر ژر تاووله راتاووله چې دې کار د نورو د قانع کولو لپاره یو ډول تشـویقي جنبه درلوده. د فارم نورو څناورو د سیکولر د استدلال په برخه کې تل دا اعتراف کاوه چې سیکولر د خپل استدلال په قوت له تور څخه سپین او له سپین څخه تور جوړولای شي.

دې درېواړه خوګانو تـل زیـاد الیســـت چې د وړ میجر ویناګانو تـه د ((حیوانیت)) په نوم د یوې مکملې ایډیالوژۍ سیستم ورکړی، د مستر جونز د ویده کېدو وروســته خوګانو په هفته کې څو شـــپې په لوی ګودام کې پټې غونډې دایرولې او دلته به یې نورو څناورو ته ((د څناورتوب)) د اصـــولو تشریح ورکوله. د غونډو په پیل کې دوی د ځینو څناورو د سادګۍ، حماقت او بې علاقګۍ سره مخامخ شول، ځینو څناورو به ویل چې موږ مستر جونز ته د وفادارۍ وظیفه په غاړه لرو او دې څناورو په خپلو خبرو کې تل جونز د بادار په نوم باله. یا به یې په ځینو غونډو کې خبره داســـې پیل کوله ((مســـتر جنز موږ ته خوراک راکوي، که چېرې هغه نه وي نو موږ خو به له لوږې مړه شـو.)) ځینو به دا پوښـتنې کولې ((هغه انقلاب)) چې زموږ تر مرګ وروسـته راځي نو ولې اوس پرې ځـانونـه زهیر کړو؟)) کـه چېرې دغـه ((انقلاب)) خامخا راتلونکی دی، نو د ((انقلاب)) لپاره زموږ کار او زیاکول او یا نه کول بـه پـه ((انقلاب)) څـه تـاثیر وغورځوي؟)) خوګانو بـه تـل نورو څناورو تـه قناعت ورکاوه چې دغه ډول فکر کول ((د څناورتوب)) د روحیې پر ضـــد یو عمل دی، خو دوی به تل د دا ډول سوالونو په مقابل کې د مشکلاتو سره مخامخ کېدل. سـپینې اسـپې مولي به له ټولو نه زیات بېعقله پوښـتنې کولې. د هغې لومړۍ پوښـتنه د سـنوبال نه دا وه ((ایا د انقلاب نه وروسـته به نبات وي؟)) ســـنوبال د هغې ســـوال ته په قهرجنه لهجه ځواب ورکړ، ((نه! تر

انقلاب وروسته به نبات نه وي. موږ په فارم کې د نبات د جوړولو وسایل نه لرو. د انقلاب نه وروتسه به د فارم ټول جودر او وچ واښه ستا د ضرورت پر اساس ستا په اختیارکې وي.)) ایا د انقلاب نه به وروسته ماته د خپل ځنې په ویښتو کې د پیټو د تړلو اجازت وي؟)) مولي بله پوښتنه وکړه.

((ملګرې! په دغه پټۍ چې ته ورباندې دومره مینه یې او ورپسې مرې، په واقعیت کې دغه ستا د غلامۍ نښه ده. ایا ته په دې نه پوهېږې چې ازادي ډېر ارزښت لري او که په ځنې کې یوه پټۍ تړل؟)) سنوبال ورته ځواب ورکړ. په ظاهر کې مولي د سنوبال ځوابونه ومنل اما په زړه کې قانع نه و.

خوګانو د کورني کارغه موسز د دروغو پر ضد ډېره سخته مبارزه کوله. موسز یو چوغلګر، هوښیار او خبرلوڅ مارغه و او ده به تل جونز ته د جاسوسۍ کارکاوه. موسز به تل ویل چې هغه په یو مرموز ځای کې د نباتاتو د غر په باره کې معلومات لري اوکله چې ځناور مړه شي، د مړینې نه وروسته ټول ځناور دغه غر ته ځي.د نباتو په غر کې ټوله اوونۍ رخصت دی، دلته کال دولس میاشتې شنه شوتل ولاړ وي او د دې غر په لمنو کې د زغرو په تېلو کې پاخه د نباتو او دکېکونو بوټي ولاړ دي. نورو ځناورو د موسز نه نفرت کاوه، ده به تل دروغ ویل او ټک کار یې نه کاوه، خو سره له دې هم ځینو ځناورو د نبات په غره عقیده پیداکړې وه. خوګانو به تل د نورو ځناورو په منځ کې دا تبلیغ کاوه چې موسز دروغ وایي او دنباتو د غره په نوم هېڅ غر وجود نه لري.

دکراچۍ دوه اسونه بوکسر اوکلوور د خوګانو وفادار شاګردان وو، دوی په یوه مسله باندې په خپله فکر او غور نه شو کولای، دوی خوګان د استادانو په توګه منلي وو. هر څه چې به ورته خوګانو ویل دوی په پټو سترګو منل او

د خوګانو خبرې به يې په خپل ساده استدلال نورو ځناورو ته هم رسولې. دواړه به تل د ګودام په پټو غونډوکې حاضر وو او د هرې غونډې په پای کې به دوی (( د انګلستان ځناورو)) ترانه شروع کوله.

د ټولو ځناورو د توقع خلاف ((انقلاب)) ډېر ترمخه او ډېر په اسانه د برياليتوب پړاو ته ورسېد. سره له دې چې مستر جونز يو سخت مزاجه بادار او لايق بزګر و، خو په تېرو څوکلونوکې هغه په بده ورځ اخته شوی و. هغه په محکمه کې په يوه دعوا ډېرې پيسې وبايللې او د پيسو د بايللو په وجه يې زړه غورځولی و. هغه اوس ډېر شراب څښل او د خپل صحت د ساتلو نه بې پروا شرابي شوی و. ټوله ورځ به د اشپزخانې په ارام کرۍ ناست و، اخبار به يې لوست، شراب به يې ګوټل او کله کله به يې په بيرو کې د لمدې ډوډۍ ټوټې موسز ته اچول. د ده نوکرام هم تنبل او بې‌مانه شوي وو. د فارم ټول پټي چټي او وحشي وښو نيولي وو، د کورونو چتونه بېخي ړنګ شوي وو، د فارم غاړې او څنډې په بد حالت وې او په فارم کې ټول ځناور په ټوله ورځ نيم ګېډې وږي ولاړ وو.

د جون مياشت راورسېده او اوس د فارم د وښو د رېبلو وخت و. د شنبې پر ورځ د دوبي د اختر ورځ وه، په دې ورځ مستر جونز وليګډن ته تللی و او په ريډلاين Redloin کې دومره نشه شو چې د يکشنبې د نيمې ورځې پورې بېرته رانغی. د ده نوکرانو سهار د وخته غواګانې ولوشلې او بې له دې چې ځناورو په خوراک چرت خراب کړي، دوی هم د سويو ښکار ته ولاړل. کله چې مستر جونز بېرته راغی هغه نېغ د ناستې د کوټې په نرم پالنګ باندې د ويده کېدو لپاره ننوت. د ((نړۍ اخبار)) په نوم ورځپانه يې په مخ پرته وه او ځای پر ځای ويده شو. همد شان په ماښام کې هم ځناور وږي پاتې شول.

نورو ځناورو د لوړې مقاومت نه شوکولای، یوې وړې غوا د لوی انبار ورته ښــکرونه اړم کړل. دروازه یې ماته کړه او ټول ځناور په منډه انبار ته ننوتل په انبار کې یې د غلې په کندوانو خولې خښــې کړې او په پرتو غلو دانو تالان ګډ شــو. په دې وخت کې مســـتر جونز له خوبه راویښ شـــو او هغه د څلورو مزدورانو سـره غمچینې په لاس په منډه د انبار کوټې ته ورغلل او په هره خوا یې د غمچینې ګوزارونه شـــروع کړل. وږو ځناورو د لوږې او د غمچینو د وهلو زغم نه درلود. سره له دې چې ځناورو ترمخه هیڅ پلان نه درلود، خو بیـا هم ټولو ځنـاورو پـه یوه اتفـاق پـه ګـډه پـه جونز او د هغـه پـه نوکرانو ورودانګل، ناڅاپه ځناورو د هرې خوا نه جونز او د هغه نوکران د لغتو لاندې ونیول او ډېر ژر وضــعه د جونز او د هغه د نوکرانو د کنټرول څخه ووتله. د دې نه مخکې دوی د ځناورو د داسې عکس العمل سره نه وو مخامخ شوي، دوی چې به مخکې څنګه غوښـتل هم هغه شـان به یې ځناور په خپله خوښـه وهل او ځورول. اوس د ځناورو ناڅاپي پاڅون او بلوا څخه ټوکه نه وه، د ځناورو ناڅاپي پاڅون دوی ډېر زیات ووېرول، څو شـــېبې وروســـته د دوی دفاعي هلې ځلې ختمې شـــوې او پنځه واړه پـه یو تراټ د انبار کوټې نه وتښتېدل. پنځه واړه د لوی سرک په طرف د کراچۍ په لار چارنال زغاستل، بریالي ځناور ورپســـې وو او په یوه دقیقه کې یې فارم له ســـاحې څخه په یوه منډه وویستل.

د جونز مېرمنې دا هر څه د خوب د کوټې نه په خپلو ســـترګو لیدل. هغې په ډېره وارخطایۍ د خپل سـامان ځینې شـیان د قالینې په خورجین کې ورومنډل او ډېره غلې په بله لار د فارم نه ووتله. موسز له خپلې ځالې نه راټوپ کړ. په زور چیغې یې ووهلې او نېغ د جونز د مېرمنې پسې وتښتېد. تر دې وروسته بریالیو ځناورو جونز او د هغه څلور نوکران د فارم نه بیدیال لوی ســـرک ته

ورسول او ورپسې يې د فارم هغه لويه دروازه چې پنځه پنجرې يې لرې پورې کړه. سره له دې چې څناور ورباندې هيڅ پوه نه شول، اما په واقعيت کې د څناورو انقلاب په بريالیتوب ترسره شوی و، څکه چې اوس جونز او د هغه نوکران شړل شوي وو او د مانور فارم اوس يوازې د څناورو په تصرف کې و.

په لومړنيو څو دقيقو کې د څناورو په خپل بريالیتوب هيڅ باور نه کېده. خو بيا هم د دې لپاره چې څانونه په دې متيقين کړي چې د فارم دننه انسانانو څانونه نه وای پټ کړي، ټول په يو تراټ د فارم دننه او د فارم د ټولو سرحدونو چاپېره وګرځېدل او بيا يې په يوه منډه څانونه د فارم مېنې ته راورسول چې دلته د جونز د ظلم او استبداد د دورې ټولو بقاياوو ته د تل لپاره خاتمه ورکړي. دوی د غوجل وروستی ګوټ ته پرتې د ملونوکوټې ماتې کړې او له دغوکوټو څخه يې د اسونو د وسپنې ملونه، کيزې، د څناورو پېزوانونه او مهارونه، د سپو زنځيرونه او هغه تېرې چړې چې مستر جونز به ورباندې خوګان او ورې خصي کول را وويستلې او دغه ټول شيان يې څاه ته کښته وغورځول، د غوجل ترڅنګ د خزلو اور بلېده او ځينې کيزې ترسرې او د څناورو د خوراک توبرې يې د خزلو اور ته وغورځول. همدا شان د جونز د استبداد ځورونکې بقايا متروکې او غمچينې هم دې اور ته ګوزار شوې او څه وخت چې څناورو وليد چې غمچينو اور واخيست او سرې لمبې يې پورته شوې، ټولو څناورو د ډېرې خوشالۍ نه پورته پورته ټوپونه شروع کړل. سنوبال هغه پټۍ چې د بازار په ورځ به ورباندې جونز او د هغه نوکرانو د اسونو د څټ وېښته او لکۍ سنګارولې هم دې اور ته وارتولې.

((ملګرو! پټۍ د جامو حيثيت لري او جامې د انسان نښه ده، بايد ټول څناور بربنډ وګرځي.))

**سنوبال په جگ اواز وویل:**

کله چې بوکسر د خپل استاد خبرې واورېدې هغه ژر ولاړ او د دروځو وړوکې خولۍ یې هم راوړه او د خزلو اور ته یې وغورځوله. دا هغه خولۍ وه چې ده به د دوبي په ګرمۍ کې د مچانو له لاسه په سر کوله. څو چې مچان یې غوږونو ته ورنه وځي.

څناورو په ډېر لږ وخت کې د مستر جونز د استبداد ټوله بقایا له منځه یوړه. د ناپولن په بلنه ټول څناور د انبار لویې کوټې ته ولاړل او دلته هغه هر څناور ته یو په دوه خوراک او هر سپي ته دوه دانې بسکټ ورکړل. د خوراک نه وروسته ټولو څناورو په ګډه ((د انګلستان څناورو)) ترانه پرله پسې اوه ځله وویله. په دغه شپه کې ټول څناور یوځای څنګ په څنګ ویده شول او د لومړي ځل لپاره یې داسې خوږ خوب وکړ چې مخکې له دې هغوی هېڅکله داسې خوږ خوب نه و کړی.

دوی د معمول سره سم سهار د وخته راویښ شول. ناڅاپه ورته خپل بریالی انقلاب ور په زړه شو او ټول څناور یوځای څړ ځای ته په ځغاسته ورغلل. دلته بالځړ ته نږدې یوه وړوکې غونډۍ وه او له دې غونډۍ له سر نه ټول فارم ښکارېده، دوی په یوه منډه د غونډۍ څوکې ته وختل او د سباوون په روښانه رڼاکې یې چار چاپېره په ځیر ځیر کتل. هو، اوس فارم د دوی ملکیت و او چار چاپېره هر څه چې د دوی په نظر راتلل دغه ټول د دوی ملکیت دی. څناورو د خوشالۍ له ډېره جوشه پورته هوا ته ټوپونه وهل، هغوی د سباوون په پرخه کې منډې رامنډې وهلې، دلته او هلته یې شنو وښو ته خولې اچولې، د څربې زمکې لوټې یې په پښو میده کولې او د خاورې مست بوی یې بویوه. دوی د ټول فارم چکر ولګاوه او په ډېر غور یې په ټیټه خوله د فارم

د کرلې زمکو، د وښــو د پټو، باغچو، ډنډونو او چاپېره ولاړو بوټو معاینه وکړه. دوی د معاینې په دوران کې هر شــي ته په داســې حیرت کتل لکه چې دغه شی دوی له دې مخکې هېڅ نه وي لیدلای، همدا شان د دوی هېڅ باور نه کېده چې ګوندې دغه پراخه کرونده به اوس د دوی خپل ملکیت وي.

د فارم تر لیدنې وروسته ټول څناور د مستر جونز مېنې ته راغلل او دوی په کتار د دغې مېنې د دروازې مخکې غلي ودرېدل. سره له دې چې اوس دغه مېنه د دوی ملکیت و، خو بیا هم دوی دغې ته د ننوتلو څخه ډارېدل، سنوبال او ناپولن سکوت مات کړ. دوی رامخکې شول، د مېنې دروازې ته یې اوږې ورکړې او په یوه شېبه کې یې د مېنې دروازه ورماته کړه او د ماتېدو سره ټول څناور په یو کتار مېنې ته ورننوتل. له دې ډاره چې په مېنه کې پروت سامان ګډوډ نه شي، ټولو څناورو د مېنې دننه په ډېر احتیاط چلند کاوه، دوی د پښــو په څوک د یوې کوټې نه بلې کوټې ته تلل او د خبرو پرځای یې د یو بل په غوږ کې پس پسی کاوه. دوی د مستر جونز په مېنه کې د بنکو څخه د ډکو توشکونو، د ځان د لیدنې ښیښو، د اسونو د ویښتو نه ډک پالنګونو او سرفو، د بروسل قالینو او دناستې په کوټه کې د ملکې وکټوریا چوکاټ شوی لوی عکس ننداره په ډېره حیرانتیا کوله.

کله چې دوی جونز د مېنې د پوړو څخه راکښــته کېدل، مولي د څناورو په ډله کې نه ښکار کېده، بلکې د مېنې دننه یې ځان پټ کړی و. ځینې څناور په مولي پســې وګرځېدل، ګوري چې هغه د جونز د ویده کېدو په کوټه کې پاتې شوې ده او د جونز د مېرمنې په سینګار مېز پروت نیلي پټی یې په خپلو اوږو اچولې ده. ښیښې ته ولاړه ده په ښیښــه کې ځان ته ګوري او په ډېره ساده توګه په خپله د خپلې ښــکلا ســتاینه کوي. ځینو څناورو د هغې دغه عمل وغانده. دوی بېرته اشــپزخانې ته ولاړل، دوی په اشــپزخانه کې د خوګانو

زوړندې غوښې د پخولو لپاره د ځانونو سره بیدیا ته راوړې. یوازې د بوکسر په اشپزخانه‌کې د جونز د بیرو ډک برل په خپلو سومانو چیت پیت‌کړ. له دې پرته په‌کوټو کې په پرتو ټولو شیانو هېڅ غرض ونه شو.

له دې ننداري په پای‌کې یو ځل بیا ټول ځناور د مستر جونز د مېنې په مخکې راټول شول دلته ټولو دا فیصله وکړه چې د مستر جونز مېنه دې د ځناورو د فارم د موزیم په حیث خوندي وساتل شي او تر دې وروسته به هېڅ ځناور په دې مېنه‌کې نه اوسېږي. ټولو په یو اواز دا فیصله ومنله او له دې فیصلې وروسته د ځناورو غونډه خپره شوه.

تر سبا ناري وروسته سنوبال او ناپولن د ځناورو غونډه راوبلله. ((ملګرو! ((سنوبال غونډې ته ویل،)) اوس پوره شپږ نیمې بجې دي او ټوله ورځ راته مخکې پرته ده. نن موږ د وښو لو ګډوو، د لو ګډېدو نه دمخه ستاسو پام یوې بلې موضوع ته راګرځول غوارم،)) ((درې میاشتې مخکې د جونز ځامنو د زړې لهجې د زده‌کړې یو کتاب ډېءان ته غورځولی و. موږ خوګانو دغه‌کتاب پیداکړ او موږ ټولو په تېرو درې میاشتو کې له دغه‌کتاب څخه لیک لوست زده‌کړي دي.))

ناپولن تور او سپین رنګ راوغوښت او بیا ټول ځناور د لوی سړک په طرف د فارم د لویې دروازې پر لور روان شول. په ټولو خوګانو کې د سنوبال لیک ډېر ښه و، هغه د مخکې پښې په‌ګوتو د لیک برش ونیو. لومړی یې د لویې دروازې د تختې څخه ((د مانور فارم)) پخوانی لیک پاک‌کړ او د دې پر ځای یې ((د ځناورو فارم)) ولیکه. تر دې وروسته دغه فارم پر همدې نوم مشهور شو.

تر دې وروسته ټول ځناور د فارم ودانيو ته ولاړل. سنوبال ا ناپولن زينه راوغوښتله، دوی زينه د لوی ګودام دېوال ته ودروله، دلته سنوبال او ناپولن نورو ځناورو ته د تشريح په ترڅ کې وويل:

((ملګرو! مونږ خوګانو کړای شول چې په دې تېرو درې مياشتو کې د ((ځناورتوب)) ټول اصول په ((اوه حکمونو)) کې خلاصه کړو. اوس دا اوه حکمونه په دې دېوال ليکل کېږي. له دې وروسته به دغه ليکل شوي احکام هم ستاسو او هم د راتلونکو ځناورو د ژوند لپاره د نه بدلېدونکو قوانينو حيثيت لري.))

د يو خوګ لپاره په زينه باندې د ځان د موازنې ساتل څه اسان کار نه و، خو بيا هم د ځينو مشکلاتو سره سنوبال په زينه پورته شو، يو څو پوړۍ کښته سکيولر ورته د رنګ بوتل نيولی و او په اخره پوړۍ ولا سنوبال د ليک کار شروع کړ. هغه په قير دېوال دغه اوه احکام په ډېر روښانه سپينو تورو وليکل. دغه توري د دېرش ګزه فاصلې څخه هم په اسانه لوستل کېدل. احکام دادي:

## اوه احکام

۱- هر څه چې په دوو پښو ځي، دښمن دی.

۲- هر څه چې په څلورو پوښو ځي يا ځانګونه لري، ملګری دی.

۳- هېڅ ځناور به جامې نه اغوندي.

٤- هېڅ ځناور به پر بستره نه ويده کېږي.

۵- هېڅ څناور به شراب نه څښي.

٦- هېڅ څناور به بل څناور نه وژني.

۷- ټول څناور مساوي دي.

په املاکې د دوو وړوکو غلطیو پرته دغه اوه احکام ډېر سوتره ولیکل شول. سنوبال د نورو څناورو د پوهېدو په خاطر دغه اوه احکام څو ځله په اوچت اواز ولوستل. د لوستلو نه وروسته ټولو څناورو د مکملې موافقې او تائید په توګه خپل سرونه وخوځول او په څناوروکې هوښیار څناورو دغه ټول احکام ډېر ژر په یادو یادکړل. سنوبال د لیک د بورس د غوځولو وروسته وویل:

((ملګرو! وړاندې د وښـو د ځمکې پر لور! راځئ چې کار وقار وګړو راځئ چې دا په عملکې اثبات کړو چې موږ څناور د جونز او د هغه د نوکرانو په تناسب چټک کار کولای شو.))

په دې وخت کې هغه درې غواوې چې د څه وخت راهیسې نارامه معلومېدې په پای کې په رمباړو سر شوې. په تېرو څلورویشتو ساعتونوکې هغوی نه وې لوشل شوې. تیونه یې د شیدو څخه داسې ډک شوي وو، نږدې و چې وچوي. د لږ فکر کولو وروسته خوګانو ستلونه راوغوښتل او خوګانو دغه درې واړه غواوې ولوشلې.ددې لوشلو څخه معلومه شوه چې د خوګانو مخکې پښې د لوشلو لپاره مناسبې وې. د غواوو د ټینګو شیدو څخه پنځه ستلونه ډک شول او په ستلونوکې پرتو شیدو ته ټولو څناورو په ډېره مینه او علاقه کتل.

((په شیدو به څه کوو؟)) یو څناور پوښتنه وکړه. ((کله‌کله به جونز زموږ د خوراک د پوټیو سره شیدې ګډولې)) یوې چرګې وویل: ((ملګرو! په شیدو

**هېڅ فکر مه کوئ، د شـــيدو چاره به وشـــي!)) ناپولن چيغه کړه او په خپلهد شـــيدو د ســـتلونو نږدې ودرېد.)) په دې وخت کې لو ډېر مهم دی. ملګرو ســـنوبال به درته لارښـــوونه وکړي او زه به يو څو دقيقې وروســـته درپســـې درشم.))**

**((ملګرو! په وړاندې د وښـو پر لور! واښـه سـتاسـو د لو انتظار باسـي.)) ټول ځناورکتار د لو لپاره ولاړ خوکله چې دوی مابښـــام د وښـــو له پټيو ســـتړي ستومانه بېرته راغلل. ګوري چې شيدې غيب شوي دي.**

# درېيم څپرکی

څومره په ډېر زيار او د خولو په تويولو څناورو وچ وابښه ځای پر ځای کړل! دوی د خپل کار او زيار په برکت ډېر حاصـــل ترلاســـه کړ. دا ځل د دوی د توقع نه پورته لو په بريالیتوب ترســـره شـــو او زمکې هم ډېره غله وکړه. په ځينو وختونوکې به کار سـخت و، ددې علت دا و چې په فارم کې د کار ټول وسـايل د څناورو پر ځای د انسـانانو د کار لپاره جوړ شـوي وو او دغه ډول وسـايل د څناورو د کار په لار کې لوی خنډ و. څناورو دغه وسـايل ځکه نه شـو اسـتعمالولای چې دوی بايد د اسـتعمال په وخت کې پر وروسـتيو دوو پښو نېغ ودرېدلي وای. سره له دې مشکلاتو بيا هم خوګانو دموره هوښيارتيا درلودله چې دوی به د هر مشــکل د حل لار پيداکولای شــوه. د بلې خوا د فارم اســـونه د فارم د ټولې زمکې د لوېشـــت لوېشـــت ســـره بلد وو چې په واقعيت کې دوی د جونز او د هغه د نوکرانو په تناســـب د درمن (درمند) د جوړولو او په ښـــاخې باندې د درمن د بادولو په‌کار ښـــه پوهېده. خوګانو په خپله ټک کار نه‌کاوهن خو د نورو څناورو په لارښـــوونه او څارنه‌کې بېخي تکړه وو. خوګانو د نورو څناورو په تناسب ډېره پوهه درلوده. طبيعي وه چې دغه خوګان دې د نورو څناورو مشـــرتوب په لاس کې ونيســـي. بوکســـر او کلوور به ټوله ورځ د کراچۍ د راکښـــلو په درمند د ګرځېدو او د درمند د بادولو په‌کار مصروف وو. په دې ورځوکې خپلواک اصونو ملونو او واکو ته هېڅ ضـــرورت نه درلود. د کار پر وخت به يو خوګ د ټولو څناورو تر شـــا روان و، دې خوګ به نورو څناورو ته ويل: ((مګلرو! ښـي طرف ته وګرځئ، ملګرو! چپ طرف ته وګرځئ، ملګرو! شـــاته وګرځئ، ملګر! اخوا وګرځئ، ملګرو! دېخوا وګرځئ.))

هیلیو او چرګو هم ټوله ورځ په غرموکې اخوا دېخو منډې رامنډې وهلې او تر خپله وسه یې زیار ویست، چې د غلې دانې او د وښو ډنډرې په خپلو مښوکوکې درمند ته یوسي. د معمول سره سم د فصل او وښو لو او دردمند جوړېدو د جونز او د هغه د نوکرانو ډېر وخت نیوه، برعکس ځناورو دغه ټول کارونه په دوو ورځوکې ترسره کړل. د فارم په تاریخ کې د فارم زمکو دومره غله نه وه کړې. دا لومړی ځل و چې د غلې یوه دانه او د وښو یو ډنډر ضایع نه شو، ځکه چې چرګو او هیلیو د خپل تېز نظر په برکت د پټو نه د غلې هره دانه او د وښو هر ډنډر راټول کړ او دوی د فصل یوه دانه او یو ډنډر ضایع کېدو ته پرې نه ښود. همدا شان د فارم په تاریخ کې دا لومړی ځل و چې د لو او د درمند په وخت کې یو ځناور هم یوه خوله خوراک پټ ونه خوړ.

په ټول دوبي کې د فارم نه د ستړي کېدونکي کار ډېر په بیړه روان و. ځناورو دا تصور نه کاوه چې د فارم کارونه به دومره په بیړه ترسره شي. اوس دوی د کار په کولو او د وخت نه مخکې د هر کار سرته رسولو په وجه ډېر زیات خوشاله وو. اوس واقعاً د خوړو هرې مړۍ دوی ته له حده زیات خوند ورکاوه، اوس دغه ټول خواړه دوی خپل خواړه ګڼل. دغه ټول خواړه دوی په خپلو متو او په خپل زیار پیداکول او اوس دغه خواړه ورته د مخکې لانجه مار بادار له خوا د خیرات په توګه نه ورکول کېدل، اوس د بې ارزښته او مفت خور انسان د تګ وروسته د فارم هر اوسېدونکي ځناور ته د خوراک هر شی پرېمانه ښکاره کېده، سره له دې چې ځناورو د ساعت تېرۍ مخکې تجربه نه درلوده، خو بیا هم دوی اوس د ساعت تېرۍ د هرې شېبې نه ډېر خوند اخیست.

سره له دې هم څناورو به کله کله د يو لړ مشکلاتو سره مخامخ کېده. د مثال په توګه په فارم کې د غلې د ټکولو او پاکولو ماشين نه و، کله چې دوی د کال په وروســتنۍ موده کې غنم درمند کړ، لومړۍ ورباندې وګرځېدل او بيا يې د خولو په پوکي بوس ترېنه پاک کړ دا ښځي لرغونې طريقه وه، خو بيا هم د خوګانو د هوښـيارتيا په برکت او د بوکسـر د جسـمي طاقت په زور غنم پاک شـول. د فارم ټولو څناورو د بوکسر د قوت او کار ډېر صـفت کاوه، بوکسـر د جونز په وخت کې هم سـخت کارونه کول خو اوس ده د درې اسـونو کار يوازې په خپله کاوه، کله به داســې ورځې هم راتلې چې د فارم ټول کار به د بکسـر په قوي اوږو پرېوت، په کوم ځای کې چې به ډېر سـخت يا ډېر کار و بوکسـر به د سـهار نه تر ماښـام دلته بوخت و او ټول روځ به يې ټېل وهل او راکښل کول. بوکسر د فارم د يو چرګ څخه داسې خواهش کړی و. ((ما هر ســهار د نورو څناورو نه مخکې راويښــوه. زه غوارم چې د ورځې د منظم کارد شـروع نه مخکې ځينې مهم کارونه ((د خپلې خوښـې کار)) د روجې پر اسـاس مخکې ترسـره کړم.)) بوکسـر د هرې کشـالې د حل او د هر نيمګړي کار د پوره کولو لپاره يو ځواب ورکاوه او هغه دا چې ((زه به لاپسـې سـخت او ډېر کار کوم.)) په بل عبارت د ډېر او ســخت کار کولو ځواب د بوکســر تکيه کلام ګرځېدلی و او کله چې به خوګانو نور څناور کار ته هڅول نو دوی به ورته د بوکسر د ډېر او سخت کار روحيه د نمونې په توګه ستايله.

د فارم هر څناور د خپل استعداد سره سم کار کاوه. د مثال په ډول چرګو او هيليو د درمندونو په وخت کې د پټو نه تيت و پرک غنم دانې راټولولې چې په پنجه کې له دغو دانو څخه د غلې پنځه پيمانې نوره سـپما هم وشـوه. اوس هېڅ څناور غلا نه کوله او يو څناور هم په خپله ځيره مرورتيا او خفګان نه ښکاره کاوه. پخوا د څناورو ترمينځ جګړې، يو بل چيچل، يو بل خوړل او د

يو بل پر ضـد کينه درلوده، د ورځني ژوند عادي خصوصيات ګڼل کېده، خو اوس دغه ټول شيان له منځه تللي وو يوازې کار وقاګڼل کېده او هېڅا د خپل کار نه غاړه غړوله.

دا يو واقعيت و چې مولي سـهار د وخته نه شـوه پاڅېدلای، کله چې به مولي کار ته راغله، نو هغې په دې پلمه چې په سـوم کې يې کاڼي ننوتي دي، خپل ورسـپارل شـوی کار ډېر د وخته پرېښـود او په خپله مخه به تلله. د فارم د پيشـو رويه هم څه عجيبه غوندې وه. د کار شـروع سـره به هغه په سـاعتونو ورکه شوه خو څه وخت چې به د ماښام په مهال کې کار خلاص شو او ځناور به خوراک ته راټولېدل نو هم په دې وخت به پيشـو راپيدا شـوه او د راتګ سـره به يې داسـې ښـودل لکه چې هېڅ نه دي پېښ شـوي. پيشـو د پلمو په جوړولو کې ډېره تکړه وه، هغې به هر ځل دمره ښه پلمه جوړوله او دغه پلمه به يې په دومره احسـاسـاتي لهجه بيانوله چې د فارم هر ځناور به د هغې په ارادو او ښـه نيت د زړه له کومي باور کاوه. (( د انقلاب)) راهيسـې به زوړ بنجامين کې هېڅ بدلون نه ليدل کېده. بنجامين په ((انقلابي)) دوره کې هم د پخوا غوندې په کرار اما په سـرزوری خپل کار ه دوام ورکاوه، هغه د هر کار کولو څخه غاړه نه غړوله خو د بوکسر او يا نورو ځناورو غوندې د اضافي او د خپلې خوښـې د کارونو داوطلب هم نه و، بنجامين د ((انقلاب)) او د ((انقلاب د نتايجو په باره کې هېڅ ونه ويل. که چېرې يو ځناور به ورځنۍ دا پوښـتنه وکړه چې (( ايا تاسـو د جونز په شـړلو او د ((انقلاب)) په راتګ ډېر خوشـحاله نه ياسـت؟)) نو بنجامين به دغه سـوال ته تل دا ځواب ورکاوه چې (( د خرو عمر ډېر اوږد وي او تاسـو تراوسـه په فارم کې يو خر هم مړ نه دی ليدلی)) نور ځناور مجبور وو چې د بنجامين په اسـرار اميزه ځواب قناعت وکړي.

په فارم کې د یکشنبې ورځ عمومي رخصت و او په دې ورځ به د نورو ورځو په تناسب سباناری پوره یو ساعت ناوخته کېده. د رخصتۍ پر ورځ به د سبا ناري وروسته د فارم ټول ځناور د ((تیوري)) درسونو ته حاضرېدل او د ((تیوري)) د درسونو څخه یو ځناور هم غیر حاضري نه شوه کولای. د ((تیوري)) درسونو د غونډو مراسمو کې به لومړی د فارم بیرغ پورته کېده. د دې بیرغ ټوکر یو زوړ شین مېز پوښ و او دغه مېز پوښ سنوبال د جونز د مېرمنې په کوټه کې موندلی و. سنوبال په دغه مېز پوښ په سپین رنګ د ځناورو سوم او ښکر رسم کړی و او د هرې یکشنبې په سهار به دغه مېز پوښ د فارم د خونې په باغ کې د بیرغ په ولاړه جنډه پورته کېده. د سنوبال د تشریح له مخې د بیرغ شین ټوکر د انګلستان د شنو پټو او د بیرغ سوم او ښکر د راتلونکي ((حیواني جمهوریت)) نمایندګي کوي. سنوبال به تل په خپلو خبرو کې په دې تاکید کاوه چې دغه ((حیوانی جمهوریت)) هله منځته راځي کله چې د انسانانو نسل له منځه ولاړ.

د بیرغ د پورته کېدو او د تیوریکي درسونو وروسته به بیا ټول ځناور د فارم د لوی ګودام په مینه کې د عمومي غونډې لپاره راټولېدل. دغه غونډه د ((مجلس)) په نوم بلل کېده. په ګودام کې به ټول ځناور ډلې ډلې په کتار ولاړ وو. په دې مجلس کې به د راتلونکې هفتې د کار پلان جوړېده او هم د بحث لپاره نوي پیشنهادونه وړاندې کېدل. په هر مجلس کې یوازې خوګانو د راتلونکې هفتې د کار پلان اعلاناوه او نوي پیشنهادونو په وړاندې کولو هېڅ فکر نه شو کولای اما هغوی په دې ښه پوهېدل چې خپله رایې څنګه ورکړي. د مجلس په ټولو بحثونو کې سنوبال او ناپولن له ټولو نه زیاته جدي او فعاله برخه اخیستله.

د بحثونو څخه تل څرګندېدله چې هېڅ وخت دوی دواړو په یوه موضـــوع موافقه نه کوله. که یو به پیشـنهاد وکړ، نو بل به حتماً د پیشـنهاد پر ضـد دریځ نیوه. که چېرې به یو داسې پیشنهاد وکړ چې دغه پیشنهاد به د بحث او تنقید وړ هم نه و. نو بل به خامخا په دغه شان پیشنهاد بحث او تنقیدکاوه. د مثال په توګه کله چې سنوبال مجلس ته دا پیشنهاد ((د باغچې شاته وړوکی مالځړ دې د هغو څناورو لپاره چې زاړه شـوي او د کار نه پرېوتي دي د اسـتراحت ځای په حیث وټاکل شي.)) وړاندې کړنو په دې موضـوع هم ناپولن د شور نه ډک بحـث او تنقیـد وکړ. هغـه د څنـاورو د هرې طبقې د ((تقـاعـد عمر)) پوښـتنې شـروع کړې. ((غونډه)) به تل د ((انګلسـتان د څناورو)) د ترانې په ویلو پای ته رسېده او تر غرمې وروسته وخت د ساعت تېرۍ د وخت په نوم اعلان شو.

د خوګانو مرکز د څناورو د ســامان پخوانۍ کوټه وه. د ماښــام په وخت کې څناورو په دې کوټه کې د اهنګرۍ، نجارۍ او نورو کسـبونو د کتابونو مطالعه کوله. د مطالعې کتابونه د جونز د اوســېدو د کوټې څخه راوړل شـــوي وو. ســنوبال د فارم ټول څناور په ((بېلابېلو کمېټو)) کې تنظیمول او هغه د کمېټو په جوړولو او په دې کمېټو کې د څناورو د تنظیمولو لپاره نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کولې. ســـنوبال د چرګو لپاره ((د هګیو د تولید کمېټه)) د غواوو لپاره ((د پاکو لکیو د ساتلو اتحادیه)) د وحشي ملګرو لپاره (( له سره د زده کړې کمېټه)) ( د دې کمېټې څخه د مږو او ســویو اهلي کول و) د مېږو لپاره ((د سـپینو وړیو د تولید نهضـت)) د څناورو د سـواد لپاره ((د لیک لوسـت کورســـو نه)) او دا شـــان نورې مختلفه کمېټې او اتحادیې جوړې کړې. په مجموعي لحاظ د سنوبال ډېرې پروژې له ناکامۍ سره مخامخ شوې. د مثال په توګه له ټولو نه مخکې د وحشـــي څناورو د اهلي کولو هلې ځلې ډېر ژر

ناکامه شوې. سره له دې چې د وحشي ځناورو په اهلي کولو ډېر کار وشو، خو بیا هم د وحشي ځناورو د پخوا غوندې وحشي چال چلند ته دوام ورکړ. که چېرې به خوګانو د وحشي ځناورو سره ښه سلوک کاوه، نو وحشي ځناورو به له دغه سلوک نه ناوړه استفاده کوله او که چېرې به ورسره سخت سلوک کېده، نو بیا به دوی ((له سره د زده کړې کمېټې)) غوندې ته نه راتلل او هم به یې دغه سلوک د ځناورو دملګرتیا او وروروولۍ د روحیې پر ضد عمل ګاڼه. وحشي مږه له ټولو نه مخکې ((له سره د زده کړې کمېټه)) کې شامله شوه او تر څو ورځو پورې یې د ټولو وحشي ځناورو نه زیاته په دې کمېټه کې فعاله برخه واخیستله. خو یوه ورځ هغه د بام پر سر ناسته ولیدل شوه چې د چنچڼو سره په ډېره نرمه لهجه خبرې کوي. مږې چنچڼو ته ویل، ((ملګرو! اوس موږ ټول ځناور ملګري یو زه یې درته عمل کې ثابتوم. که ستاسو له ډلې نه هره چنچڼه غواړي هغه کولای شي چې دلته راشي او زما په سینه بېخي بېغمه کېني.)) سره ددې هم د مږې نرمې لهجې په چنچڼو مثبت تاثیر ونه کړ، هغوی د پخوا په شان د مږې نه لرې ناستې وې او تر پایه یې د مږې او ځان ترمنځ فاصله ساتله.

د لیک لوست کورسونه په ډېر بریالیتوب پرمخ روان وو او د مني د موسم پورې تقریباً د فارم هر ځناور د خپل استعداد په اندازه څه نا څه سواد زده کړ. خوګانو خو د مخکې نه پوره لیک لوست کولای شو. سپي په لیک لوست کې تکړه وو، خو هغوی د ((اوه احکامو)) د لوست نه پرته د بل شي په لوست کې علاقه نه درلوده. موریل د سپیو په تناسب په لوست کې ښه معلومېده. هغې د فارم د خزلو له ډېران څخه د جونز د اخبارونو ټوټې راټولې کړې وې او د ماښام په وخت کې هغې نورو ځناورو ته د دغو اخبارونو د ټوټو نه درس ورکاوه. زوړ بنجامین د خوګانو غوندې د لوست ډېر ښه

استعداد دلود، خو هغه هېڅکله دا سرخوږی نه کاوه چې خپل طبيعي استعداد په کار واچوي. بنجامين به ويل ((زما په فکر هېڅ شی د لوست لپاره ارزښت نه لري)) کلوور ټوله الفبا په يادو زده کړې وه، خو هغې ليکل شـــوي ټيکي يوځای کولای او لوستلای نه شول. بوکسر تر پايه د ((ډي)) له توري څخه پرمختګ ونه کړلای شو. کله چې بوکسر په خپلو لويو سومونو په خاوره کې د ای، بي، ســـي او ډي توري وليکل، بيا به ورت څوړ غوږونه ودرېد او په ځير ځير به يې ليکل شـــويو تورو ته کتل. کله کله به بوکســـر د تندي له پاســـه پيکی اخوا دېخوا غورځاوه راغورځاوه او په ټول قدرت به يې په خپل حافظه فشار اچاوه. چې د ډي پسې تورې هم زده کړي، بوکسر څو ځله د ای، ايف، جي، ايچ توري هم زده کړل خو چې کله به يې دا توري زده شـــول نو بيا به ورځنې د ای، بي، سي، ډي توري هېر شول، په پای کې بوکسر فيصله وکړه چې دنورو تورو د زده کړې څخه تېر شي او يوازې د څلورو لومړنيو تورو په يادولو قناعت وکړي، د دې لپاره چې خپله حافظه تازه وســـاتي بوکســـر به معمولاً هره ورځ دغه څلور توري يو يا دوه ځله په خاوره ليکل.مولي د هغو شـــپږو تورو پرته چې د دې په نوم کې راتلل، د نورو ټولو تورو د زده کړې څخه ښېخي انکار وکړ، مولي د وړوکو لرګو څخه د خپل نوم شـــپږ توري جوړ کړي وو او د نوم د لرګو ټوټې يې په ګلونو ســـينګار کړې وې. هغه به ددې سينګار شويو ټوټو چاپېره تل خوشاله ګرځېده راګرځېده.

لکه څنګه چې د فارم د اوســـېدونکو بې عقله ځناورو يعنې مېږو، چرګو او هيليو د درســـونو څخه څرګنده شـــوه دوی ((اوه احکام)) هم په يادو ياد نه کړلای شـــول او تر پايه د ای د توري څخه پرمخ نه ولاړ، له ډېر فکر او غور نه وروســـته ســـنوبال د يخ ذهنو ځناورو داســـانتيا په خاطر دا اعلان وکړ چې ((دغه اوه احکام)) په يوه وجيزه کې چې ((څلور پښـيز ښـه دي او دوه پښـيز

**خراب دي)) خلاصـه شـول. د سـنوبال د اعلان له مخې دا نوې وجيزه ((د حيوانيت)) د ټولو اصـولواسـاسـي بنسـټ دی او هر څوک چې دا اسـاسـي اصـول زده کړي هغه حتماً د انسـان د ناوړه اغېزې څخه په امن پاتې کېږي. دفارم اوسـېدونکو مرغيو د سـنوبال په دې وجيزه او احتجاج وکړ ځکه چې مرغيو هم دوه پښـې درلودې او دوی هم د نوې وجيزې له مخې چې ((دوه پښـيز خراب دي)) د رټل شـويو ځناورو په جمله کې راتلې. اما سنوبال ورته اثبات کړه چې د دوی احتجاج او اعتراض منطقي نه دی.**

**(ملګرو!) سـنوبال ورته ويل، ((مرغۍ په خپلو ځانګونو هېڅ شـی نه شـی نيولای، بلکې دوی د خپلو ځانګونو په قوت يوازې الوتنه کوي او بس. موږ دمرغيو ځانګونه د پښـو په صفت پېژنو، د انسان او د ځناورو ترمنځ د توپير اصـلي او اسـاسـي نښـه د انسـان لاسـونه دي. انسـان يوازې د دې شـيطاني وسيلې پواسطه تل د شيطانۍ او ورانکارۍ کارونه ترسره کوي.))**

**مرغۍ د سـنوبال په لويو اوګرانو لغتونو پوه نه شـوې، خو هغوی د سـنوبال تشريح ته سرونه وخوځول له دې وروسته پڅه ذهنه ځناور د نوې وجيزې په يادولو بوخت شول. دکودام په دېوال د ((اوه احکامو)) له پاسه نوې وجيزه ((څلور پښـيز ښـه دي او دوه پښـيز خراب دي)) په غټو ټکو وليکل شـوه. ډېرو ځناورو نوې وجيزه په يادو يادکړه لاکن د ټولو ځناورو په تناسـب دا وجيزه د فارم د مېږو له حده زياته خوشـه شـوه. کله چې په مېږې په پټو کې راپېنډې شـوې، دوی به په رمباړوکې ((څلور پښـيز ښـه دي او دوه پښـيز خراب دي)) څو ساعته پرله پسې تکراروله او د دې د وجيزې په تکرار هېڅ نه ستړې کېد.**

ناپولن د سنوبال د کمېټو په جوړولو او تنظيم کې هېڅ علاقه نه اخيستله او د ده په نظر د لويانو د زده کړې او روزنې پر ځای د ماشومانو يا د ځوان نسل زده کړې او روزنې ډېر اهميت درلود. د فارم د وښــو تر لو ډېر ژر وروسته دوه ســپيو، ژيې او بلوبل نهه چا غ کوکري وزېږول او کله چې دغه کوکري د مياندو د تيوو رودلو وروسته لږ څه لوی غوندې شول، ناپولن دغه کوکري د غوجل بالاخانې ته يوړل. هغه د کوکرو تعليمي چارې په خپله غاړه واخيستلې او دغه کوکري يې يو داسـې پټ ځای کې د تعليم لاندې ونيول چې ډېر ژر د فارم نور څناورو د دغو کوکرو موجويدت هېر کړ.

د شيدو د ورکېدو اسرار هم کشف شول. د فارم څناورو ته څرګنده شوه چې دغه ورکې شوې شيدې به هره ورځ خوګانو د ډوډۍ وروسته څښلې. اوس په باغ کې منې پخې شوې او د ونو نه شـمال غورځولې منې دونو دلاندې په وښـــو هره خوا تيتې پرتې دي. څناورو فکر کاوه چې دغه منې به د ټولو څناورو ترمنځ په مساوي ډول وېشــل کېږي، اما د دوی د هيلو برعکس امر وشو چې څناور دې دغه توی شوې منې راټولې کړي او د خوګانو د خوراک لپاره دې غوجل ته راورسوي. د فارم ځينې څناور د دې حکم په اورېدو خفه شـول خو دوی ته خفګان هېڅ ګټه ونه کړه. ځکه چې د سـنوبال او ناپولن په شـــمول ټولو خوګانو دا فيصـــله کړې وه چې د باد غورځولې منې دې يوازې خوګان وخوري. يوه ورځ خوګانو پټه غونډه وکړه او په دې غونډکې سکيولر وګمارل شــو چې د شــيدو او منو په باره کې دې نورو څناورو ته تفصـيلات ورکړي.

((ملګرو!)) ســکيولر چيغه کړه. ((تاسـو هېڅ داســې تصــور ونه کړئ چې ګوندې موږ ســتاســو ملګري خوګان دغه منې د خود غرضـۍ يا د شـخصـي امتياز په وجه خورو، زه پوره باور لرم چې تاســـو د خپلو ملګرو خوګانو په

باره کې هېڅکله دا فکر او تصـــور نه کوئ، زه درته د یو ملګري په صـــفت رښـتیا وایم چې سـتاسـو رښـتیني ملګري ډېر خوګان شـیدې څښـل او منې خوړل نه خوښـوي، چې سـتاسـو مخامخ ولاړ دا رښـتیني ملګري هم په دغه جمله کې وګڼئ. د منو د خوراک څخه اصـلي او یوائینی هدف دا دی چې د دوی په قوت ستاسو د رښتیني ملګرو خوګانو روغتیا ساتل کېږي.))

((ملګرو! سـاینس ثابته کړې ده چې شـیدې او منې څه داسـې مواد لري چې دغه مواد د خوګانو د روغتیا او هوســاینې لپاره ډېر مهم او ضـــروري ګڼل کېږي، تاســو ټولو ته څرګنده ده چې موږ خوګان ذهني کارګران یو او ددې فارم ټوله اداره او تنظیم زموږ پر غاړه دی. تاســو ټولو ملګرو ته څرګنده ده چې موږ یوازې ستاسو د خوشالتیا او هوسا ژوند لپاره شپه او ورځ ذهني کار کوو.)) ملګرو! موږ یوازې ستاسو د ښېګڼې لپاره دغه شیدې او منې خورو. که چېرې موږ دغه شـــیدې او منې و نه خورو، نو موږ ناروغه کېږي او چې ناروغه شـو، نو بیا موږ د ذهني کارګرانو په څېر سـتاسـو په خدمت کې ناکامه شو ایا تاسو پوهېږئ چې زموږ د ناکامۍ په نتیجه کې څه پېښېږي؟ زه یې درته وایم. که چېرې موږ ناکامه شـــو، نو جونز بېرته دلته راځي، بیا درته وایم چې جونز بیا راځي.!))

سـکیولر د خوګانو څخه د دفاع په دوران کې د خپل عادت سـره سـم اخوا دېخوا ټوپونه وهل او خپله لکۍ یې تاوولـه او راتاووله او په پای کې یې وویل: ((ملګرو! زه پوه باور لرم او په پوره ډاډ ویلی شم چې تراوسه په تاسو ملګرو کې یو څناور هم داســې نه شــت چې هغه دې زموږ فارم ته د جونز بیا راتګ وغواړي.))

اوس د فارم ټولو څناورو د جونز بېرته راتګ نه غوښت او کله چې سکیولر د شیدو او منو موضوع د جونز د بیا راتګ په ارتباط څناورو ته تشریخ کړه، نو تر دې وروسته څناورو نور هېڅ ونه ویل، د سکیولر د استدلال څخه د ټولو څناورو ته د خګانو د صحت اهمیت ښځي روښانه شو. ټولو څناورو په یوه خوله فیصله وکړه چې تر دې وروسته د فارم د غواوو شیدې، باد غورځولې په زمکه پرتې منې او د باغ په ونو کې پخې منې او نوره ټوله مېوه به یوازې د خوګانو د روغتیا د ساتلو په خاطر د دوی د خوراک لپاره خوندي ساتل کېږي.

# څلور څپرکی

د دوبي په وروســتيو شــپو ورځوکې د څناورو د فارم ((د انقلاب)) خبر په خواوشا سيموکې خپور شو. تر دې پېښې وروسته سنوبال او ناپولن دواړو هره ورځ د کوترو سيلونه خواوشا سيمو ته لېږل او دوی به د کوترو سيلونو ته دا هـدايت ورکاوه چې د ګاونـډيو فـارمونو د څنـاورو پـه صــفونو کې ورننوځي، د دغو فارمونو څناورو ته د ((انقلاب)) کيســـه وکړي او هم ورته ((د انګلستان څناورو ترانه)) ورزده کړي.

شرلی مستر جونز به تل د ويلنګډن په شراب خانه‌کې ناست و او دچا چې د ده د خبرو د اورېدو حوصـــله درلوده هر يو ته به يې دا شـــکايت‌کاوه چې ((زما ســـره ډېره زياته ظالمانه بې انصــافي شــوې ده. زه د خپل فارم د چټي څناورو د ډلې له لاسه د خپل فارم څخه وشـړل شـوم او دغه چټې څناورو د خپل ملکيت څخ محروم‌کړ.)) د اصـولو له مخې د خواوشـا زميندارو تش په خوله د مســتر جونز ســره خواخوږي ښــکاره‌کوله، اما په لومړنی مرحله‌کې هېڅا د هغه ســـره عملي مرســـته ونه‌کړه، دهر فارم خاوند به په زړه‌کې ويل چې بايد هغه دې د جونز تر بدې ورځې څخه يوازې خپله‌ګټه ترلاســه‌کړي. خو د نېکه مرغه د څناورو فارم ته د نږدې پراتهوو دوو فارمونو خاوندان تل د يو بل سخت مخالف وو. دغه فارموله د فوکس ووډ Fex wood او پنچفيلډ Pinchfield په نومونو بلـل‌کېـدل. د فوکس وود څښـــتن مســـتر پيلکينګټن Pilkinjton يو بې پروا زميندا و، ده به تل د هر موسـم سـره سـم خپل وخت يا دکبانو په نيولو او يا د وحشي څناورو په ښکار تېروله. د ده فارم ډېر لوی و خو له يوې خوا دی بې پروا و او له بلې خوا يې د فارم د روزلو طريقه ډېره زړه وه، څکه نو د فارم ډېره برخه وحشــي وښــو او څنګل نيولې وه. د فارم

څرګايونه له استعمال څخه وتلي وو او د دغه لوی ارم غاړې څنډې ببخي په بدو شـــرايطوکې وې. له بلې خوا د پنچفيلډ فارم څښتـــن مســـټر فريدرک Frederick سخت کاري او څيرک سړی و. د فريدرک د لوی دعوې جلاب او په تجارتي معاملوکې د خپلې شخصي ګټې لپاره د لوی ماهر په نوم شهرت درلود. ســـره له دې چې پنچفيلډ فارم وړوکی و لاکن فريدرک دغه وړوکی فارم ډېر ښه ساته.

د دواړو فارمونو خاوندانو د يو بل څخه دومره بد راتلل چې دوی د خپلو مشترکو ګټو ددفاع په خاطر هم د يو بل سره اتفاق ته نه حاضرېدل. د خپل منځي کرکې او نفرت ســـره ســـره د دواړو فارمونو خاوندان د څناورو د ((انقلاب)) څخه ډېر زيات ډارېدل او دې اندېښـــمن خاوندانو ټول زيار ويســـت، چې د خپلو فارمونو څناورو د څناورو د فارم له ((انقلاب)) څخه بېخي ناخبره وســـاتي. د ((انقلاب)) په لومړۍ مرحله کې دوی دواړو د دې مفکورې پورې چې ((څناور د فارم اداره په خپله کولای شـــي.)) خندل، دواړو به ټل دا پروپاګنده کوله چې د دغه فارم ټول نظم په لس پنځلس ورځو کې بېخي له منځه تلونکی دی. دوی هېڅکله دا زغم نه شـــوکولای چې دغه فـارم د ((د څنـاورو فـارم)) په نوم يـاد کړي، بلکې ټـل يې پـه خپلو خبرو او پروپاګنده کې دغه فارم (( د مانور فارم)) په نوم باله. دواړو به خلکو ته ويل چې د ((مانور فارم)) څناور خپل منځ کې په ابدي جګړو اخته شـــوي دي او دغه څناور به ډېر ژر د لوږې مړه شـــي. خو ورو ورو کله چې فريدرک او پيلکينګټن ته څرګنده شـــوه چې د فارم څناورو د لوږې مړه نه شـــول، نو وروســـته هغوی د څناورو پرضـــد پروپاګنډې ته هم تغير ورکړ. دوی اوس دا پروپاګنده پيل کړه چې د څناورو په فارم کې خطرناک ګناهونه او بدکارۍ روانې دي. د فارم څناور يو بل خوري، د اسـونو نعلونه په اورکې ږدي او بيا

په تک سرو نعلونو په داغولو یو بل ته جزا ورکوي او همدا شان د فارم نر ځناور په ګډه ټولې ښځینه ځناورې استعمالوي. فریدرک او پیلکینګټن به د پروپاګنډې په پای کې د اوسپلو ډک په غمجنه لهجه وویل ((دا انقلاب نه دی، بلکې د طبیعت د قوانینو پر ضد بغاوت دی.))

ځینو خلکو د پیلکینګټن او فریدرک په پروپاګنډو باور نه کاوه لاکن د انسانانو د شړلو نه وروسته د دې عجیبه فارم په باره کې دا خبر چې ځناور د دغه فارم د چارو اداره په خپلو چلوي، په مبهم او تحریف شوې بڼه خپرېده. د کال په اوږدو کې په ټوله سیمه د بغاوت څپه روانه وه، کورني غویان وحشي شول او ناڅاپه یې د یو یو جغر نه مات کړل. مېږو د شپول نه ودانګل او خواو شا ولاړ شوتل یې وخوړل، غواګانو د شیدو ستلونه په لغتو چپه کړل او د ښکار اسونو سوارکاران په زمکو وویشتل او یوازې خپلو اخورو ته به ولاړ وو.

((د انګلستان ځناورو)) د ترانې اهنګ او الفاظ هر ځای ته ورسطدل او په حیرانوونکې توګه دغه ترانه ډېره چټکه خپره شوه. د دې ترانې په اورېدو انسانانو خپل قهر او غضب داسې ایست ((دغه ترانې محض چټیات دي موږ په دې نه پوهېږو چې دغه چټي ځناورو ولې دغه چټي سندرې او ترانې وایي؟))

په هر فارم کې چې به یو ځناور د دې ترانې په ویلو او یا زمزمه کولو ونیول شو، نو انسانانو به دغه ځناور په هغه ځای په لختو او غمچینو واهه. د انسانانو د مخنیوي سره سره د ځناورو ترانه په شاته تلونکې سندره شوه. د کورونو په انګړ کې تورو مرغیو په شپېلو او په ونو کې کوترو په ((کوکو)) دغه ترانه ویله چې په پای کې دغه ترانه د اهنګرانو د کار ځایونو له پاسه او د

کلیسا د زنګونو ترڅنګ په ډېر جګ اواز ووېل شوه. کله چې انسانانو دغه ترانه په جګ اواز ووربېده، نو دوی به په زړه کې ډېر سخت ډارېدل ځکه چې دې ترانې انسان ته د خپل راتلونکي زوال او فنا په حقله د خطر زنګ واهه. د اکتوبر په لومړنیو ورځو کې د غنمو لوګله شو په ځینو پټو کې د غنمو د دانو درمندونه ولاړ وو او په ځینو ځایونو کې د غنمو ګېډۍ درمند شوې وې. په دې وخت کې په هوا د کوترو سیل راغی، د کوترو سیل څو ځله د ((ځناورو فارم)) له پاسه چاپېر وګرځېد او وروسته په هیجاني ډول د فارم په انګړ کې کېناست. د کوترو د کېناستو سره جوخت جونز د خپلو نوکرانو او د فوکس ووډ او پنجفلډ د ځینو کارګرانو سره د فارم په لویه دروازه رانوت. جونز ټوپک په لاس د ټولو په مخکې چټک رارروان و، نورو په خپلو لاسونو کې کوتکې نیولې وې، دوی ټول د کراچۍ په لار د فارم د ودانیو پر لور چټک راتلل. دا ځل دوی د فارم د بیا نیولو په اراده راغلل.

د پخوا راهیسې هر وخت د فارم د بیا نیولو د یرغل پیش بیني کېده او د دې پیش بینۍ پر اساس له مخکې نه هر اړخیزه دفاعي امادګي نیول شوې وه. سنوبال د مستر جونز په مینه کې د جولین سسیزر Jvlios Caesar د عسکري عملیاتو په باره کې یو زوړ کتاب پیدا کړی و. سنوبال تل دغه کتاب لوست او د دې کتاب د مطالعې په وجه د فارم د دفاعي عملیاتو مسوولیت هم د سنوبال پر غاړه و، سنوبال ډېر ژر احکام جاري کړ او په څو دقیقو کې دننه هر ځناور په خپل سنګر کې ځای پر ځای شو.

کله چې انسانان د فارم ودانیو ته راورسېدل، سنوبال لومړنۍ حمله پیل کړه، پنځه دېرش کوترې د انسانانو له پاسه اخوا دېخوا الوتې او د هوا نه په انسانانو ورغوړه کېدې. انسنان لا د کوترو په دفاع بوخت و چې بتو د بوټو له جارګې نه حمله پیل کړه، په یوه منډه یې ځانونه ورروسول او د انسانانو په پندیو یې

خپلې تېرې مېښوکې ورښځې کړې. د سنوبال د جنګي تاکتیکونو له مخې دا لنډه نښته یوه وړوکې جنګي مناوره وه. سنوبال غوښته چې په دې وسیله د انسانانو په صفونو کې ګډوډي پیداکړې، خو انسانانو د کوتکو په وسیله بتې په ډېره اسانۍ وشړلې. دا ځل سنوبال د جنګ د دویم تاکتیک پر اساس دویمه حمله شروع کړه. سنوبال مخکې شو او موریل، بنجامین او ټولې مېږې ورپسې شوې. ټولو ځناورو څلورو خواو نه پر انسانانو حمله وکړه. په دې یرغل کې ځناورو د لغتو او ښکرونو څخه پوره کار واخیست. بنجامین به د انسانانو چاپېر ګرځېده او هر یو ته به یې د لغتې کلک ګوزار ورکاوه. دا ځل هم انسانانو د کوتکو او مېخ لرونکو بوټونو د درلودلو په وجه د ټولو ځناورو پر ضد قوي ثابت شول. سنوبال ناڅاپه کړیکه وکړه. دغه کړیکه د پر شاه راتللو اشاره وه، ټولو ځناورو ((شاګرز)) وکړ او په یوه منډه د ودانۍ غولي ته په لویه دروازه وتښتېدل. انسانانو په دې بریالیتوب د خوشالۍ چیغې پورته کړې، لکه څنګه چې مخکې یې فکر کړی و، هم هغه شان یې د دښمنانو ماتې او تېښته په خپلو سترګو ولیده. ځناورو اخوا دېخوا ګډې وډې منډې شروع کړې او انسانانو هم دګډوډۍ په حالت کې تښتېدونکي ځناور تعقیب کړل. سنوبال دغه ګډوډي غوښتله درې اسونو، درې غواګانو او ټولو خوګانو د ((غواوو څپر)) کې د مخکې نه پټ سنګرونه نیولي وو. څه وخت چې انسانانو د ګډوډۍ په حالت کې د ودانۍ غولي ته رانوتل ناڅاپه ټول ځناور د دوی تر شا راپورته شول او ډېر ژر یې د انسانانو ترمنځ رابطه قطع کړه. سنوبال د حملې اشاره ورکړه او ده په خپله نېغ په جونز ورمنډه کړه. جونز ټوپک راپورته کړ او په سنوبال یې ډز وکړ. د ټوپک چرې د سنوبال په ملا ورننوتلې.د چرو د سورو څخه غوټۍ غوټۍ وینه راووتله. وینې د زخمي سنوبال په ملا لیکې جوړې کړې. په دې ډز یوه مېږه هم ځای پر ځای مړه

شوه. سنوبال په دڅ تم نه شو او په یوه شپه یې د جونز په پنډیو پنځلس تیرې ورګوزار کړې. جونز د غوشـــیانو په ډېران راګوازر شــو، ټوپک یې له لاســه والوت او وړاندې ترینه وولوېد. په دې جګړه کې د بوکســـر ننداره د ټولو نه خطرناکه او بوګنوونکې وه، د جګړې په دوران کې به بوکسر په وروسته دوو پښــو نیغ ودرېد او د مخکینو دوو پښــو په نعل شــویو لویو ســومانو به یې د پلک په څېر ګوزار کاوه. هغه د فوکســـوډ فارم د اســـتبل یو ځوان هلک په کوپړۍ وواهه او په یوه لغته یې پرمخې په ختو کې بې هوښـــه وغورځاوه. کله چې څو تنو انســـانانو دا پیښـــه ولیده، ډېر ژر یې خپل ســـوټي وغورځول او تېښتې ته چمتو شول. انسانان له ډاره ډېر وارخطا شول. په یوه شېبه کې ټولو ځناورو هغوی د غولي چاپېره وځغلول. د ځغاســتې په دوران کې د انســانانو جامې څیرې شوې، په لغتو ووهل شـول، وچیچل شول او د پښـو لاندې ښـه وسـولېدل. په ټول فارم کې داسې ځناور نه و چې په خپله طریقه یې د انسـان نه بدل وانه خیست، د فارم وحشي پیشو هم د بام نه ناڅاپه د پادوان په اوږو راودانګل، په مرۍ یې خپلې تېرې نوکې ورخښـې کړې او ښـې چیغې یې ورنه وویستلې.

کله چې د غولي درازه برســـېره شـــوه ټول انســـانان په یوه منډه د غولي نه وتښـتېدل او په یوه منډه د سـړک پر لور د فارم د لویې دروازې نه ووتل او د وتلو سره یې لویه دروازه له ځانونو پسې پورې کړه. د تېښتې په دوران کې د فارم بتو په ټوله لار د هغوی پنډۍ په تېرو مښوکو چیچلې او د حملې نه پنځه دقیقې وروسته انسانان په کومه لار چې راغلي وو په هغه لاره ووتل او د شرم نه ډکه ماتې یې وخوړه.

بوکسر ببرته غولي ته راغی او دلته یې کوښښ وکړ چې په ختوکې پړمخې پروت هلک د خپل سوم په وسیله په ډډه راواړوي، خو بې هوښه هلک هېڅ ونه خوځېد.

بوکسر د ځان سره وویل: (( دا خو مړ دی! ما دی نه واژه، زه نه وم خبر چې زما نعلونه نوي دي. دا به څوک ومني چې ما دا هلک قصداً نه دی وژلی؟!! د سنوبال له زخمونو څخه وینې څڅېدلې او چیغه یې کړه.

((ملګرویه! احساساتي کېږه مه! جنګ دی، زموږ لپاره یوازینی ښه انسان مړ انسان دی.))

د بوکسر سترګې له اوښکو څخه ډکې وې او داسې یې وویل: ((زه نه غواړم چې څوک دې خپل قیمتي ژوند څخه محروم کړم. د انسان وژل هم نه غواړم.))

((مولي څه شوه؟)) یو ځناور په تعجب پوښتنه وکړه، مولي نه ښکارېده، هغه واقعاً ورکه شوې وه، د دوی سره دا وېره وه چې انسانانو مولي ته تاوان نه وي رسولی او یا یې د ځان سره بیولې نه وي، خو په پای کې څرګنده شوه چې مولي د جونز د ډزو له ډاره غوجل ته تښتېدلې وه او هلته پټه ولاړه وه او له ډېره ډاره یې سر د اخور په وښو کې منډلی و او نور بدن یې لړزېده. د مولي تر لټون وروسته ځینې ځناور ببرته غولي ته راغلل. ګوري چې په غوجل کې بې هوشه هلک نه شته، ځناورو ته معلومه شوه چې دغه هلک بې سده شوی و او څه وخت چې په سد شو نو هغه هم په یو ترپ وتښتېد.
ټول هیجاني ځناور په غولي کې راغونډ شول، لومړی هر ځناور په جګ اواز د خپلې تورې او مېړانې لاپې ووهلې او بیا یې ډېر ژر دغه لوی بریالیتوب تجلیل کړ. د تجلیل په سر کې فارم بیرغ پورته شو او د ((انګلستان ځناورو)) ترانه څو ځله وویل شوه. مړه مېږه یې په ډېر درناوي خاورو ته وسپارله او د

هغې قبر یې د ګلونو بوټی نیال کړل. سنوبال د مړې مېږې په قبر په یوه لنډه وینا کې څناورو ته وویل: ((کله چې د څناورو فارم د دفاع ته ضرورت فلري، موږ ټول څناور باید په دغه وخت کې هر ډول سربښندنې ته چمتو اوسېږو.))

ټولو څناورو هم دلته ((د څناورو لومړی درجه قهرمان)) په نوم د عسکري نښان د جوړولو لپاره عمومي فیصله وکړه چې دغه اوله درجه نښانونه سنوبال او بوکسر ته ورکړل شول. دغه نښانونه د مسو څخه جوړ شوي وو او دوی به دغه نښانونه د یکشنبې پر ورځ او د نورو رخصتیو پر ورځ ځړول. همدا شان مړې مېږې ته هم پس له مرګه ((د څناورو دویمه درجه قهرمان)) نښان ورکړل شو.

په دې غونډه کې د جګړې د نامه په ټاکلو اوږد بحث وشو او په پای کې دې نتیجې ته ورسېدل چې دا جګړه د غواوو د څپر له سنګر څخه بریالی شوې ده، نو ځکه یې نو باید ((د غواوو د څپر جګړه)) وبولو.

د مسټر جونز ټوپک په خټو کې وموندل شو. د دې ټوپک کارتوس د جونز په کوټه کې موجود وو. د فیصلې له مخې ټوپک د فارم د بیرغ د جنډې لاندې د توپ په څېر کېښودل شو، داسې هم فیصله وشوه چې په دې ټوپک به په کال کې یوازې دوه ځله ډزې کېږي. یو وار د اکتوبر پر دولسمه د ((غواوو د څپرو جګړې)) کالیزه او بل وار به ((د دوبي منځ ورځ)) یا د ((انقلاب)) کالیزه ورباندې نمانځل کېږي.

# پنځم څپرکی

په ژمي کې د مولي له لاسه تکليف نور هم زيات شو، هر سهار به ناوخته له خوبه پاڅېدله، ناوخته به کار ته راتله او هره ورځ به يې د ناوخته پاڅېدلو لپاره پلمې جوړولې. خوراک يې ډېر کاوه، خو د کار پر وخت به يې ځان په ناجوړۍ اچاوه او په يوه او بله پلمه به يې ځان له کاره خلاصاوه، هر وخت چې به يې په ټکسيو ځان له کاره خلاص کړ، نو بيا به د فارم د اوبو ډنډ ته تلله او هلته به يې په اوبو کې د خپل مخ ننداره کوله. يوه ورځ مولي د کور په غولي کې خوشاله خوشاله چکر واهه. د چکر په دوران کې خپله لکۍ يې په مکېز مکېز تاووله راتاووله او ورسره يې د وچو وښو په ډنډرو شخوند واهه چې کلوور ته په مخه ورغله او د ليدو سره يې مولي يو خواته بوتله او پټ يې ورته وويل:

((مولي! زه درته يوه جدي خبره کوم. تاپسې د څو ورځو راهيسې دا ګونګوسې روان دی چې ته د انسانانو سره پټ روابط لرې. ما په دې ګونګوسي باور نه کاوه، خو نن سهار مې ته په خپلو سترګو د فارم په څنډه ولاړه وليدلې چې تا له هغو ځايه فوکسووډ فارم ته کتل. زه ستا څخه لرې لرې ولاړه وم، خو زه پوره باور لرم، بلکې ما په خپلو سترګو وليد چې د پيلکټيګټن د نوکرانو څخه يو د ونو د جارګي اخوا ولاړ و، هغه تاته څه خبرې کولې او تا ورته اجازه ورکړې وه چې هغه ستا شونډک در وموښي. مولي! د دې کار څخه ستا مقصد څه دی؟ ((دا سمه نه ده! زه هلته هېڅ نه وم، ما دا کار نه دی کړی!)) مولي چيغه کړه او ورسره پورته پورته غورځېدله او ځمکه يې په سومانو وهله.

((مولي! ته خو يو ځل نېغ راته وګوره! ايا ته به قســم وخورې چې ته هلته نه وې ولاړه او دغه سړي ستا شونډک نه مښه؟)) کلوور ترېنه پوښتنه وکړه.

((دا دروغ دي! دا په ما تور لګول دي!)) مولي تکرار وکړ، اما مولي کلوور ته مخامخ نېغ نه شو کتلای، يوه شېبه وروسته مولي پښې سپکې کړې او په يوتراټ ورشو ته وتښتېده.

کلوور تر يوې شــېبې په ســوچ کې ډوبه ولاړه وه او غير له دې چې نورو ځناورو ته څه حال ووايي. د مولي اســتبل ته ولاړه او په خپلو ســومانو يې بوس اخوا دېخوا کړل. ګوري چې دلته د بوسو د لاندې د نباتو د وړوکو ټوټو ډېرۍ او ورسره د بېلو بېلو رنګونو د پټيو څوګېډۍ هم پرتې دي. پوره درې ورځې وروسته مولي ورکه شوه او څو اوونۍ د هغې درک معلوم نه شو. يوه ورځ د فارم کوترو خبر راوړ چې مولي د ويلنيګډن اخوا د يو هوټل په مخکې د يوې دوه ارېزه کراچۍ د ســور او تور رنګ تيرونو ترمنځ ولاړه وه، د کراچۍ تر څنګ يو چاغ ســور مخی سـړی ولاړ و. دې سـړي تنګ پتلون اغوســتی و، پايڅې يې ترلې وې او د هوټل خاوند برېښــېده. ده د مولي شونډک ورمښه او په خوله کې يې نبات ورکول. د مولي وېښته غيچې شوي وو او د تندي د وربل چاپېره يې تکه ســره پټۍ ترلې وه. د کوترو د خبر له مخې دلته مولي ډېره خوشاله ښکاره کېده.

دا د مولي په باره کې لومړنی او ورستی راپور و او له تر دې وروسته ځناورو د مولي نوم په خوله وانه خيست.

د جنوري مياشــت ډېره ســړه وه او کنګل وله ځمکه د تيرې غوندې ســخته کړې وه، همدا علت و چې اوس په ځمکه کار نه کېده، خوګانو په لوی ګودام کې ډېرې غونډې دايرې کړې او هغوی د راتلونکي موســم لپاره خپل پلانونه

غونډو ته وړاندې کړل. دا يو منل شوی واقعيت و، چې د فارم د ټولو څناورو په تناسب خوګان ډېر هوښيار وو. ((د څناوروتوب)) د مساواتو د روحيې پر اساس خوګانو د ډيموکراسۍ اساسات منلي وو. د دې اساساتو له مخې دوی د فارم اړوند پروګرامونه، پلانونه، پاليسي او وړانديزونه د څناورو غونډې ته وړاندې کول او د هرې پرېکړې لپاره يې د مجلس اکثريت ترلاســـه کول، ضروري باله. د خوګانو غوښتنې به هر وخت د ټولو څناورو له خوا په مطلق اکثريت تصـــويبېدلې. که چېرې د ســـنوبال او ناپولن ترمنځ مخالفت نه وای، ښايي د خوګانو ځينو پروګرامونو په زړه پورې نتيجې ورکړې وای، دوی به په هره موضوع کې د يو بل ډېر سخت مخالفت کاوه. که چېرې يو به د اوربشو د کر وړانديز وکړ، نو بل به حتماً د جودرو د کر وړانديز کاوه. که چېرې يو به وويل چې په هغه يا دغه ځای کې دې ګوپې وکرل شـــي، نو بل به حتماً ويل چې دغه ځمکه يوازې او يوازې د کبلو د کر لپاره وړ ده او د کبلو پر ته بل هېڅ شی نه کوي. دواړو خوګانو په غونډه کې ملګري درلودل، په هره غونډه کې د دوی ترمنځ بحث تودېده او يو په بل به يې شديد تنقيدونه کول. سنوبال ماهر نطاق او نامتو خبر لوڅ و او ده به تل په هره غونډه کې د ښــه فصــاحت او بلاغت په برکت اکثريت ترلاسه کاوه. په ځينو غونډو کې ناپولن هم د رايې او ملاتړ په جلبولو کې ښه و. ده به په غونډو کې د مېږو څخه رايې اخيستلې. کله چې به د بحث په دوران کې سنوبال د يوې موضوع د تشريح په باره کې يوې حســاســې مرحلې ته ورســېد، نو دلته به يو وار مېږو رمبارې پيل کړې او ((څلور بولي ښـــه دي، دوه بولي خراب دي)) يې ويل. مېږو به تل اوچتې رمبارې وهلې او د سنوبال وينا به يې ګډوډوله. سنوبال د مسټر جونز په مينه کې ((د بزګرۍ او مالدارۍ انکشـــاف)) په نامه کتاب وموند او له څه مودې راهيســـې يې د دغه کتاب ژوره مطالعه کوله. د دې کتاب د مطالعې په برکت

سنوبال د فارم د اصلاحاتو لپاره ډېر نوي نوښتونه او پلانونه درلودل. هغه په ډېر عالمانه توګه د ځمکې د زېږ ایستلو، د وچو وښو د کوټه‌کولو او د اوبو څخه د ځګ د تصفیه‌کولو خبرې‌کولې. همدا شان یې په‌کراچۍ‌کې پټو ته د سـرې د وړلو د کار او زیاره مخنیوي لپاره پلان جوړ کړی و، چې د هغه له مخې د فارم ټول څناور مکلف وو چې هر وخت مستقیماً پټو ته ولاړ شي او د پټو په بېلابېلو ځایونو کې دې پچې او غوشـایي وکړي. له بلې خوا ناپولن غونډو ته خپل پلان نه وړاندې‌کاوه. د سنوبال د خبرو په دوران‌کې به یط د ځان سـره غلي ویل (( سـتا پلانونه به هېڅ مثبته پایله ونه لري.)) د ناپولن د کړو وړو څخه داسې څرګندېدله لکه د یو مناسب وخت انتظار چې یې‌کاوه. سـنوبال او ناپولن تر هر څه زیات د یادې ژرندې د جوړولو په باب سـخته شخړه وکړه.

د فارم ودنۍ ته نږدې په اوږد مالځر کې یوه وړوکې غونډۍ وه او دا غونډۍ د ټول فارم اوچته نقطه وه. کله چې سـنوبال د دې غونډۍ اوچته برخه ښـه وکتله وروسته یې د څناورو په غونډه کې خپل راپور داسې اعلان کړ.

((ملګرو! زه د یوې ژورې سـروې په پای‌کې دې نتیجې ته ورسـېدم، چې د فارم د غونډۍ اوچته برخه د بادي ژرندې د جوړېدو لپاره بېخي مناسـب ځای دی. زه پوره باور لرم چې په دغه ځای‌کې جوړه بادي ژرنده به ټول فارم ته د برق د ورکولو لپاره د یو قوي ډاینمو د چلولو توان ولري. دغه برق به په شـپه‌کې د ټولو څناورو غوجلې، اسـتبلونه او د ویده‌کېدو ځایونه رڼا کړي. دا برق به په ژمي‌کې د څناورو د اوسـېدو ځایونه تاوده او په اوړي‌کې سـاړه سـاتي. دا برق به د فارم برقي اره، د بوسـو او چغندرو پرې‌کوونکي ماشـینونه او د فارم د غواوو د لوشـلو ماشـین هم وچلوي. دغه ماشـینونه به یوازې د څناورو لپاره‌کارکوي. څه وخت چې دې ماشـینونوکار پیل‌کړ، نو

تر دغه وخت وروسته به تاسو ټول بې غمه په مالځړونو کې ځړېږئ او تاسو به د خپلو ذهنونو د انکشاف په خاطر د مطالعې، مباحثې او مفاهمې لپاره ډېر وخت ولرئ.))

له دې نه مخکې د فارم ځناورو دا ډول خبرې نه وې اورېدلې. د ځناورو فارم ډېره زړه بنه درلوده او په فارم کې موجوده يو څو ماشينونه هم ډېر زاړه وو. کله چې سنوبال ځناورو ته د خپل پلان له مخې د عجيب و غريب ماشينونو د عکسونو په باره کې تشريح ورکوله، په غونډه کې د ټولو ځناورو خولې د حيرانتيا څخه وازې پاتې وې.

سنوبال په څو اونيو کې د بادي ژرندې پلانونه سرته ورسول. د دې پلانونو جزيات د مستر جونز له درې کتابونو ((په خپل کور کې يو زر زر مفيد شيان کول.))، ((هر سړی په خپل ختګر دی.)) او (( د مبتديانو لپاره د برق زده کړه)) څخه اقتباس کړي وو. سنوبال د هغه ځپر لاندې مطالعه کوله، کوم چې د چرګوړو د ماشين لپاره جوړ شوی و. د دې ځپر فرش په توږل شويو هوارو لرګيو پوښل شوی و او ده به پر دې هوار فرش د خپلو پلانونو رسمونه ايستل. سنوبال به په ساعتونو د دې ځپر لاندې به د مخکې پښې په ګرت کې تباشير نيولی و، يوه خوا او بله خوا يې چټک حرکتونه کول. په هوار فرش يې پرله پسې رسمونه ايستل او کله کله به په هيجاني حالت کې سرنګېده. څه موده وروسته د هغه پلانونه د ماشين په پېچلو پرزو او د ځمکې د غابسور ماشينونو په رسمونو تبديل شول، سره له دې چې دغه پېچلي رسمونه د نورو ځناورو د فهم او درک څخه بېخي اوچت وو، خو بيا هم دغو رسمونو ټول ځناور دومره د تاثير لاندې راوستلي وو چې هره ورځ به ټول ځناور د دغو رسمونو د ننداري لپاره دلته راتلل. چرګو او هيليو د ننداري پر وخت له دې

ډاره چې په فرش باندې د تباشير نښې او رسمونه د پښو لاندې وران نه کړي، په ډېر تکليف ګرځېدلې راګرځېدلې.

ناپولن د لومړۍ ورځې نه د بادي ژرندې پر ضد خپل مخالفت اعلان کړی و. همدا علم و چې يوازې ده د سنوبال په رسمونو کې هېڅ علاقه نه ښودله. د سخت مخالفت سره سره يوه ورځ ناڅاپه ناپولن د سنوبال د پلانونو د ليدو لپاره څپر ته راغی. هغه لومړی د څپر چاپېر په درندو ګامونو وګرځېد. د هر پلان جزيات يې به ډېر غور وکتل. دغه جزيات يې څو ځله په پوزه سونږ کړل. بيا د لږ وخت لپاره ودرېد د هر پلان ټول جزيات يې د بنو لاندې په ځير ځير کتل او په ټولو جزياتو يې ژور فکر کاوه. ناڅاپه يې پښه پورته کړه او د سنوبال په پلانونو يې متيازې وکړې او له دې وروسته چوپ چاپ د څپر څخه بهر ووت.

په ټول فارم کې د بادي ژرندې په موضوع ډېر ژور اختلاف راغی. سنوبال دا خبره منله چې د بادي ژرندې جوړول ګران کار دی او ډېر زيار غواړي. ده به ويل:

(( موږ مجبور يو چې د دېوالونو د جوړېدو لپاره د کانونو څخه توږل شوې تيږې راوړو. بيا د ژرندې بادوانونه جوړ کړو او ورپسې د ډاينمو او کلک کېبلونو ضرورت وپوره کړو.)) څنګه دا شيان ترلاسه کېدای شي؟ سنوبال دې سوال ته هېڅ ځواب نه ورکاوه. خو ويل به يې چې دا ټول کار په يو کال کې ترسره کېږي. ده په غونډه کې اعلان وکړ. (( د ژرندې تر جوړېدو وروسته به په فارم کې د څناورو د کار دومره انرژي وسپمول شي، چې څناور به په يوه اوونۍ کې درې ورځې کار کوي او په مقابل کې به پوره د يوې اوونۍ اجوره اخلي.)) هم په دې غونډه کې ناپولن د سنوبال پر ضد دا استدلال

وړاندې کړ چې (( د دې وخت لوی او مهم ضـــرورت د خوراکي شـــیانو او موادو پرېمانه تولید دی. موږ باید چې خوراکي شیان ډېر تولیدکړو او په دې وخت کې له هر څه نه لومړی تولید ته پاملرنه وکړو. که چېرې څناور د ډېرو خوراکي شـــیانو د تولید پر ځای خپل قیمتي وخت د بادي ژرندې په جوړېدو ضـایع کړي، نو په دې صـورت کې په ټول څناور د لوږې مړه شـي.)) د فارم ټول څناور د دې دوو شـعارونو پر اسـاس. ((که څوک غواړي چې په اوونۍ کې درې ورځې کار وکړي او د یوې اوونۍ اجوره مکمله واخلي، نو سـنوبال ته دې رایې ورکړي.)) او ((که څوک غواړي چې اخور یې ډک وي، نو ناپولن ته دې رایې ورکړي.)) په دوو ډلو ووېشـــل شـــول. په ټول فارم کې بنجامین یواځینی څناور و چې د یوې ډلې طرفداري یې هم ونه کړه هغه په دې دواړو شعارونو چې یا به بادي ژرنده د څناورو دکار او زیار سپما وکړي او یا به په اخورکې د خوراک شـــیان پرېمانه شـــي، هېڅ باور نه درلود. بنجامین به پټ ویل ((که ژرنده وي او یا نه وي په دواړو حالاتوکې به د څناورو ناوړه ژوند د پخوا غوندې دوام لري.))

د ناپولن او سـنوبال ترمنځ د بادي ژرندې په موضـوع د مخالفت سـربېره د فارم د دفاع په موضــوع هم شـدید مخالفت وجود درلود، اوس د فارم ټولو څناورو دا احساس کاوه چې انسـانان ((د غواوو څېر)) په جګړې کې د ماتې د خوړلو په نتیجه ک؟ې حتماً یو ځل بیا د فارم د نیولو او د مسټر جونز د بیا راوســـتلو لپاره په فارم قاطع یرغل کوي. د څناورو په نظر د انســـانانو د بل قاطع یرغل اسـاسـي علت د دوی د ماتې د اوازې خپرېدل دي. اوس د دوی د ماتې خبر په خواوشـا سـیموکې خپور شـوی دی او د دې خبر په اورېدو د ګاوندیو فارمونو څناور یاغي شـــوي دي. انســـانان د دې لپاره چې د خپلو

فارمونو د ځناورو د بغاوت مخنیوی وکړي، شـــاید چې هغوی ډېر ژر د ځناورو په فارم یوه بله قاطع حمله وکړي.

کله چې په غونډه کې د فارم د دفاع موضوع طرح شوه، سنوبال د ناپولن د یو بل پر ضد سخت موقف ونیو، ناپولن وویل: ((ملګرو! زما په نظر تر هرڅه مخکې د فارم د دفاعي کمېټې تقسـیم کړي. موږ باید د جګړې وســـله حتماً ترلاسـه کړو او د فارم ټول ځناور دې د وسـلې اسـتعمال او جنګي تاکتیکونه زده کړي. که چېرې موږ د انسانانو پر ضـد موثره دفاع وکړه او لومړی مو په دې فارم کې ((انقلاب)) کامیابه کړ، نو زه پوره باور لرم چې په راتلونکي کې موږ د له دې فارم څخه نورو ګاونډیو فارمونو ته ((انقلاب)) صادرولای شو. اما برعکس که چېرې موږ د خپل فارم څخه دفاع ونه کړلای شـوه، نو په دې صـــورت کې موږ حتماً ماتې خورو او د ماتې په نتیجه کې زموږ ((انقلاب)) د تل لپاره ناکامه کېږي.))

سنوبال د ناپولن د نظر په مخالفت کې وویل: ((ملګرو! زموږ فارم د ګاونډیو فارمونو له خوا محاصـــره شـــوی دی. تر هرڅه مخکې موږ باید چې دغه محاصره حتماً ماته کړو. موږ باید چې ډېرې کوترې خواوشا فارمونو ته ولېږو او د دغو کوترو اصـــلي دنده به دا وي، چې د ګاونډیو فارمونو اوســـېدونکي ځناور ((بغاوت)) ته راوپاروي. کله چې موږ له دغو فارمونو څخه انســـانان وشـــړل او ((انقلابونه)) مو بریالي ســـرته ورســـول، نو له یوې خوا موږ د محاصـرې له حالت څخه خلاصېږو او له بلې خوا یوازې په دې صـورت کې زموږ د فارم واقعي دفاع کېدلای شي او بس.))

ځناورو لومړی د ناپولن او بیا د ســـنوبال دلایل واورېدل، د دواړو خوګانو دلایل قوي ښکاره کېدل. کله چې ناپولن غونډې ته خپل دلایل وړاندې کړل،

نورو ټولو څناورو د ده استدلال ته سرونه خوځول او کله چې سنوبال خپل دلایل وویل، نو بیا ټولو څناورو د ده اســـتدلال ته ســـرونه خوځول شـــروع کړل. څناورو تر پایه دا پرېکړه ونه کړه، چې په دوی کې د کوم خوګ دلایل سم دي.

بلاخره د سنوبال د پلانونو د تکمیل ورځ راورسېده. کله چې د یکشـنبې د غونډې لپاره د فارم ټول څناور لوی ګودام ته راغلل، ســـنوبال ودرېد او د غونډې رایې ته یې د بادي ژرندې د کار د پیل کېدو او نه پیلېدو موضـــوع وړاندې کړه. ســـره له دې چې مېږو د هغه وینا څو ځله په رمباړو ګډه وډه کړه، خو بیا هم هغه د بادي ژرندې د جوړېدو څخه پوره دفاع وکړلای شوه.

ناپولن د سنوبال پر ضـد ودرېد او په ټیټ غږ یې غونډې ته وویل: ((ملګرو! د بادي ژرندې جوړېدل یو چټي کار دی. زه ستاسو له ټولو ملګرو څخه هیله کوم چې د دغه چټي کار لپاره خپله رایه ور نه کړئ.))

تر دې لنډې وینا وروســـته ناپولن ډېر ژر په خپل ځای پرېوت. ده یوازې دېرش ثانیې خبرې وکړې. ناپولن د خپلې وینا د مثبتې اغېزې په باب هېڅ چرت ونه واهه.

کله چې ســـنوبال د ناپولن لنډه وینا واورېده، نو هغه نېغ ودرېد، لومړی یې په ډېر قهر مېږې تهدید کړې، هغوی یې د بې ځایه رمباړو وهلو څخه منع کړې او بیا یې خپله احساساتي وینا داسې پیل کړه:

((ملګرو! کله چې زما پلانونه سرته ورسېږي او بادي ژرنده جوړه شي، نو زه ورته په ډاډ ویلای شـم چې د فارم ټول څناور به هوسـا ژوندکوي او له ټولو سختو کارونو څخه به یې اوږې سپکې شي. اوس زما تصور بوسو، وښو او د

ټيپرو پربکوونکو ماشـــينونو څخه ډېر پورته تللي دی. زه د خپلو پلانونو له مخې تاسو ته دا زېری درکوم چې د بادي ژرندې برق به له يوې خوا ستاسو د فارم يوې، غابنورې، لرونه، د فصل د راټولولو او ګېډۍ کولو ماشينونه او د درمندونو د ټکولو او ميده کولو ماشـــينونه چلوي. له بلې خوا به دغه برق ستاسو د فارم ټولې غوجلې رڼا کړي، د دې برق په برکت به ستاسو لپاره په ژمي کې تودې اوبه او په ژمي کې سړې اوبه موجودې وي او تاسو به د ژمي په سړو کې په هر غوجل کې برقي منقلونه لګولي وي.))

تر دې وخته پورې د ژرندې په موضوع ټول ځناور په دوو ډلو وېشل شوي وو اما په دې غونډه کې سنوبال د خپل فصاحت او بلاغت په قوت د ځناورو لوی اکثريت ترلاسه کړ او د هغه د وينا په پای کې په غونډه کې حاضر ځناور په دې ښه پوهېدل چې اوس د غونډې رايې په کومه خوا ځي. هم په دې شېبه کې ناپولن ودرېد، ســـنوبال ته يې په ترڅ وکتل او بيا يې په ډېر لوړ غږ سونګېدنه شروع کړه. له دې ترمخه د فارم يو ځناور هم د ناپولن څخه دغه شان سونګېدل نه و اورېدلي.

د دې عجيبه سونګېدنې سره جوخت د لوی ګودام د باندې د سپو د غپا اواز راغی. دغه ډېر خطرناک غپېدل وو، نه لوی سپي چې کړی يې په غاړه وې په يو ترات په دانګونو ګودام ته راننوتل او د راننوتلو ســـره يې نېغ په ســـنوبال ورمنډه کړه. د دې لپاره چې د ســـپو د خولې اچولو څخه ځان بچ کړي، سنوبال له خپل ځايه ټوپ وواهه او د سترګې د رپ سره د ګودام د دروازې څخه ووت. هغه مخکې او سپي ورپسې په منډه ورخلاص وو. د دې پېښې په ليدو حيران او وډار شو، ځناورو چوپ چاپ د لوی ګودام د لويې دروازې نه د سنوبال د منډې او د سپو د تعقيب ننداره کوله. د ګودام او سړک ترمنځ په اوږد مالځړ ســـنوبال دومره چټکه منډه وهله څومره منډه چې يو خوګ

وهلی شي. ګرندي سپي د هغه پنډیو ته نږدې شول. په دې وخت کې سنوبال وښــویېد او ننذهرکوونکو څناورو دا فکر وکړ چې ګوندې ســپو په خوله کې ونیو. تر ښــویېدو وروســته ســم له لاســه ډېر ژر راپورته شــو او خپله منډه یې پسې چټکه کړه. بیا ورپسې سپي ورور سېدل او یو سپي د هغه لکۍ ته خوله واچوله. د خولې له اچولو سـره سـنوبال خپله لکۍ په ډېره چټکتیا تاو کړه او د سـپي د خولې د اچولو څخه یې لکۍ خلاصـه کړه. تر دې وروسـته سنوبال لاپسې چټک شو. د ده او د سپو ترمنځ څو انچه واټن پاتې و، چې سنوبال د بوټو په منځ کې په یو لوی سوري کې کښته پرېوت او تر دې وروسته سنوبال هېڅ ونه لیدل شو.

ډار شوي څناور ډېر غلي ګودام ته بېرته ننوتل. یوه شېبه وروسته نهه سپي په دانګونو بېرته راغلل. د ســپیو په لیدو ټول څناور حیران شــول، ځکه چې یو څناور هم په دې نه پوهېده چې دغه خطرناک مخلوق له کوم ځایه راپیدا شو. اما ډېره ژر دغه معامله حل شـــوه. څناورو ته څرګنده شـــوه چې دا هم هغه کوکري دي، چې ناپولن د دوو ســپیو څخه اخیســتي وو او په خپله یې په یو ځانله ځای کې د تربیې لاندې ونیول، تراوســه دغه ســپي پوره لوی شــوي نه وو، خو بیا هم دوی د خپل عمر په تناســـب ډېر غټ او د خطرناکه لېوانو غوندې معلومېدل. څه وخت چې دغه ســـپي راغلل د راتګ ســـره ناپولن ته نږدې ودرېدل او ټولو څناورو په خپلو سترګو ولیدل چې دغه سپي ناپولن ته داسې لکۍ وهي، لکه څنګه چې د دوی میاندو او پلرونو مسټر جونز ته لکۍ وهلې.

ناپولن مخکې او سپي ورپسې روان شول. هغه د ګودام دننه هغه اوچت ځای ته پورته شول، کوم ځای چې یو وخت وړ میجر د فارم څناورو ته خپل خوب ویلی و. له دغه ځایه ناپولن اعلان وکړ: ((ملګرو! سـر له نن یکشـنبې سـهار

غونډې له منځ ولاړې. دا غونډې يو چټي او غير ضــروري شــی دی او دغه چټي شــی زموږ قيمتي وخت ضــايع کوي. په راتلونکي کې به د خوګانو يوه ((مخصــوصــه کمېټه)) د فارم ټولې چارې چلوي او ددغې کمېټې رياســت به زما پر غاړه وي. تر دې وروسته به موږ خوګان پټې غونډې کوو او د دغو پټو غونډو فيصلې به تاسو ته ابلاغ کېږي. تاسو ټول ځناور به د يکشنبې پر سهار راټولېږئ، د فارم بيرغ ته به ســلامي ورکوئ. (( د انګلســتان ځناورو)) ترانه به وايئ او د ټولې اوونۍ دکار اوامر به اخلئ. پام کوئ چې تر دې وروسته په يوه موضوع هم بحث او مباحثه ونه کړئ.))

له يوې خوا د ســنوبال د شــړلو له امله د فارم ټولو ځناورو ته لويه صــدمه رســېدلې وه او له بلې خوا د ناپولن دې اعلان د هغوی په زخمونو مالګه ودوړوله. که چېرې د فارم ځناور د مخکې نه په سـم اســتدلال اموخته وای، شايد چې هغوی د دې اعلاميې پر ضد احتجاج کړی وای. د سنوبال پر شړلو او د ناپولن د نوي اعلان په اورېدو د بوکســر غونډې يو ســوړ ځناور ته هم صدمه ورسېدله. بوکسر خپل غوږونه ځوړ ونيول. څو ځله يې په تندي پروت وربل اخوا دېخوا وغورځاوه او د ســم اســتدلال لپاره يې له حده زيات فکر وکړ، خو له بده مرغه چې مغزو يې تر پايه ورســره مرســته و نه کړه، ټولو ځناورو لـه جملې څخه يوازې څلور ځوان خوګانو پـه ډاګه خپـل خفګـان څرګند کړ. دغه څلور خوګان په لومړي کتار کې ناســت وو. څلور واړو يو ځای د نوي اعلان پر ضــد کړيکې پيل کړې. څلور واړه يو ځای راپورته شــول او څلور واړو يو ځای په خبرو شــروع وکړه. د ناپولن ترڅنګ پراته سپي د خوګانو د کړيکو په اورېدو راپورته شول. دوی خوګانو ته وغرېدل او د دوی د ډارېدونکي غرېدو لـه وېرې خوګان غلي او چوپ چاپ پـه خپلو ځايونو کېناســتل. تر دې وروســته مېږو په جګ اواز رمباړې شــروع کړې او

پنځلس دقیقې یې په رمباړو ((څلور پښیز ښه دي او دوه پښیز خراب دي)) تکرار کړه او د دې دستوري رمباړو په وجه د ګودام دننه بحث ته خاتمه ورکړل شوه.

ناپولن د ((انقلاب د تکاملي پړاو )) د نوي تنظیم د شریح لپاره سکیولر فارم ته ولېږه. دلته سکیولر د فارم څناورو ته په ویناکې وویل: ((ملګرو! زه پوره باور لرم چې د فارم ټول څناور د ملګري ناپولن له دې قربانۍ څخه د زړه له کومي مننه کوي چې ده نور اضافي کارونه هم په خپلو مبارکو اوږو واخیستل.))

((ملګرو! تاسو هېڅ داسې تصور ونه کړئ چې ګوندې مشرتوب د ساعت تېرۍ شی دی. برعکس مشرتوب یو ډېر درود مسولیت دی. تاسو په دې پوهېږئ چې زموږ د فارم یو څناور هم د مګلري ناپولن غوندې په دې اصولو چې ((ټول څناور مساوي دي)) کلکه عقیده نه لري.))

((ملګرو! زه پوره ډاډ لرم چې ستاسو دیموکرات ملګری ستر ناپولن د زړه نه دا غواړي چې تاسو دې په خپله د فارم چارې وچلوئ، خو باید موږ له دې واقعیت څخه هم هېڅ انکار ونه کړو، که چېرې موږ په ځینو وختونوکې د فارم د چارو په برخه‌کې غلطې پرېکړې وکړې، نو ایا تاسو د دغو غلطو پرېکړو په انجام پوهېږئ؟ د مثال په توګه تاسو ته څرګنده شوه او اوس وربانډې ښه پوه شوي یاست چې سنوبال زموږ فارم لوی مجرم دی. که چېرې د ژرندې د موضوع په رایې شمېرنه‌کې تاسو سنوبال ته رایه ورکړې وای، نو په واقعیت‌کې به تاسو د سنوبال غوندې د یو لوی مجرم د پرېکړې تاییدکړی وای. دا حقیقت باید ومنو چې اوس سنوبال د یو لوی مجرم پرته بل هېڅ حیثیت نه لري.))

**یو ځناور سکیولر ته وویل: ((( زه شاهد یم چې ((د غواوو ځپر)) په جګړه کې سنوبال په ډېر زړورتوب وجنګېد.))**

**((ملګرو! یوازې زړورتوب کفایت نه کوي، بلکې زموږ په فارم کې له ټولو څخه مهم شرط وفاداري او اطاعت دی. موږ ټول خوګان دا عقیده لرو چې (( د غواوو ځپر)) د جګړې په باره کې سم معلومات نه دي راټول شوي. ډېر ژر به تاسو ته روښانه شي چې په دې جګړه کې د سنوبال د زړورتوب په برخه کې څومره مبالغه شوې ده.))**

**((ملګرو! موږ یو پولادي ډسپلین ته اړتیا لرو. زموږ د نن ورځې شعار دا دی: که چېرې تاسو یو ناسم ګام پورته کړ، نو زه باور لرم چې زموږ دښمنان بېرته راځي، ایا تاسو دې فارم ته د جونز بیا راتګ غواړئ؟))**

**یو ځل بیا د سیکولر استدلال ته چا ځواب ور نه کړ. ټولو ځناورو د زړه نه د جونز بیا راتګ نه غوښت. ټولو ځناورو په یو اواز دا پرېکړه وکړه که چېرې د یکشنبې د سهار بحثونه د جونز بیا راتګ ته لار هواروي، نو دغه غونډې دې د تل لپاره له منځه یوړل شي. د سیکولر د خبرو تر اورېدو وروسته بوکسر څه ناڅه فکر وکړلای شو. ده د ځناورو په استازې د عمومي احساس اظهار په لاندې شعار وکړ او دا شعار یې څو ځله تکرار کړ:**

**((که دا د ملګري ناپولن نظر وي، نو بیا خو دا نظر بېخي سم دی. ملګری ناپولن تل رښتیا وایي. زه به د ملګري ناپولن د پاک هدف په خاطر لاپسې سخت کار کوم.))**

**اوس د ژمي موسم تېر شو او د پسرلي د کرکیلې وخت راورسېد. د سنوبال د بادي ژرندې د پلانونو ځپر وتړل شو. هر ځناور فکر کاوه چې د پلانونو**

رسمونه به د څپر د فرش څخه حتماً پاک شوي وي. اوس د هرې يکشنبې د سهار په لسو بجو ټول ځناور لوی ګودام ته راتلل او دلته يې د خوګانو څخه د يوې اوونۍ دکار امرونه اخيستل.

د ناپولن په امر د زوړ ميجر کوپړۍ د قبر څخه راوکښل شوه. د دې کوپړۍ پورې يو پوټی غوښه او پوستکی نه وو پاتې، دکوپړۍ لپاره د فارم د بيرغ جنډې تر څنګ يو اوچت ځای جوړ شو او ناپولن په خپله دغه ځای ټوپک ته نږدې د زوړ ميجر کوپړۍ په ډېر درناوي کېښوده. ناپولن دکوپړۍ د ايښودو په مراسمو کې دا حکم وکړ:

((تاسو ټول ځناور مکلف ياست چې د بيرغ تر پورته کېدو وروسته په کتار ودرېږئ. لومړی به د ملګري زوړ ميجر دکوپړۍ احترام کوي او بيا به په کتار لوی ګودام ته ننوځي!))

تر دې وروسته ځناور د پخوا غوندې په ګودام کې ګډ وډ نه شو کېناستلای. اوس ناپولن، سيکولر او ميني موس minimvs (دې خوګ په سندرو او شاعرۍ کې ځانګړی استعداد درلود) دګودام دننه د يو اوچت ځای په لومړۍ کتار کې کېناستل، نهه سپو به د ناپولن خواو شا په نيم دايره شکل ځای نيوه او د فارم نور خوګان به د هغه تر شاه په کتار کې ناست وو. له دوی پرته د فارم نور ټول ځناور مکلف وو چې دګودام دننه ناپولن ته مخامخ په کتار ودرېږي. ناپولن به له دغه اوچت ځای څخه راپورته کېده او په ډېر ځيږ اواز به يې د اوونۍ دکار امرونه لوستل. په پای کې به ټولو ځناورو يو ځل ((د انګلستان ځناورو)) ترانه ويله او بيا به ټول ځناور د خپلو کارونو پسې خورېدل.

د سنوبال تر شړلو وروسته د دریيمې يکشنبې په سهار ناپولن غونډې ته وويل: (( له درې اوونيو راهيسې د خوګانو ځانګړې کمېټې پټې غونډې وکړې او په دې غونډوکې د بادي ژرندې د تکميل په پلانونو هر اړخيز غور وشو. د دې پلانونو له مخې اټکل شوی دی، چې د فارم بادي ژرنده به په راتلونکو دووکلونوکې بشپړه سرته ورسېږي. په بل عبارت دا ژرنده به تاسو حتماً په دووکلونوکې جوړوئ. د ژرندې جوړېدل له تاسو څخه اضافي کار او ډېر سخت زيار غواړي. ممکنه ده چې زما په امر د اضافي کار په دوران کې ستاسو ځيره هم لږه شي.))

د دې اعلان په اورېدو ټول ځناور هک پک شول، ناپولن په دې غونډه کې د خپل نظر د ناڅاپه تغير په باره کې هېڅ ونه ويل. اما په دغه شپه د خوګانو ځانګړې کمېټې نطاق سکيولر د ناپولن اعلان نورو ځناورو ته داسې تشريح کړ:

((ملګرو! له پيل څخه ملګري ناپولن د باي ژرندې د جوړېدو هېڅ مخالفت نه دی کړی، بلکې ملګري ناپولن لومړنی شخص دی، چې د بادي ژرندې د جوړېدو مفکوره يې وړاندې کړې ده. هغه پلان چې سنوبال د چرګوړو د ماشين د څپر په فرش رسم کړی و اصلاً غدار او غل سنوبال د ملګري ناپولن د مغزو تخليق دی.)) يو ځناور پوښتنه وکړه: ((که بادي ژرنده د ستر لاربنود ملګري ناپولن تخليق وي، نو بيا ولې هغه د بادي ژرندې پر ضد په دومره سختو الفاظو مخالفت کاوه؟))

د دې سوال په اورېدو سکيولر د يو پوخ مکار غوندې لومی اخوا دېخوا وکتل او بيا يې ورته داسې ځواب ورکړ: ((ملګرو! دا خو د ملګري ناپولن هوښيارتيا وه، هغه خو په ظاهره داسې ښکاره کېده لکه چې د بادي ژرندې

**مخالفت کوي. دا خو د مګلري ناپولن يوه عالمانه مناوره ده. ملګري ناپولن غوښت چې د دغه ظاهري مخالفت په وجه د سنوبال غونډې د يو خطرناک کرکټر څخه هم ځان خلاص کړ ياو هم د دې خطرناک کرکټر له شــر او بدې اغېزې څخه ټول فارم وژغوري. سنوبال د دې پلان د عملي کېدو په لاره کې يوازې اسـاسـي خنډ و، اوس دغه اسـاسـي خنډ له منځه تللی دی او موږ پوره ډاډه يو چې اوس به د ژرندې پلان د هغه د بې ځايه مداخلې پرته په ارامه فضا کې ترسره شي.)) ((ملګرو! دې ته تاکتيک وايي! دا د ملګري ناپولن تاکتيک و!))**

**د تشــريح په دوران کې ســکيولر پورته پورته دانګونه وهل، لکۍ يې تاووله راتاووله او د ځان ســره موســکېده. هغه د ((تاکتيک)) ټکی څو ځله تکرار کړ. بېچاره ځناور تر پايه د ((تاکتيک)) په مانا او مفهوم پوه نه شـــول. د سکيولر فصاحت او بلاغت او ورسره دريو سپو غورېدو ټول ځناور مجبور کړل چې دغه تشـريح ومني او تر دې وروسـته د سـنوبال د شـړلو او د بادي ژرندې په هکله سوال ونه کړي.**

# شپږم څپرکی

ســـره له دې چې په دغه کال د فارم ټولو څناورو د غلامانو غوندې کار وکړ، خو بیا هم هغوی په خپل کار او زیار ډېر خوشاله معلومېدل. څناور په دې ښه پوهېدل چې اوس د دوی کار د پخوا غوندې د انســانانو د یوې تنبلې او غلې ډلې په خدمت کې نه دی، بلکې اوس هغوی هر څه د خپلې ګټې او د خپل فارم د راتلونکو څناورو په خاطر کوي.

څناورو په ټول پسـرلي او دوبي کې په یوه اوونۍ کې شـپېته سـاعته کار کاوه. ناپولن د دغه کال د اګست په میاشت کې دا اعلان وکړ: (( تر دې وروسته د فارم ټول څناور مکلف دي چې د یکشنبې د ورځو تر ماسپښین وروسته هم کار وکړي. ما د یکشـنبې د رخصــتیو ورځو ته ((د خپلې خوښــې کار)) نوم ورکړی دی. د دغو ورځو کار واقعاً د خپلې خوښــې کار دی. خو که تاسـو د څناورو څخه یو څناور د خپلې خوښـې د کار څخه پټ شــي او په دغه ورځ غیرحاضـــري وکړي، نو زما په حکم به دغه څناور ته د نیمې ورځې څېره ورکول کېږي.))

((تاسو ته څرګنده ده چې د تېر کال په تناسب سږ کال د غلې حاصل لږ دی. په هغو دوو پټیو کې چې موږ د دوبي په پیل کې ګازرې کرلې وې، دغه دواړه پټي د مني په فصـــل کې ونه کرل شـــول، د نه کر علت دا دی چې دغه دواړه پټي د مني د کر لپاره ښه نه وو، یوې شوي. ستاسو د خبرتیا لپاره د اوس نه درته دا وړاندوینه کوم چې د فارم لپاره به راتلونکی ژمی ډېر سخت وي.))

د بادي ژرندې د کار په شروع کې یو لړ ناخاپي مشکلات پېښ شول. سره له دې چې د ژرندې د ودانۍ لپاره د فارم دننه د تیږو یو ښه کان او په ځینو ګودامونو کې پرېمانه شګې، سمنټ او نور ټول مواد موجود وو اما لومړنی مشکل چې څناورو حل نه کړلای شو، دا و چې دوی د ژرندې د دېوالونو په اندازه دغه لوی پرښې څنګه ماتې کړي. د دغو لویو پرښو د ماتېدو کار د پلکونو او ارمونو پرته ممکن نه و. له بلې خوا د فارم څناورو ته د پلکونو او ارمونو د استعمال کار ډېر سخت و، ځکه چې یو څناور هم د پلک او ارم د استعمال لپاره په وروستیو دوو پښو نېغ نه شو ودرېدلای. د څو اوونیو د بې نتیجې کوښښونو وروسته بلاخره یو څناور په مغزو کې دا سمه مفکوره چې ((د زمکې د جاذبې قوې څخه دې استفاده وشي.)) راپیدا شوه او ډېر ژر په دې مفکوره عمل پیل شو.

د تیږو د کان په پورتنۍ برخه کې تیت و پرک ډېرې لوېې پرښې پرتې وې. څناورو دغه پرښې په پېړو رسیو وتړلې. غواوو، اسونو، ګډ وو، بلکې هر هغه څناور چې دغه رسۍ نیولای شوه په خورا ډېر تکلیف دغه پرښې ډېر په کرار د کان مخ ځوړ ځای ته راکښلې چې په ځینو خطرناکو شېبو کې به خوګانو هم کله ناکله د رسۍ په نیولو کې برخه اخیستله. کله چې به څناورو یوه پرښه د کان څوکې ته راورسوله، بیا به یې له دغه ځایه پرښه په مخ ځوړ پرېښوده. په ډېر سرعت به دغه پرښه په مخ ځوړ راراوانه شوه او څه وخت چې به د کان تل ته راورسېدله، نو ده لویه پرښه به ټوټې ټوټې شوې وه. تر دې وروسته د ماتې پرښې د چلولو کار ډېر اسان و. اسونو په یوه کراچۍ کې بنجمین او موریل په بله کراچۍ کې او مېږو یوه یوه تیږه د ژرندې د ودانۍ ځای ته وړلې. د دوبي تر پایه د تیږو لویه ذخیره راټوله شوه او د تیږو د ذخیرې

وروســـته د خوګانو د نګرانۍ او څارنې د لاندې د ژرندې د ودانۍ کار پیل شو.

د پرښو د ماتېدو کار ډېر سخت او د ستونزو ډک و. کله چې به یوه پرښه د کان ســرته راکښــل کېده، دې یوې پرښــې به تل پوره د یوې ورځې ســتړی کېدونکی زیار غوښـــت. په ځینو ورځوکې به غورځول شـــوې پرښـــې نه ماتېدلې.

د بوکسر نه پرته د ژرندې د ودانۍ کار ناممکن و. یوازې د ده قوت د فارم د نورو ټولو ځناورو برابر و کله چې به یوه پرښـــه په مخ ځوړ وښـــوېدله، نو ورسره به د رسۍ پورې نښتي ځناور هم راوښوېدل. د ښویدو په دوران کې به ځناورو د وارخطایۍ او نا امیدۍ چیغې شـــروع کړې. په دې خطرناک وخت کې به بوکســر ځان اړم کړ. په ټول قوت به یې رســۍ ټینګه کړه او دغه ښویدونکې پرښه به یې پر ځای ودروله. کله چې به ځناورو ولید چې بوکسر د خپل قوت په برکت دوی له مرګ ژغوري، هغه د کان دننه کښته پورته ساه سوځېدلې منډې رامنډې وهي، زیار باسي، د درندو تیزړو د راکښلو په وجه د هغه ســـومان په خاوره کې ننوځي او د وجود نه یې خولې څاڅي، نو هر ځناور به د بوکسر د قوت او زیار ډېره ستاینه او صفت کاوه.

((بوکســـره! ته د خپلې روغتیا پروا نه کوې، زه درته د یوې نږدې ملګري په صـفت اخطار درکوم چې دغه د دېوانو کار او دغه زیات فشـار به دې ډېر ژر مړ کړي.)) کلوور ورته وویل: بوکســـر ورته په ځواب کې وویل (( زه دومره وخت نه لرم چې ستاسو په چټي خبرو وخت ضـایع کړم، زه د ټولو کشـالو د حل لپاره یو شعار لرم، چې زه به لا پسې سخت کار کوم او ملګری ناپولن تل رښتیا وایي.))

بوکسـر یو ځل بیا د یو چرګ څخه دا هیله وکړه: ((ملګریه! ما هر سـهار د نورو ځناورو څخه د نیم سـاعت پر ځای پنځه ځلوېښـت دقیقې مخکې ویښ‌ووه.))

د ژرندې د جوړېدو کار ډېر په بیړه روان و او د بېکارۍ وخت ډېر لږ و، خو بوکسـر به په دې ډېر لږ بېکاره وخت کې هم کار کاوه. هغه به یوازې کان ته تللو، دلته به یې ماتې تیږې راټولولې او د نورو ځناورو د کومک نه پرته به یې دغه تیږې د ژرندې ځای ته چلولې. سره له دې چې ځناورو د ژرندې په ډېر سخت کار بوخت وو، خو بیا هم د ټول دوبي په موده کې د دوی خوراک بد نه وو. د ځناورو خوراک د جونز له وخت څخه تراوسـه پورې دومره توپیر نه وکړی. د ډېر کار او زیار سره سره ځناور خوشاله وو. دوی اوس د پنځه پراذیت او بې فایدې انسـانانو پر ځای یوازې د خپلو خېټو لپاره کار کاوه. اوس د انسانانو په تناسب په ډېرو برخوکې د ځناورو د کار میتود ډېره موثره او ګټوره نتیجه ورکوله او د دغه میتود په برکت د ډېرو کارونو سمپاکېدله. د مثال په توګه ځناورو د وښو د للون کار دومره مکمل کاوه چې دغه شان پاک للون د انسانانو لپاره ناممکن و. په فارم کې غلا او پټ خوراک نه کېده. اوس دا ضرورت نه و چې ځناور دې د مالځړ ځایو او د کر د زمکو ترمنځ د کټارو په ودرېدو د اړیکي په اچولو او د دروازو په جوړېدو د کار انرژي خرڅه کړي.

بیا هم د دوبي په پای کې د فارم دننه د ځینو شیانو لکه د سپیو لپاره بسکټ، د اسـونو د نعلونو لپاره اوسـپنه، د غوړو، مېخونو، تارونو او د داسـې نورو شـیانو د اړتیا احسـاس شـروع شـو. له دغو شـیانو څخه یو هم په فارم کې نه تولیدېده، له دغو شیانو برسېره دا احساس هم کېده، چې د مني د فصل لپاره به تخمونو، مصنوعي سرې او د کر اوزارونه هم شدید ضرورت پیداکېږي. له

دوی برســېره د بادي ژرندې ماشــين الات له ټولو مهم ضــرورت ګڼل کېده، څنګه به دا شــيان لاس ته راوړل کېږي؟ يو څناور هم د دې وړ نه و چې دې ســـوال ته ځواب ورکړي او يا د راتلونکو مشـــکلاتو د حل په باره کې تش تصور قدرې هم وکړلای شي.

کله چې د يکشــنبې په ســهار څناور د امرونو د اخيســتلو لپاره راټول شــول، ناپولن ورته دا ابلاغيه واوروله:

ما د يوې نوې پاليسۍ فيصله کړې ده. زه غاړم چې د ((څناورو فارم)) دې د ګاونديو فارمونو ســـره تجارتي اړيکي ټينګ کړي، البته دا تجارتي اړيکي يوازې د تجارتي ګټو په خاطر نه ټينګېږي، بلکې زه غواړم چې د دې تجارتي راکړې ورکړې پواســطه هغه مشــخص مواد چې د فارم لپاره عاجل ضــرورت دی، لاس ته راوړم. تاسو بايد په دې ښه پوه شئ چې به دې حساسه مرحله کې د ژرندې د اړتيا وړ شــيان له بل هر څه نه لوی او مهم ضــرورت دی، ما عاجل تصميم نيولی دی. چې به دې حساسه مرحله کې د وښو يو ټوپ او د غنمو د فصــل يوه برخه خرڅه کړم. ســره له دې هم که چېرې ډېرو پيســو ته ضــرورت پيداکېږي، نو زه دغه ضــرورت د ويلنګډن په مارکېټ کې د هګيو خرڅلاو له لارې پوره کولای شــم. تاســو د فارم ټولې چرګې بايد ځانونه دې قربانۍ ته چمتو کړئ. دا قرباني به د چرګو له خوا د ژرندې د ودانۍ لپاره يو مخصــوص کومک وي. تاســو چرګې له نن څخه داکوښــښ وکړئ چې د دې مخصـــوص کومک په خاطر غټې او ډېرې هګۍ واچوئ. پام کوئ چې يوه هګۍ درنه خوسا او ماته نه شي.))

د دې اعلاميې په اورېدو يو ځل بيا په څناورو کې نا ارامي خپره شوه. څناورو د يو بل نه دا پوښــتنه شــروع کړه: (( ايا د جونز تر شــړلو وروســته په لومړنۍ

پرتمینه غونډه کې دا پریکړې ونه شوې، چې څناور به له انسانانو سره هیڅ ډول روابط نه ټینګوي. تجارت به نه کوي، پیسې به نه استعمالوي؟)) دا پریکړې ځینو څناورو ته یادې وې اما ځینو څناورو فکر کاوه چې ګوندې دغه پریکړې شوې وې. هغو څلور خوګانو چې د ناپولن په امر د غونډې له منځه تګ پر ضد یې احتجاج غږ پورته کړ. د دوی دا احتجاج د اواز په اورېدو سپیو ورباندې راغږم وهلې او ډېر ژر یې د دغو خوګانو اواز غلې کړ. په دې شېبه کې مېږو بیا د عادت سره سم ((څلور بولي ښه دي او دوه بولي خراب دي)) په رمباړو شروع وکړه چې د څو شېبو ګډوډۍ وروسته حالت بېرته عادي شو. ناپولن د څناورو د غلي کېدو لپاره مخکنۍ پښه پورته کړه او څ وخت چې ټول څناور چوپ شول هغه خپلې وینا ته داسې دوام ورکړ:

(( ما د مخکې نه ټول ترتیبات نیولي دي. زما د ترتیباتو له مخې تاسو څناور د انسانانو سره د مستقیم او غیر مستقیم تماس د نیولو حق نه لرئ. زما په عقیده ستاسو او د انسانانو ترمنځ تماس یو ناوړه عمل دی. ما اراده کړې ده چې د تماس د چارو ټول بار په خپلو اوږو واخلم، ما او د ویلنګډت تجار مستر ویمپر Whymper موافقه کړې ده چې دغه تجارت به د څناورو د فارم او خارجي نړۍ ترمنځ د ارتباط وظیفه اجراکوي هغه به د هرې دوشنبې په سهار دلته راځي او زما نه به لازم هدایتونه اخلي.))

ناپولن خپله وینا په کرغېړن او چیغنده اواز د دې شعار په ویلو چې ((ژوندی دې وي د څناورو فارم)) پای ته ورسوله او (( د انګلستان څناورو د ترانې تر ویلو رووسته ټول څناور خواره شول.

تر دې اعلامیې وروسته سکیولر د څناورو د قانع کېدو لپاره د فارم دننه وګرځېده او څناور یې داسې مخاطب کړل.

((ملګرو! زه درته پوره ډاډ درکوم چې د تجارت او د پیسو د استعمال پر ضد نه کومه فیصله شوې ده او نه کوم وړاندیز. کېدی شي چې دا ستاسو محض یو تصور وي او یا دا هغه دروغ وي چې د ((انقلاب)) په شروع کې غدار سنوبال خپرول.)) د سکیولر د خبرو په دوران کې یو څناور ډېر ضعیف شک ښکاره کړ چې ګوندې دغه پرېکړې شوې دي اما سکیولر په ډېره چالاکۍ د ټولو څناورو څخه دا پوښتنې وکړې: (( ایا د تجارت او د پیسو د استعمال پر ضد فیصلې ستاسو خوب لیدل نه دي؟که دا ستاسو خوب لیدل نه وي، ایا تاسو د دغه شان پرېکړو کوم ثبت شوې ثبوت وړاندې کولی شئ؟ یو څناور هم د سکیولر پوښتنو ته ځواب نه شو ورکولای، ځکه چې د دغو پرېکړو ثبت شوي ثبوت وجود نه درلود. په پای کې ټول څناور قانع شول چې د تجارت او د پیسو د استعمال پر ضد پرېکړې د دوی د یو غلط تصور او خیال پرته بل هېڅ مفهوم نه لري.

د ناپولن د ترتیباتو سره مستر ویمپر فارم ته تګ راتګ شروع کړ. مستر ویمپر یو برېتور، لنډ، مکار او چالاک شخص و. دې لوی مکار د بل هر چا څخه مخکې دا احساس کړی و چې د څناورو فارم به حتماً یو تجارتي دلال ته ضرورت پیداکوي او یوازې دی به دلالۍ له لارې ډېره ګټه ترلاسه کړي. په لومړنیو ورځو کې څناورو هغه د تګ راتګ څخه ترهه کوله او هر څناور تر خپله وسه کوښښ کاوه چې د ویمپر سره مخامخ نه شي، خو کرار کرار څناورو د نورو شرایطو سره ځانونه عیار کړل. هغوی په دې ننداره چې اول ځل یو څلور بول دوه بولي ته امرونه کوي، خوشحالېدل او افتخار یې ورباندې کاوه. اوس دوی په دې واقعیت پوره پوهېدل چې د انسانانو سره د دوی روابط د پخوا په شان نه دي.

د څناورو او انسانانو ترمنځ سرچپه روابط ټینګ شول اما د څناورو د فارم پر ضد د انسانانو کرکه او نفرت د پخوا نه لاپسې زیات و، انسانانو د فارم هر انکشاف او بریالیتوب ته د نفرت په نظر کتل. ټولو انسانانو کلکه عقیده درلوده چې دغه فارم د افلاس او د ژرندې پروګرام د ناکامۍ سره مخامخ کېدونکی دی. کله چې به انسانان په شر انجانوکې راټول شول، دوی به دلته د رسمونو پواسطه یو بل ته اثباتوله چې دغه ژرنده به یا حتماً راولېږي او که رانه ولېږي، نو دغه شان جوړه ژرنده تر پایه د کارکولو وړ نه ده. د دې بدنیتۍ سره سره څناورو د خپل فارم چارې د یو موثر تنظیم لاندې چلولې او انسانانو زړه نا زړه د دغه موثر تنظیم ستاینه کوله. د ستاینې یوه نښه دا وه چې انسانانو د ((مانور فارم)) پر ځای اوس دغه فارم (( د څناورو فارم)) په نوم باله. انسانانو د مسټر جونز د ادعا څخه لاس واخیست. مسټر جونز مجبور شو چې د خپل فارم د بیا نیولو څخه نا امیده او مایوسه بل ځای ته ولاړ شي او دلته د تل لپاره مېشت شو. د ویمپر پرته د ((څناورو فارم)) او خارجي نړۍ ترمنځ نور تماس او ارتباط وجود نه درولد، لاکن د ویمپر د تګ راتګ وروسته داګونګسې شروع شوې چې ناپولن یاد فوکسووډ فارم د خاوند مسټر پلینګټن او یا د پنجفیلډ فارم د خاوند مسټر فریدرک سره یو تجارتي تړون لاسلیک کوي. ناپولن په یو وخت کې د دواړو فارمونو د خاوندانو سره تجارتي تړونونه لاسلیک کول نه غواړي. ناڅاپه خوګان د مسټر جونز مېنې ته ولاړ او دلته یې هستوګنه شروع کړه. یو ځل بیا څناورو ته په زړه شوه چې په لومړۍ پرتمینه غونډه کې د مسټر جونز په مېنه کې د اوسېدو پر ضد پرېکړه شوې وه، یو ځل بیا سکیولر د دې موضوع تشریح او د څناورو د قانع کېدو لپاره ولېږل شو. هغه څناورو ته وویل:

((ملګرو! تاسو ته اوس ښخي په اثبات رسېدلې ده چې ستاسو رښتيني ملګري خوګان د دې فارم د ذهني کارګرانو وظيفه اجراکوي. تاسو پوهېږئ چې ستاسو د ذهني کار ګرانو د استراحت لپاره يو ټاکلی ځای ډېر ضروري دی. زموږ د ((ستر لاربنود)) سکيولر به ناپولن د ستر لاربنود په نوم باله، لوړ مقام، لوی حيثيت او د ده د قيمتي ژوند حفاظت اوس دې ته ضرورت لري چې زموږ ستر لاربنود دې تر دې وروسته د غوجل پر ځای په يو مجهز کور کې تشريف ولري.))

ځينو ځناورو د دې خبر په اورېدو چې خوګان د مستر جونز د مېنې په اشپزخانه کې ډوډۍ خوري، د هغه د ناستې کوټه د ساعت تېرۍ د ځای پحيث استعمالوي او د دغې مېنې په بسترو څملي ډېر خفګان ښکاره کړ. بوکسر چې دا خبر واورېد، نو خپل شعار يې ((ناپولن تل رښتيا وايي)) په جګ اواز تکرار کړ. کله چې کلوور دا خبر واورېد هغې د ځان سره فکر شروع کړ او د يوې شېبې فکر نه يې د ځان سره وويل: ((ما ته په بستره باندې د ويده کېدو پر ضد فيصله تراوسه ياده ده.)) کلوور ډېر ژر د ګودام دېوال ته ولاړه او کوښښ يې وکړ چې د ګودام په دېوال ليکل شوي اوه احکام ولولي، خو چې هر څه يې وکړ ويې نه شو لوستلای او په پای کې يې د دې کار لپاره موريل راوستله.

((موريل! دغه څلورم حکم راته ولوله. ايا دغه حکم په بستره باندې د نه ويده کېدو امر نه کوي؟

موريل تر ډېر کوښښ وروسته حکم داسې ولوست: (( هېڅ ځناور به په هغه بستره نه ويده کېږي، چې روجايي ورابندې هواره وي. کلوور د اول ځل لپاره د ((روجايي)) نوم واورېد او هغه د دې نوم په اورېدو حيرانه غوندې

شــوه. هغې ته دا هېڅ ياد نه و چې په څلورم حکم کې د ((روجايي)) شــرط ليکل شــوی و. د دې شــرط په اورېدو هغه تر يو وخته هک پک ولاړه وه او وروســته يې د ځان ســره دا فکر وکړ. کېدی شــي چې د روجايي شــرط په لومړۍ ورځ ليکل شوی وي او دغه شرط زما له ياده وتلی وي.

هم په دې وخت کې ســکيولر د دريو ســپيو ســره دغه ځای ته راغی او د روجايي په موضوع يې رڼا واچوله:

(( ملګرو! ممکنه ده چې تاسو د دې خبر په اورېدو چې موږ خوګان په بستر ويده کېږو، حيران شــوي غوندې ياســت. موږ ذهني کارګران په بســترو ولې ويده نه شــو؟ زه تاســو ته ډاډ درکوم چې زموږ په لومړنۍ پرتمينه غونډه کې نه د بسترو پر ضد څه فيصله شوې ده او نه دغه شان فيصلې وجود لري.))

((ملګرو! راځئ چې په دې ځانونه پوه کړو چې بســتره څه ته وايي، بســتره د ويده کېدو ځای ته وايي، که چېرې موږ د بســترې تعريف وکړو، که په يوه غوجل کې پاسته وابښه پراته وي او په دغه وښو يو څناور ويده کېږيو، نو دې ته هم بســتره ويلی شــو. بســتره نه بلکې ((روجايي)) د انســانانو ايجاد دی او ماته ډېره ښه ياد دي چې دغه فيصله د بسترې پر ځای ((د روجايي)) پر ضد وشوه. موږ د دې فيصلې د روحيې سره سم له ټولو بسترو څخه ((روجايي)) لرې کړي دي او اوس موږ ټول په دغه بې روجايي بســــترو باندې محض د کمپلو ترمنځ ويده کېږو. واقعاً چې دغه مســــتريح بســــترې دي، اما دومره مستريح نه دي، لکه څومره چې موږ خوګان مستريح بسترو ته اړتيا لرو.))

((ملګرو! تاســو په خپله پوهېږئ چې موږ خوګان ســتاســو د هوســا ژوند او خوشــالۍ لپاره څومره ذهني کار کوو؟ زه پوره باور لرم چې تاســو به د خپل فارم د ذهني کارګرانو په ارام هېڅ رخه نه کوي. ايا تاسو ملګري د خپلو ذهني

کارګرانو په نا ارامۍ خوشالیږئ څه؟ ایا تاسو غواړئ ستاسو ذهني کارګران دې ستړي ستومانه او نا ارامه خپلو وظیفو ته دوام ورکړي؟ ایا تاسو غواړئ چې د دې فارم ذهني کارګران دې په خپلو وظیفو کې ناکامه شي او جونز دې بېرته راشي؟ زه پوره باور لرم چې ستاسو د ملګرو څخه یو ملګری هم د جونز بېرته راتګ نه غواړي.))

ډېر ژر څناورو سکیولر ته ډاډ ورکړ چې هغوی په بسترو باندې د خوګانو په ویده کېدو هېڅ اعتراض نه لري. همدا شان څو ورځې وروسته چې دا اعلان وشو چې د دې وروسته به خوګان په سهار کې د نورو څناورو نه یو ساعت ناوخته راپاڅېږي، ټولو څناورو د دې اعلان پر ضد هېڅ شکایت او مخالفت ونه ښود.

څناور د مني په موسم کې ستړي اما خوشاله ښکاره کېدل. د وښو او غنم دانو د یوې برخې د خرڅلاو له کبله د ژمي د خوراک ذخیره لږه وه. سخت کال راتلونکی و، خو بیا هم د ژرندې جوړېدل د څناورو د ټولو مشکلاتو د جبران یواځینی امید و. اوس ژرنده نیمه جوړه وه، څه موده اسمان پرله پسې شین و او په دې موده کې ټولو څناورو د ژرندې د تکمیل لپاره سخت زیار ویست. څناورو تصمیم نیولی و چې په دې موده کې ډېرې تیږې ذخیره کړي او د ژرندې دېوالونه سرته ورسوي.

بوکسر به هره شپه دلته راتلو او د سپوږمۍ په رڼا کې به یې یو یا دوه ساعته ((د خپلې خوښې کار)) کاوه. د بې کارۍ په وخت کې به نور څناور هم دلته راتلل، د ژرندې چاپېر به ګرځېدل او په خپلو متو جوړ د ژرندې د دېوالونو د عمودي جوړښت ستاینه کوله او ټ،ل د خپلې ژرندې په جوړېدو د زړه له تله خوشاله وو. د ټولو څناورو د جملې نه یوازې زوړ بنجامین د ژرندې په

باره‌کې هېڅ ډول علاقه نه ښـــودله. هغه د خپل زوړ عادت له مخې د دې مرموزې تبصرې پرته چې ((خره اوږد عمر لري)) نور هېڅ نه ويل.

د نومبر د مياشتې د راتګ سره د جنوب لويديز ساړه بادونه شروع شول. د ژرندې د ودانۍ کار له دې امله چې اوس د ډېر رطوبت په وجه سمنټ نه شو کلکېدلای، ودرېد. يوه شــپه ډېر شــديد توپان راغی، دې توپان د فارم ځينې ودانۍ راوغورځولې. د لوی ګودام د بـام پخې خښـــتې يې والوځولې. څه وخت چې د ســـهار په مهال کې ځناور د خپلو غوجلو څخه راووتل، ګوري چې د فارم د بيرغ جنډه ورانده پرته ده او د باغچې ترڅنګ ولاړه لويه ونه لکه د مولۍ له بېخه ويستل شـوې ده. ناڅاپه د ځناورو نظر په ړنګ شـوې ژرنده پرېوت او د ړنګ شـــوې ژرندې په ليدو د ټولو ځناورو د خولې نه د ((اخ)) او مايوســـۍ چيغې ووتلې، ټولو يو ځای د ژرندې په لور منډه کړه. ناپولن چې د دې نه مخکې هېڅ چا په منډه نه و ليدلی په دې منډه‌کې د ټولو ځناورو نه مخکې په منډه روان و.

هو، د دوی د ټولو هلو ځلو ثمره له بېخه راولېدلې وه او هغه تيږې چې دوی په ډېر تکليف ماتې کړې او دلته راوړې وې خواوشـــا تيت و پرک پرتې وې. ټول ځناور د ژرندې چاپېر هک پک ودرېدل او په ډېره خواشـينۍ يې تيت و پرک او ګډوډ د پرتو تيږو ته په ځير ځير کتل ناپولن په کرارکرار اخوا دېخوا قدم واهه. لکۍ يې شـــخه نېغه ولاړه وه او يوې او بلې خوا ته يې اړوله را اړوله. کله به يې ځمکه بويوله اوکله به ډېر ژور فکرکې ډوب و. ناڅاپه د ناپولن مغزو ته څه خيال راغی او ډېر ژر په ځای ودرېد. په ډېر جګ اواز يې هک پک ځناور داسې مخاطف کړل:

((ايا تاســـو پوهېږئ چې زموږ د فارم اصـــلي دښـــمن او د دې لويې فاجعې مسـول شـخص څوک دی؟ ايا تاسـو پوهېږئ چې څوک د شـپې په تياره کې راغی او زموږ ژرنده يې تباه او بربادکړه؟ زه به درته د فارم اصـلي دښـمن او د دې فاجعې مسوول شـخص دروښيم. زموږ اصـلي دښـمن او د دې فاجعې واقعي مسوول شخص غدار سنوبال دی. دغه خاين داکارکړی دی. کله چې دغه غدار له دې فارم څخه وشړل شو له دغې ورځې راهيسې دغه خاين شپه او ورځ کوښـــښ کوي چې زموږ د ټولو څخه بدل واخلي او د دې فارم د هوسـا ژوند لپاره زموږ پلانونه شـنډکړي. دغه غدار پرون شـپه په تياره کې راغی او زموږ د يو کال کار او زيار يې له منځه يوړ.))

((زه دلته او په دې وخت ستاسو پر وړاندې دغه غار ته د مرګ سزا اعلانوم. که چېرې ستاسو څخه هر چا دغه غدار ((د څناورو عدالت)) ته مړ راوړ دغه شـخص ته د ((څناورو قرمان دويمه درجه نښـان)) او نيمه ټوکرۍ مڼې جايزه ورکوم اوکه چا دغه خاين ژوندی راوسـت دغه شـخ ته ((د څناورو قهرمان لومړۍ درجه نښان)) او پوره يوه ټوکرۍ مڼې انعام ورکول کېږي.))

کله چې څناورو دا واورېدل چې دغه لوی جرم سـنوبال کړی دی او سـنوبال د فارم اصلي دښمن دی، نو دوی ټولو ته له حده زياته صدمه ورسېدله. ټولو څناورو د سنوبال پر ضد د نفرت چيغې پورته کړې او هر څناور د سنوبال د وژلو او يا د ژوندي نيولو په تکل کې شـــو. ناپولن د ژرندې څخه لږ ليرې د يو خوک د پښـو منډونو ته اشاره وکړه او ويې ويل: ((تاسو ورته ښه وګورئ چې دغه منډونه د هغه سـوري په لور تللي دي چې غدار سـنوبال په‌کې پټ شـوی دی. دغه منډونه چې تر څوګزه پورې تاسو يې وينئ او وروسته تاسو ته نه ښـکاري خو زه د خپل اصـلي دښـمن پلونه د هغه د بوی څخه پېژنم. د

پښتو د منلونو څخه دا هم څرګندېږي چې دغه خاین د فاکسوود فارم له خوا د دې ورانکارۍ لپاره رالیږل شوی دی.))

((پام کوئ چې د ژرندې د جوړېدو په کارکې هېڅ ډول ډيل رانه ولځ. موږ د نن سهار نه د ژرندې د بیا جوړېدو کار شروع کوو. که اوړی وي او که ژمی. که اسمان شین وي او که وریځ وي، موږ به دغه ژرنده بیا جوړوو او په عمل کې به دغه بدبخت غدار ته دا ثابتوو چې هغه په دومره اسانۍ زموږ د کار د لارې خنډ کېدلای نه شي.))

(( زموږ پلانونه هېڅ ډول تغیر نه مني. زموږ پلانونه به حتماً پرمخ درومي او ترپایه به دغه پلانونه عملي کېږي.))

(( مخ پر وړاندې! ژرندې دې وي زموږ بادي ژرنده! ژوندی دې وي د څناورو فارم.))

# اووم څپرکی

ژمی ډېر سـخت و، د طوفاني موسـم پسـې ګرېګرى او واوره وورېدل او وروسـته دومره ډېره پرخه پرېوته چې د جنورۍ د میاشـتې پورې کنګل مات نه شو. څناور پوهېدل چې خواوشا اوسېدونکي انسانان د هوی د فارم چارې په ډېر غور څاري. که چېرې هغوی په ټاکلي وخت ژرنده جوړه نه کړي، نو انسانان به د دوی د ناکامۍ له امله د خوشالۍ جشنونه وکړي. همدا علت و چې څناورو تر خپله وسـه د ژرندې د بیا جوړېدو لپاره ډېر زیات زیار وویست.

یوازې د رخې له مخې انسـانانو تر پایه په دې باور نه کاوه چې دغه ژرنده سنوبال رنګه کړې ده، انسانانو به ویل: ((ژرنده ځکه رنګه شوه چې د دغې ژرندې دېوالونه ډېر نري جوړ شـوي وو)) اما څناور پوهېدل چې قضـیه دغه شان نه وه. بیا هم څناورو فیصله وکړه چې دا ځل به د اتلس اینچونو پر ځای درې فوټه پلن دېوالونه جوړوي. د پلنو دېوالونو د جوړېدو لپاره ډېرو تیږو ته اړتیا وه. له بلې خوا تر ډېرې مودې پورې د تیږو کان له واورو نه ډک پروت و او په دغه کان کې د تیږو د ټولولو کار ډېر ګران و. د وچو سـړو په موسم کې کار څه نا څه پرمختګ وکړ، لاکن په دغو وچو سړو کې کار ته دوام ورکول یو ظالمانه عمل و. اوس څناور د پخوا غوندې امیدوار نه وو، په دې موسـم کې د څناورو سـاړه کېدل او تل به وږي وو. د لوږې په مقابل کې یوازې بوکسـر اوکلوور حوصـله له لاسـه ور نه کړه، د لوږې په موده کې سـکیولر د خدمت خوند ((او د کار درناوښـت)) په باره کې په زړه پورې ویناګانې کولې، لاکن څناورو د سکیولر د ویناګانو پر ځای یوازې د بوکسر د

قوت او د هغه له دې شعار څخه چې (( زه به لاپسې سخت کار کوم)). ډېر الهام اخیست.

د جنورۍ په میاشت کې د خوړلو شیان لږ شول او ورسره د غنمو ځیره هم لږه شوه. په دې میاشت کې ناپولن اعلان وکړ چې که د غنمو ځیره لږه شوې ده، نو د دې پر ځای به ډېر الوګان ورکول کېږي. له دې اعلان وروسته ډېر ژر ځناورو ته څرګنده شوه چې د ژمي په سړو کې خوګانو د فارم الوګان ښه نه و پوښلي، الوګان سړو وهلي وو، خوسا شوي و او ډېر لږ الوګان د خوراک وړ وو. اوس ځناورو د بوسو او چغندرو پرته د خوراک لپاره بل هېڅ شی نه درلود او په فارم کې لوږه ورځ په ورځ په زیاتېدو وه.

د قحط په ورځو کې ناپولن دا فرمان خپور کړ:

((د فارم ټول ځناور باید د شاوخوا انسانانو څخه دې لوږه او قحطي پټه وساتي. د ژرندې د جوړېدو په پېښه انسانان بیا زړور شوي او هغوی یو ځل بیا ((د ځناورو فارم)) پر ضد پروپاګنده پیل کړې ده. انسانان وایي چې د فارم ځناور په قحطۍ او ناروغتیا ګانو اخته شوي دي. هره ورځ ځناور له لوږې او ناروغتیا څخه مري. ځناور خپل ترمنځ جګړې کوي، ځناور یو بل سره خوري او حتی کله کله خپل بچي هم خوري.))

(( زه په دې ښه پوهېږم که چېرې د قحطۍ او لوږې د واقعیتونو څخه خواوشا اوسېدونکي انسانان خبر شي، نو دغه کار به ((د ځناورو فارم)) پر ضد د انسانانو پروپاګندې ته مستند مواد ورکړي او په نتیجه کې به زموږ فارم د ډېرو ناوړو عواقبو سره مخ شي. ما تصمیم نیولی دی چې د انسانانو د پروپاګندې د مخنیوي لپاره د ښاغلي ویمپر څخه استفاده وکړم او انسانان بېخي سرچپه وپوهوم. ما یو څو اعتمادي خګانو او مېږو ته امر وکړی دی

چې د ګودام خالي کندوان او بېلرونه د شـــګو نه ډک کړي، له پاســـه دې ورباندې غله او نور خوراکي شـــیان واچوي او دغه کندوان او بېلرونه دې د ګودام په مخ کې کېږدي، زما دغه اعتمادي ځناور به د ویمپر د راتګ په وخت کې د هغه نږدې ولاړ وي او دوی به یو بل ته په جګ اواز وایي چې د فارم د ځناورو ځیره ډېره شوې ده.))

د دوشـنبې پر ورځ ویمپر راغی. له مخکې نه ورته ناپولن تیار ولاړ و. ناپولن هغه په یوه او بله پلمه د ګودام مخې ته بوتلو. دلته ویمپر په خپلو ســـترګو د غلې او خوراکي موادو څخه ډک کندوان او بېلرونه ولیدل. تر دې وروســـته غولیدلي ویمپر ټل خواوشـا انســانانو ته دا راپوروونه ورکول چې د ځناورو په فارم کې د خوراکي موادو هېڅ ډول قلت، قحطي او لوږه نه شته.

د ټول احتیاط سـره سـره د جنوري د میاشـتې په پای کې د بل ځای څخه د غلې د اخیستلو ضرورت راڅرګند شو، په دې ورځو کې ناپولن ډېر لږ په نظر راتللو. هغه ټول وخت په خپله کوټه کې تېراوه. کله چې به ناپولن د فارم د مېنې څخه باهر ته راته اوس نو په ډېر تشـــریفاتي ډول ښـــکاره کېده. دی به شپږو سپیو بدرنګه کاوه او دغو سپیو به ډېر نږدې د ده چاپېره منډې وهلې. د فارم کوم ځناور چې به ناپولن ته ډېر نږې کېدل غوښتل، د بدرنګې سپي به ورته غرېدل او دغه ځناور به مجبورېده چې د ناپولن څخه لیرې ودرېږي. په دې موده کې هغه د یکشنبې د سهار غونډو ته هم نه راتللو او دغو غونډو ته یې خپل امرونه ټل د سکیولر او کله د نورو خوګانو په خوله اعلانول.

د یوې یکشنبې د سهار په غونډه کې سکیولر دا اعلان وکړ: ((ملګرو! د دې لپاره چې زموږ فارم ســقوط ونه کړي، زموږ ســتر لارښــود ملګري ناپولن د ویمپر په واســـطه یو قرارداد منلی دی چې د دې قرارداد له مخې به فارم هره

اووني. څلور سـوه هګۍ. ورکوي او د دې هګيو پيســې به د راتلونکي دوبي پورې يانې چې شـرايط ښـه شـي، د غلې او نورو خوراکي موادو په اخيسـتو لګېږي. هغو چرګو چې اوس هګۍ. اچولي دي، دوی دې دغه هګۍ. ډېر ژر موږ ته وسپاري.))

سـره له دې چې ناپولن مخکې چرګو ته د قرباني. ورکولو خبر ورکړی و اما چرګو د دې اعلاميې تر وخته ددغه شـان قرباني. په عملي اړخ باور نه کېده. ټولو چرګو د دې قرارداد پر ضـد احتجاج اوازونه پورته کړل او د دوی د احتجاج دلايل دا وو: موږ اوس د پسـرلي د چرګوړو د را ايسـتلو په هګيو ناسـتې يو. هوا ډېره سـړه ده که چېرې تاسـو په دې سـړوکې زموږ نه هګۍ. واخلئ نو د سړو نه زموږ مرګ حتمي دی.))

مسـټر جونز د شـړلو راهيسـې د لومړي ځل لپاره په فارم کې ((بغاوت ته ورته)) پېښـه وشـوه. د دې بغاوت لارښـوونه درې چرګو کوله او د دوی په لارښوونه د فارم ټولو چرګو د ناپولن د اجباري غوښتنو د شنډولو لپاره بېخي نوی ميتود په کار واچوه. دوی د هګيو د اچولو مخکني ځايونه پرېښـودل اوس به د هګيو د اچولو لپاره پورته الوتنې او د لرګو دپاسـه به يې هګۍ. اچولې. دغه هګۍ. به کښـته راپرېوتلې او ټولې هګۍ. به د فرش له پاسـه ټوټې ټوټې کېدې. ناپولن هم د دوی پر ضـد کلک اقدام وکړ. ده سـمدلاسـه د ټولو چرګو ورځنۍ. خېره قطع کړه او فرمان يې صـادر کړ، که د فارم هر ځناور چرګو ته پټې دانې ورکړي، نو دغه ځناور ته به د مرګ سـزا ورکول کېږي. ناپولن د فارم ټولو سـپيو ه ماموريت ورکړ چې د هغه د امر د تعميل ټينګه څارنه وکړي. چرګو تر پنځه ورځو د لوږې مقاومت وکړ لاکن په شـبه ورځ يې د ناپولن حکم ته غاړه کېښـوده. دوی ټولې د هګيو د اچولو لپاره خپلو ځايونو ته ولاړې.

په دې اعتصــاب کې نهه چرګې د لوړې څخه مړې شــوې او د دوی مړي د فارم په باغچه کې ښخ شول. ډېر ژر د خوګانو او سپيو پروپاګنده شروع کړه چې دغه چرګې تيغکي وژلي دي. ويمپر ترپايه له دې اعتصاب خبر نه شو. د قرارداد ســـره ســـم په اوونۍ کې يو ځل فارم ته واګون راته او دلته د واګون چلوونکي ته څلور سوه هګۍ ورکول کېدې.

په ټوله موده کې هېڅا سنوبال په سترګو ونه ليد اما په دې ټوله موده کې پرله پسې داګونکوسې روانې وې چې هغه يا په فوکسرووډ او يا د پنخفيلډ په فارم کې پټ شــوی دی. اوس ناپولن دا هڅه کوله چې د ګاونډيو فارمونو ســـره روابط ښـــه کړي. د دې علت دا و چې لس کاله مخکې د فارم غوزان وهلی شـــوي وو او د دغو غوزانو چارتراش د فارم دننه کوټه کې پراته وو او ويمپر ناپولن ته مشـوره ورکړې وه چې دغه چار تراش يا په مسټر پلکنګيټن او يا په مسټر فريدرک خرڅ کړي. له ډېر مودې راهيسې دې دواړو وغوښت چې د ناپولن څخه چارتراش واخلي، اما په دغه ټوله موده کې ناپولن دغه فيصـــله نه شوه کولای چې دغه چارتراش په کوم يو خرڅ کړي. ناپولن تل زړه نا زړه و. کله چې به هغه تصـميم ونيو چې چارتراش په فريدرک خرڅ کړي، نو د ده په امر به فوراً دا پروپاګنده چالان شـوه چې سـنوبال په فوکسـووډ کې پټ شـوی دی او کله چې به هغه پلکنيګمنن ته نږدې شـو، نو بيا به دا پروپاګنده شـروع شوه چې سنوبال د پنجضيلډ په فارم کې اوسېږي.

يو ځل بيا د پسرلي په سر کې د سنوبال د خطر اعلان وشو. په ټول قوت دا پروپاګنده روانه شوه چې سـنوبال هره شـپه په تياره کې راځي او دلته هر ډول ورانکاري کوي. هغه د فارم غله پټوي، د شـيدو سـتلونه اړوي، هګۍ ماتوي، په کرل شـــويو تخمونو ګرځي او په خپلو داړو د فـارم د مېوه لرونکو ونو پو ستکي شکوي. په فارم کې چې به هره شی خراب شو، نو خوګانو او سپيو

به فوراً دې پروپاګنډې ته زور ورکړه چې دغه کار سنوبال خراب کړی دی. که د فارم کرګۍ به ماته شوه او یا به د اوبو لار بنده شوه، خوګانو او سپیو به ویل چې دغه کرګۍ سنوبال ماته کړې ده یا دغه لار سنوبال بنده کړې ده.

یوه ورځ د ګودام کلي ورکه شوه ټولو ځناورو عقیده دلوده چې دغه کلي سنوبال پټه کړې ده او په کوهي کې یې غورځولې ده، تر څو ورځو پورې دغه پروپاګنده روانه وه یوه ورځ دغه کلي د غلې د بوجۍ لاندې پیدا شوه. د کلي په پیداکېدو ټ.ل ځناور حیران شول او هر ځناور به د بل نه په پټه دا پوښتنه کوله. که د ګودام کلي سنوبال پټه کړې وه، نو بیا ولې د غلې د بوۍ لاندې پیدا شوه؟ بیا هم د سنوبال د خطر له غمه ټول ځناور دومره نارامه وو چې دوی به ټوله شپه په غوجلو کې په ارام خوب نه شو کولای یوه ورځ ټولو غواګانو دا اعلان وکړ: هره شپه سنوبال زموږ غوجل ته پټ راځي او موږ په خوب کې لوشي. په دغه ژمي کې د فارم مږو له حده زیات ورانی او خرابي کوله. دوی پسې ګونګوسې کېدې چې دغه مږې د سنوبال سره پټ ارتباط لري او د سنوبال په لمسون یې ورانې او خرابي ته ملا تړلې ده.

ناپولن د سنوبال د فعالیتونو د تحقیق فرمان صادر کړ او هغه د څو ورځو نه وروسته د خپلې کوټې نه راووت. د هغه اصلي ساتونکي د فارم سپي ترېنه چاپېره ځغلېدل او نور ځناور د احترام په توګه د هغه تر شاه د یو څو ګامونو په فاصله کې روان وو. هغه د فارم د ټولو ودانیو د دقیقې پلټنې دوره پیل کړه. څو قدمه وروسته به هغه ودرېده او د سنوبال د پښو د منډو د تعقیب لپاره به یې ځمکه څو ځله بوی کوله او هر ځل چې به هغه ځمکه بوی کړه فوراً به یې ویل: (( زه سنوبال د هغه د پښو د منډونو څخه معلوملای شم.)) هغه د ټولو ودانیو دننه ټول ګوټونه، لوی ګودام، د غواوو څپر، د چرګوکوټې او د ترکاریو ټول پټي بوی کړل. په کوم ځای کې چې به هغه خپل

شـــوندک کېښـــود د څو ځله بوی کولو وروســـته يې په جګ او چغنده اواز وويل: (( د ســنوبال د نوم په اورېدو به ټول ســپي وغړمبېدل او ټولو به خپلې تېرې دارې چينګې کړې.

اوس د سنوبال له نامه څخه ځناور ډارېدل. دوی دا فکر کاوه چې سنوبال په ځمکه او هوا کې خپور شوی دی. په سترګو نه ښکاري، خو هر وخت د فارم ځناورو ته تکليف ورکوي. د دې ورځې په ماښـــام ســـکيولر ځناورو ته د راټولېدو اعلان وکړ. ماښام ځناور راټول شول، سکيولر غوندې ته راغی، خو دا ځل د هغه د څېرې نه د يو خطر اثار څرګندېدل. هغه په عصـــبي لهجه ځناورو ته وويل:

((ملګرو! زه دلته راغلی يم چې تاســـو ته يو جدي راپور درکم. موږ يو ډېر خطرناک شی کشف کړی دی. دغه خطرناک شی دا دی چې غدار سنوبال خپل ځان د پنجفيلډ فارم په څښـــتن خرڅ کړی دی. غدار ســـنوبال او د دغه فارم څښـــتن غواړي چې زموږ په فارم حمله وکړي او فارم راڅخه په زور ونيسـي. زموږ د مستنده معلوماتو له مخې کله چې دغه حمله شـروع کېږي، غدار سنوبال به د يرغلګرو لارښوونه کوي.))

((ملګرو! موږ له دې خطرناکې دسيسې څخه زيات بل خطرناک شی کشف کړی دی. موږ او تاســـو فکر کاوه چې ګوندې د ســـنوبال بغاوت به د هغه د غرور او د شخصي قدرت د نيولو په نتيجه کې شوی وي. موږ او تاسو غلط فکر کاوه. ايا تاســـو پوهېږئ چې د دغه بغاوت اصـــلي علت څه و؟ د دغه بغاوت اصلي علت اوس موږ ته د هغه اسنادو څخه چې د سنوبال څخه پاتې شوي او موږ ته په لاس راغلي دي، ښځي روښانه شوې ده. د دغو اسنادو د مطالعې څخه دا واقعيت ښځي په ډاګه شـو چې غدار ســنوبال د شـروع نه د

جونز پټ جاسوس و. دغه اسناد د ډېرو نورو شیانو په باره کې هم موږ ته مفصل معلومات راکړي دي.))

((ملګرو! ایا موږ او تاسو په خپلو سترګو ونه لید چې دغه غدار د ((غواوو څېر)) په جګړه کې میدان پرېښود او وتښتېده؟ اوس له دغو اسنادو څخه ثابته شوه چې جونز هغه ته هدایت ورکړی و چې هغه دې له میدانه وتښتي او موږ ته دې ماتې راکړي. دغه غدار غوښتل چې موږ تباه او برباد کړي، خو له نېکه مرغه د هغه کوښښونه کامیاب نه شول.))

د سکیولر د دې خبرې په اورېدو چې سنوبال د جونز جاسوس و، ټول څناور هک پک شول. د څناورو په نظر که رښتیا سنوبال د جونز جاسوس وي، نو بیا خو د ژرندې د رنګېدو په تناسب دا د هغه ډېر لوی جرم دی، ټولو څناورو سرونه وځندل، یو بل ته یې وکتل او د ډېرو څناورو باور نه کېده چې سنوبال به دومره ټیټ شخصیت وي. ډېرو څناورو ته په زړه شو او څینو څناورو فکر کاوه چې هغوی ته یاد دي چې ((د غواوو څېر)) په جګړه کې سنوبال د ټولو څناورو نه مخکې په یرغلګرو انسانانو حمله وکړه او تر هرې حملې وروسته به یې څناور راټولول او بلې حملې ته به یې تشویقول. ټولو څناورو په خپلو سترګو لیده چې جونز هغه زخمي کړ، خو بیا هم هغه خپلو حملو ته دوام ورکاوه. څناورو د سنوبال د جاسوسۍ خبره نه شوه منلای.

بوکسر چې په غونډه کې به یې هېڅ پوښتنې نه کولې هغه هم د دې نوي کشف په اورېدو حیران شو. هغه پرېوت، سترګې یې پټې کړې او د ډېر کوښښ وروسته یې خپل تیت فکر راټول کړ، هغه سکیولر ته وویل:

((زه خو په دې هېڅ باور نه کوم چې سنوبال دې د جونز جاسوس وي. ما په خپلو سترګو لیده چې هغه د ((غواوو څېر)) په جګړه کې په پوره زړورتیا

جنګېده. ایا تر دغې جګړې وروسته موږ ټولو هغه ته ((د ځناورو قهرمان لومړۍ درجه نښان)) ور نه کړ؟))

((ملګرو! ((سکیولر جواب ورکړ.)) سنوبال ته د دغه نښان ورکول زموږ لویه تېروتنه وه، هغه پټ اسناد چې زموږ لاس ته راغلي دي په دې اسنادوکې هر څه واضح لیکل شوي دي. د دې اسنادو له مخې اوس دا حقیقت ښځي څرګند شوی دی چې سنوبال تل زیار ویست چې موږ د تباهۍ تر حده وغولوي.))

((خو سنوبال په دغه جګړه کې زخمي شو، سره له دې چې د هغه د وجود نه وینې بهیدې خو ترپایه یې جګړې ته دوام ورکړ.)) بوکسر وویل:

((دغه زخمي کول د جونز او سنوبال ترمنځ د پټې دسیسې یوه برخه وه.)) سکیولر په چیغه خپله وینا داسې پیل کړه:

(( ملګرو! زه درته په ټولو مسایلو رڼا نه شم اچولای، ځکه چې له یوې خوا موږ ته ((د ستر لاربښود ملګري ناپولن)) له خوا اجازه نه شته چې په داسې عمومي غونډوکې دې د دغه شان مهمو اسنادو اسرار ووایو او له بلې خوا تاسو دغه شان مهم اسناد هم نه شئ لوستلای. لکه چې مخکې مې درته وویل چې د جونز ډز او د سنوبال زخمي کول د دسیسې یوه مهمه برخه وه. دغه ډز د سنوبال د تېښتې لپاره یوه اشاره وه. جونز غوښتل چې جاسوس سر سري زخمي کړي، هغه وتښتي او میدان دښمن ته پرېږدي. ایا هغه په دغه حساسه مرحله کې ونه تښتېد او میدان یې دښمن ته پرې نه ښود؟ نږدې وه چې دغه غدار جاسوس په خپل شوم پلان کې کامیاب شي، خو زموږ ستر لاربښود ملګری ناپولن د هغه دغه شوم پلان شنډ کړ. ایا تاسو ته یاد نه دي کله چې جونز سره د نوکرانو غولي ته راننوت هم په دغه حساسه مرحله کې

ناڅاپه سنوبال د جنګ میدان پرېښود او نور څناور هم ورپسې وتښتېدل؟ ایا تاسو ته په زړه نه دي چې دغې تېښتې په څناورو کې څومره ګډوډي او ډار پیداکړ؟ ایا موږ داسې فکر نه کاوه چې ګوندې موږ جنګ وبایله او ماتې مو خوړلې ده؟ ایا تاسو په خپلو سترګو و نه لید چې په دغه حساسه مرحله کې زموږ زړور ملګري ناپولن ناڅاپه میدان ته راودانګل او د جونز په پنډیو یې داړې ورټینګې کړې؟ ایا تاسو وانه ورېدل چې په دغه جګړه کې یوازې ملګري ناپولن (( مرګ په انسانیت)) شعار پورته کړ؟ زه پوره باور لرم چې تاسو ملګرو ته به دغه هر څه یاد وي.))

له عادت سره سم سکیولر د وینا په دوران کې یوه او بله خوا ټوپونه وهل او لکۍ یې تاووله راتاووله. کله چې هغه د خپلې حافظې په قوت د جنګ صحنه ترسم کړه، نو څناورو ته په زړه شوه چې واقعاً سنوبال د جنګ په ډېره حساسه مرحله کې میدان پرېښود او وتښتېد. بیا هم د بوکسر باور نه راته، هغه وویل:

(( زه په دې عقیده نه لرم چې سنوبال په شروع کې جاسوس یا غدار و، کېدی شي چې (( د انقلاب)) نه وروسته په هغه کې بدلون راغلی وي. زه اوس هم عقیده لرم چې ((د غواو څپر)) په جګړه کې هغه زموږ ډېر ښه ملګری و.))

((ملګرو! دا زموږ د ستر لارښود ملګري ناپولن قاطع امر دی چې سنوبال د شروع نه د جونز جاسوس و. زموږ ((په انقلاب)) لا فکر نه و شوی چې دغه غدار جونز ته جاسوسي کوله.)) سکیولر دغه جملې په کرار اما په ټینګه لهجه څو ځله تکرار کړې.

((واه! دا نو ښېخي نوې خبره ده: که دغه د ملګري ناپولن امر وي، نو بيا خو حتماً رښتيا خبره ده.)) بوکسر وويل:

((ملګرو! واقعي روحيه هم دا شــان وي، څه چې موږ ته ســتر لارښــود امر کوي بايد هغم هغه شــان اطاعت وکړو.)) ټولو څناورو وليد چې ســکيولر په خپلو تنګو او رپنده ســترګو بوکسر ته بد بد کتل. يوه شېبه وروسته سکيولر روان شــو، د يو څو قدمونو وروســته ودرېد، بېرته يې مخ راوګرځاوه او د يو قومندان په لهجه يې څناور مخاطب کړل:

((زه تاسـو ټولو څناورو ته اخطار درکوم چې تر دې وروســته دې د فارم ټول څناور خپلې ســترګې او غوږونه خلاص وســاتي. موږ پوره اسـناد لرو چې په دې وختونوکې د سنوبال پټ جاسوسان زموږ په صفونوکې رانتوتي دي. په موږکې پټ شـــوي دي او هغوی د غدار او جاســـوس ســـنوبال په ګټه کار کوي.))

څلور ورځې وروســـته ناپولن امر وکړ چې د فارم ټول څناور دې د هغه د اوسـېدو دکور په غولي کې راټول شـي. تر غرمې وروسـته ټول څناور راټول شـــول. ناپولن له کوټې څخه راووت. هغه دواړه مډالونه ((د څناورو قهرمان لومړۍ درجه نښــان)) او (( د څناورو قهرمان دويمه درجه نښــان)) ځړولي وو. دغه دواړه مډالونه هغه په خپله خپل ځان ته ورکړي وو. نهه لويو سپيو د ده چاپېره دانګونه وهل او ټول داســـې خطرناکه غړمبېدل چې ټول څناور يې وډار کړل. د نـاپولن د بـدغوني او د ســـپيو د غړمبېدو نـه څنـاورو د يوې خطرناکې پېښې احساس وکړ.

ناپولن راغی او د څناورو مخامخ بدغونی ودرېد او ټولو څناور يې سرسـري له نظره تېر کړل. تر دې وروســـته په ډېر جګ اواز وســـونګېد. د ده د

سونګېدو به اورېدو سپیو ناڅاپه منده کړه دوی مخامخ ولاړ څلور خوګان یې د غوړونو څخه ونیول، خوګانو له درد او ډار څخه په کوړنجار شروع وکړه. سپیو دوی په راکښلو د ناپولن پښو ته راوستل، د خوګانو د غوړونو څخه وینې بهیدې او سپیو څټلې. سپیو د وینو څټلو څخه دومره خوند اخیست، نږدې و چې د خوند نه لېوني شي. له دغو سپیو څخه درې سپیو په بوکسر ورودانګل او د سپیو په دغه حرکت ولاړ څناور هم حیران شول. کله چې بوکسر ولیدچې درې سپي د ده پر لور راځغلي، هغه ډېر ژر د ښي پښې لوی سوم پورته کړ او په هوا یې یو سپی په سوم وواهه، سپی یې پر ځمکه راګوزار کړ او له پاسه یې ورباندې سوم ټینګ کړ. سپي د لاندې څخه کوړنجار شروع کړ او دوه نورو سپیو لکۍ په پنډیو کې ورننه ایستلې او په یو تراټ وتښتېدل. بوکسر ناپولن ته وکتل. د ده د کتلو مقصد دا و چې دغه سپی د سوم لاندې مړ کړ یاوکه پرې یې ږدي. د ناپولن غونی لاپسې خراب شو هغه په سخته لهجه بوکسر ته د سپي د پرېښودو امر وکړ. بوکسر د سپي نه سوم پورته کړ. زخمي سپی په کوړنجار ګوډ ګوډ روان شو.

تر څو شېبو وروسته شور او ځوږ غلی شو. له ډاره رېږدېدونکي خوګان ولاړ وو او د هغوی د جرم سزا د هغوی په تندیو لیکل شوې معلومېدله. کله چې ناپولن د یکشنبې غونډې له منځه یوړې، دې څلور واړه خوګانو د هغه د فیصلې پر ضد احتجاج وکړ. ناپولن څلور واړه خوګانو ته د غونډې پر وړاندې د خپلو جرمونو د اعتراف امر وکړ. رېږدېدونکو خوګانو خپل اعتراف داسې پیل کړ:

(( موږ د سنوبال پټ جاسوسان یو. موږ د هغه سره پټ ارتباط لرو. موږ د هغه سره یوځای ژرنده ړنګه کړې ده. موږ او سنوبال موافقه کړې وه چې د څناورو فارم فریدرک ته حواله کړو. موږ ته سنوبال اعتراف وکړ چې هغه د

شروع نه د جونز پټ جاسوس دی.)) کله چې دوی اعتراف پای ته ورساوه، سپيو له مريو ونيول او د سترګو په رپ کې يې ورمېږونه ور مات کړل.

((ستاسو څخه نور څناور اعتراف کوي او که؟)) ناپولن په خطرناکه او قهرجن اواز چيغه کړه. د دې اواز په اورېدو هغو درې چرګو کومو چې د هګيو د خرڅلاو پر ضـــد بغاوت کې مشـــرتوب او پارونه کوله مخې ته راغلې او ((په خپله خوښه)) يې اعتراف وکړ:

((موږ ته ســـنوبال په خوب کې راغی. هغه موږ ولمســـولو چې د ناپولن د امر مخالفت او د هغه پر ضـــــد بغاوت وکړو.)) دوی هم د خوګانو په لاړ ولېږل شـوې. بيا يوه بته رامخې ته شـوه او په خپل اعتراف کې يې وويل: (( تېر کال د لو پر وخت زه ســـنوبال وغولولم. ما د هغه په لمســـون د غنمو شــپږ ورږي پټ کړل او دغه ورږي مې د شپې پټ وخوړل.))

بيا يوه مېږه رامخکې شوه او هغې وويل:

(( ما د سنوبال په لمسون د څښاک د اوبو په ډنډ کې متيازې کړي دي.))

تر دې وروســـته دوه نورې مېږې مخې ته راغلې او هغوی په خپل اعتراف کې وويل:

((موږ د ســـــنوبال په لمســـــون ملګري ناپولن ډېر نږدې ملګری يو زوړ مږ وژلی دی. دغه مږ ريزش کړی و. هغه غوښتل چې په موږ سـپور شي اما موږ دواړه ورځنې تښـــتېدلو. موږ د يو لوی اور چاپېره څغلېدو او هغه راپســـې منډې وهلې. دغه زوړ مږ وټوخېد او د ټوخي ســـــره پر ځمکه راپرېوت او ځای پر ځای مړ شو.))

((د خپلې خوښې د اعتراف)) څخه وروسته دغه ټول څناور ووژل شول او د ((اعتراف)) او وژنې لړۍ تر هغې روانه وه چې د ناپولن د پښـــو مخې ته د مړو ډېرۍ ودرېدله او په هواکې د مړو د وينې بوی خپور شـــو. د جونز تر شړلو وروسته دا لومړی ځل و چې په فارم کې د څناورو په پوزو د وينې بوی ولګېد.

کله چې د ((اعتراف)) او مرګ سـلسـله پای ته ورسـېده خوګان او سـپي د قهرمانانو غوندې ودرېدل اما نور ټول څناور له دغه ځاي غلي روان شـــول. ټول له ډاره رېږدېدل او د دې صــحنې د ليدو له امله د دوی حالت ډېر خراب و. دوی په دې نه پوهېدل چې ايا د سنوبال او د سنوبال سره د ارتباط غداري دوی ته لويه صــدمه ورسـوله اوکه دغه ظالمانه مرګ ژوبلې؟ ډېرو څناورو د جونز په دوره‌کې د دغه شــان وژلو او وينو تويولو صــحنې ليدلې وې لاکن څناورو ته څکه لويه صدمه ورسېدله چې دغه وژل او د وينې تويول د انسانانو پر ځای اوس په خپله څناورو وکړه. تر هغې ورځې چې جونز فارم پرېښود تر دې ورځې پورې يو څناور بل څناور نه و وژلی.

ټول څناور په ډله د فارم غونډۍ ته ولاړل. دلته نيمه جوړه ژرنده ولاړه وه، د دې ژرندې نږدې ټول څناور يو بل ته داســې جوخت پرېوتل لکه چې له ډاره يخنی اخيستې څناور يو بل ته د نږدې او جوخت پرېوتلو په وجه ځانونه ګرموي. دلته کلوور، موريل، بنجامين، غواګانې، مېږې، بتې، چرګې او نور ټول څناور راټول شـــول. په دې څناوروکې يوازې مږې په نظر نه راتللې. د دې علت دا و، کله چې ناپولن څناورو ته د راټولېدو امر وکړ د دې امر په اورېدو د فارم ټولې مږې په ســـورو ورننوتلې او تر پايه يې ځانونه غيب کړل. تر يو وخته پورې د راټولو شـــويو څناورو څخه يو څناور هم خبرې نه کولې. يوازې بوکسـر ولاړ و او اخوا دېخوا يې ډېر نارامه قدم واهه. په شـرک به يې

خپله توره اوږده لکۍ په يو او بل ډوډي وهله او کله کله به يې له ډېرې حيرانتيا په وجه د خولې نه شـــنار هم ووت. حيران بوکســـر څو ځله ســـر وښوراوه او په پای کې يې وويل:

(( زه پرې هېڅ پوه نه شـــوم! ما هېڅ نه منل چې زموږ په فارم کې دې داســـې شـيان پېښ شـي. دا به خامخا زموږ د غلطيو او تېروتنو نتيجه وي. زه يو حل لرم او هغه دا چې (( موږ بايد لاپســـې ســـخت کار وکړو.)) له نن څخه به زه هر سهار يو ساعت مخکې راپاڅېږم.))

تر دې وروسته بوکسر په يو تراټ د تيږو کان ته ولاړ. تيږې يې راټولې کړې. له دې تيږو نه يې دوه بارونه جوړ کړل او د ماښـــام د تيارې ترمخه يې دغه دواړه بارونه د يو بل پسې ژرندې ته راکښل.

کلوور ته نږدې څناور چوپ چاپ پراته وو او د غونډۍ له ســـر نه يې خواو شا سيمې او ((د څناورو فارم)) دننه تر لوی سړک پورې اوږد پروت مالځړ د وښـــو پټي، د غوزانو ونې، د څښـاک د اوبو ډنډ په ايوه شـويو پټيو کې نوي راټوکېدلې شـــنه اوګنې غنم او د فارم د ودانيو تک ســـره بامونه چې د دوو د کښـــونو څخه يې لکه د مار تاو راتاو تور لوګي وتل، ليدل. دا د پســـرلي د ماښـــام يوه زړه راکښـــوونکې منظره وه. په دې وخت کې د ډوبېدونکي لمر طلايي وړانګو د فارم شـــينيلي او بوټو ته تک ســـور طلايي رنګ ورکړی و. څناورو له دې ښکلې منظرې څخه خوند اخيست او هر څناور ((خپل فارم)) ته په حيرانتيا کتل. دلته هر څناور دا فکر کاوه چې دغه فارم د ده ((خپل فارم)) دی او د دې فارم هره لوېشته ځمکه يې خپله ده.

کله چې کلوور کښته د غونډۍ لمنو، فارم ته او د فارم خواوشا سيمې ته وکتل د هغې ســـترګې د اوښـــکو څخه ډکې شـوې. مغزو ته يې تېر يادونه څپې څپې

راغلل. په چورت کې ډوبه ولاړه او له ځان سره یې داسې فکرونه وهل پیل کړل:

((کله چې موږ د انسانانو د نژاد د راغورځولو او د له منځه وړلو لپاره هلې ځلې شروع کړې، له دغو هلو ځلو څخه زموږ هدف خو دا خونړۍ صحنې، ډار او قتل عام نه و! کله چې زوړ میجر په لومړنۍ شپه په راتلونکي ((انقلاب)) خبرې کولې هغه خو موږ ته د ځناورو راتلونکې ټولنه داسې ترسیم کړه چې په دغه ټولنه کې ټول ځناور به د لوږې وهلو او وژلو څخه ازاد وي! ټول ځناور به مساوي وي! هر ځناور به د خپل استعداد سره سم کار کوي او د کار په مقابل کې به ډېره ځیره اخلي. زورور به کمزوري داسې ساتي لکه ما چې د میجر د وینا په شپه د بتو بچي ساتل. زه نه پوهېږم چې په موږ ولې دا بدې ورځې راغلې؟ اوس یو ځناور هم د خپل نظر د څرګندولو جرات نه لري! اوس دغه خطرناک او غړمبېدونکي سپي هر ځای چکرې وهي! دغه وحشي سپي زموږ په ملګرو په وچ زور او وحشت ((اعتراف)) کوي او د ((اعتراف)) څخه وروسته یې زموږ پر وړاندې ټوټې ټوټې کوي! موږ ورته په رڼو سترګو ګورو اما له ډاره هېڅ نه شو ویلای! موږ د ناپولن مشرتوب منو، خو بیا هم ما او زما ملګرو د ناپولن څخه د دغه خونړي قتل عام توقع نه درلوده! موږ خو د دې بدې ورځې لپاره د ((انقلاب)) راوستل نه غوښت! موږ خو د دې بدې ورځې په خاطر ځانونه د جونز د ټوپک په ګولیو وژل نه غوښت! موږ خو د دې بدې ورځې لپاره بادي ژرنده نه جوړوله!))

کلوور چې د خپلو احساساتو د څرګندولو لپاره مناسب الفاظ پیدا نه کړلای شول، نو هغې (( د انګلستان ځناورو)) ترانه شروع کړه او نورو ځناورو هم ورسره په ترانه ویلو پیل وکړ. دوی ترانه پرله پسې درې ځل تکرار کړه. دا

ځل ترانه په دومره غمجنه لهجه په خوند وویل شــوه چې د دې ترمخه دغه ترانه دومره غمجنه او خوندوره نه وه ویل شــوې، دوی د ترانې درېیم تکرار ایله ختم کړی و چې ســکیولر او دوه ســپي د فارم غونډې ته راورسېدل او سکیولر د راتګ سره وویل:

(( زه تاســو ته د یو مهم شــي د اعلان لپاره دلته راغلی یم. زموږ ((د ســتر لاربنود ملګري)) ناپولن په امر (( د انګلستان ځناورو ترانه له منځه ولاړه او د نن ورځې نه د دې ترانې ویل منع شــول. د ملګري ناپولن په امر که له نن څخه وروســته د فارم هر ځناور د دې ترانې د ویلو په جرم ونیول شــو، نو دغه ځناور به د ډېر سختې سزا سره مخامخ شي.))

د ســکیولر د اعلان په اورېدو ټول ځناور هک پک شــول. ((ولې؟)) موریل چیغه کړه.

((ملګرو! (( د انګلســتان ځناورو)) ترانه د ((انقلاب)) لپاره ترانه وه. موږ دغه ((انقلاب)) کړی دی او اوس زموږ ((انقلاب)) یو بشــپړ تکاملي پړاو ته رسېدلی دی. نن غرمه تاسو په خپلو سترګو ولیدل چې زموږ ((ستر لاربنود ملګري)) ناپولن ټولو خارجي جاسوسانو او د فارم دښمنانو ته ماتې ورکړه. ستاســو په مخکې دغو غدارانو ((په خپله خوښــه)) په خپلو جرمونو اعتراف وکړ. او هر غدار ته د مرګ ســزا ورکړل شــوه. د غدارانو اعدام زموږ د ((مشــرتابه)) له خوا د تصــفیې وروســتنی عمل دی او اوس زموږ فارم د جاسوسانو او دښمنانو د چټل وجود څخه بېخي پاک شوی دی.))

((ملګرو! تاسو ته څرګنده ده چې موږ ((د انګلستان ځناورو)) په ترانه‌کې د یوې هوســا ټولنې هیله‌کوله. اوس دغه هوســا ټولنه جوړه شــوې ده او تر دې وروسته موږ دې زړې ترانې ته هېڅ اړتیا نه لرو.))

تر غرمې وروســـته د خونړۍ صـــحنې په ليدو ټول ځناور ډارېدلي وو. خو د دې اعلان په اورېدو ځناور راوپارېدل او هغوی غوبنـــتل چې بیا د احتجاج اواز پورته کړي. مېږې پوه شوې او هغوی ډېر ژر ((څلور بولي ښه دي او که دوه بولي خراب)) په رمباړو شـروع وکړه. تر څو دقیقو پورې رمباړې روانې وې او دې رمباړو بحث ته هم خاتمه ورکړه.

تر دې اعلان وروسته ((د انګلستان ځناورو)) ترانه بېخي وانه ورېدل شوه. د دې ترانې پر ځای یو خوګ شـــاعر چې مینیموس Minimus نومېده یوه بله ترانه جوړه کړه. دا ترانه داسې شروع کېده:

د ځناورو فارمه ! د ځناورو فارمه!

ته به زما له خوا هېڅکله زیان ونه وینې!

د بیرغ تر پورته کېدو وروسـته دا ترانه د هرې یکشـنبې په سـهار یو ځل وید کېده اما ډېر ژر ټولو ځناورو ته څرګنده شوه چې د دې ترانې الفاظ او تال (( د انګلستان ځناورو)) د ترانې غوندې خوندور نه وو.

# اتم څپرکی

کله چې د اعدامونو ډار لږ سوړ غوندې شو، څو ورځې وروسته شبږم حکم چې ((هېڅ څناور به بل څناور نه وژني.)) څینو څناورو ته یاد شو او یا دوی فکر کاوه چې دوی ته یاد دی، یو څناور هم د خوګانو او سپیو په مخکې د دې خبرې جرات نه کاوه خو هر څناور دا احساس کاوه چې د فارم دننه اعدامونه د شپږم احکم پر ضد عمل و.

((بنجامینه! لطفاً شپږم حکم راته ولوله ((کلوور ترېنه خواهش وکړ.

((زه نه غواړم چې په داسې مسایلو کې ګوتې ووهم.)) بنجامین د خپل زوړ عادت سره سم د شپږم حکم د لوست څخه انکار وکړ. کلوور ژر ولاړه او موریل یې راوستله. موریل ورته دغه حکم ولوست. شپږم حکم داسې وو ((هېڅ څناور به بل څناور نه وژني، خو بې له علته. وروستنۍ برخه د څناورو له حافظې څخه وتلې وه. د شپږم حکم په لوست د څناورو پوره باور راغی چې ناپولن دغه حکم نه دی مات کړی، بلکې هغه غداران چې د سنوبال په دسیسه کې شریک وو د دوی د اعدام لپاره ((علت)) موجود و.

د تېر کال په مقایسه څناورو په ټول روان کال کې لاپسې سخت کار وکړ. دا ځل د ژرندې یو په دوه پلن دېوالونه پورته کول او په ټاکلي وخت ژرنده سرته رسول، بېخي ګران کار و. د کار په دوران کې به څناورو فکر کاوه چې اوس دوی ډېر کار کوي. اما د جونز د ورځو نه هم خراب خوراک ورته ورکول کېږي، سکیولر به د هرې یکشنبې په سهار د کاغذ یوه اوږده ټوټه د پښې په پنجې کې نیولې وه او د څناورو غوندې ته به یې د ډېر تولید د ارقامو لیست لوسته. ده به کوښښ کاوه چې غونډې ته د ارقامو څخه اثبات کړي چې د

جونز د دورې په تناسب د فارم د هر ډول خوراکي خوادو تولید په سلوکې دوه سوه یا درې سوه یا پنځه سوه اضافه شوی دی. څناورو هم د سکیولر په ارقامو باندې د شک کولو لپاره هیڅ دلیل نه درلود،ځکه چې (( د بغاوت)) نه مخکې شرایط د څناورو څخه بېخي هېر شوي وو. په دې هم نه پوهېدل چې په فارم کې څومره خوراکي مواد تولیدېدل؟ ځینو څناورو تش په دې امید ژوند کاوه چې ګوندې په راتلونکې کې به د دوی خوراک څه ناڅه ښه شي!

اوس د ناپولن ټول امرونه د سکیولر اوکله کله د نورو خوګانو پواسط اعلانېدل. د څناورو تر اعدام ن وروسته تر پنځلس ورځو پورې ناپولن ښکاره نه شو. پوره پنځلس ورځې وروسته هغه د فارم د مېنې څخه راووت او د راوتلو پر وخت ټولو څناورو په خپلو سترګو ولید چې نهه سپي د هغه چاپېره ځغلي او یو تور چرګ یې په مخکې په مارش روان دی او دناپولن د ترومچي دنده اجراکوي. کله چې به د څناورو په غونډوکې دې تور چرګ اذان وکړ، نو د دې پسې سمدلاسه ناپولن به وینا پیل کوله.

د څناورو په منځ کې داګونګسی هم روان و چې د څناورو د اعدام د ورځې راهیسې ناپولن د نورو څناورو څخه جلا شوی دی، اوس هغه په یوه کوټه کې بېخي ځانله اوسېږي. یوازې ډوډۍ خوري، دګرد نر په لوښوکې ورته سالون ته ډوډۍ راوړل کېږي او ډوډۍ د خوراک په وخت کې یې تل دوه سپي ساتنه کوي.

سکیولر د یکشنبې د سهار په غونډه کې وویل:

((ملګرو! د خوګانو د مخصوصې کمېټې په وړاندیز او د ستر لاربنود مګلري ناپولن په منظورۍ لاندینۍ پرېکړې تاسو ته اعلانېږي:

اول: تر دې وروسته به د ستر لاربښود ملګري ناپولن د زېږېدنې مبارکه ورځ د فارم د ټوپک په ډزو نمانځل کېږي.

دويم: د دې فارم هر ځناور مکلف دی چې د ناپولن له نوم سره د هغه ټول رسمي القاب ((زموږ ستر لاربښود ملګرى ناپولن حتماً واخلي. د القابو پرته ((د ستر لاربښود ملګري ناپولن)) نوم اخيستل د دغه ((ستر مقام)) توهين دی. زموږ ((د ستر شخصيت سپکاوی غداري ده او هر يو ځناور چې دغه غداري وکړي هغه به د يو غدار په صفت محاکمه کېږي او د فارم سپي به دغه غدار ته د مرګ سزا ورکوي.))

پر دې القابو سربېره خوګانو ناپولن ((د ټولو ځناورو پلار)) د انسانيت پر ضد لوی غضب، د مېږو د شپول ساتندوی، د بتو د بچو زړه سواندی ملګری)) داسې په نورو درندو القابو نمانځه، سکيولر به د هرې وينا په شروع کې ويل:

((زموږ ستر لاربښود ملګري ناپولن د نړۍ د ټولو ځناورو څخه ډېر هوشيار او زړه سواندی شخصيت دی. زموږ ستر لاربښود ملګری ناپولن د نړۍ د ټولو ځناورو سره او مخصوصاً د هغو ځناورو سره چې تراوسه د انسانانو په فارمونو کې د ناپوهۍ او غلامۍ ژوند تېروي، له حده زياته مينه لري.))

کله چې سکيولر به په خپله ويناکې د ناپولن هوښيارتيا، زړه سواندۍ او له مينې ډک زړه ته اشاره کوله، نو لومړی به د ده سترګې د اوښکو څخه ډکې شوې او بيا به يې په مخ رنې اوښکې راروانې شوې.

اوس د ځناورو د فارم د ټولو بریالیتوبونو، نېکمرغیو ســـرلوړیو او نمانځلو افتخار یوازې د ناپولن امتیاز وګڼل شـــو. د مثال په توګه که یوې چرګې به د بلې چرګې سره خبرې کولې، هغې په خبرې داسې شروع کولې:

(( ما د ستر لارښود ملګري ناپولن د مبارک مشرتابه په برکت په تېرو شپږو ورځو کې پنځه غتې هګۍ واچولې...))

که دوه غواوې به د اوبو د ډنډ پر غاړه ولاړې وې د اوبو د څښــلو نه مخکې به یوې غوا بلې ته ویل: ((د ستر لارښود ملګري ناپولن د مبارک مشرتابه په برکت اوس د څښلو اوبه ډېرې خوندورې شوې دي...))

شـــاعر خوګ میمنوس د ((ملګري ناپولن)) په نوم شـــعر کې د فارم د ټولو ځناورو او مخصـوصـاً د خوګانو احسـاسـات ډېر ښـه څرګند کړي دي. شـعر دادی:

نو روح مې سره لمبه شي

او ستا روښنايي ځلېدونکې سترګې

د لمر په څېر په شنه اسمان کې برېښي

ای ناپولن ملګری!

---

یوازنی ښېوونکی

د هغو ټولو نعمتونو چې ستا مخلوق یې غواړي

ته مړوې د ځناورو خېټې

په ورځ کې دوه دوه ځلې

تا ځناورو ته پاک بوس ورکړي

او دوی هم رغړي او رارغړي باندې

لوی که وړوکي دي دا ټول ځناور

خپلو غوجلو کې ارام ویدېږي

ته یې ساتنه او پالنه کوې

ای ناپولن ملګری

---

که مورې خوګانو وي رښتیا مور شیدې رودلې

مخکې له دې چې لوی شو

یا ستا په سیوري کې بوتلو غوندې وپړسېږو

مورې به تر هر څه پخوا ستا لپاره

درس د اخلاص او د وفا زده کوو

بلې! هر خوګ د زېږېدنې پر وخت

باید په زوره غږ کړي

ای ناپولن ملګری!

---

ناپولن د دې شـــعر منظوري ورکړه او د ده په امر دا شـــعر د لوی ګودام په دېوال د اوه احکامو مخامخ په لویو ټکو ولیکل شـو. سـکیولر په سـپین رنګ د ناپولن د نیم مخ لوی عکس رسـم کړ او دغه عکس هم د دې شعر له پاسـه وځړېد.

په دې موده کې ناپولن د ویمپر پواسطه د فریدرک او پلکینګټن سره په پېچلو خبرو اترو بوخت و. تراوســه د چارتراش لرګي نه وو خرڅ شــوي او د دې دواړو څخه فریدرک د دې د لرګو د اخیسـتو ډېر لېواله ښـکاره کېده. هغه د لرګو معقول قیمت نه ورکاوه، بلکې دغه لرګي یې ډېر په ارزانه بیه غوښـــتل. په دې وخت کې خوګانو او سـپیو بیا نوی ګونګسی خپور کړ چې فریدرک او د هغه نوکران غواړي چې د څناورو فارم بـانـدې یرغـل وکړي. د ژرنې بیا جوړېدو هغه په قهر کړی دی. دا څل غواړي د فارم ژرنده بېخي ورانه کړي. غدار سنوبال تراوسه د پنجفیلډ دننه پټ ګرځي راګرځي.

د دوبي په مینځ کې څناورو د دې خبر په اورېدو چې د ســـنوبال په لمســـون درې چرګو د ناپولن د قتل دسیسه کړې ده، حیران شول. د خوګانو او سپیو د وینا له مخې دغو چرګو ((په خپله خوښـــه)) د ناپولن د قتل د دســـیســـې ((اعتراف)) نه وروسـته سـم له لاسـه اعدام شـوې. د دې دسیسـې ترکشـف وروســته د ناپولن د حفاظت احتیاطي تدابیر لاپســې ټینګ شــول. د خوګانو مخصوصې کمېټې څلورو سپیو ته امر وکړ چې ټوله شپه دې د کوټې په څلورو ګوټونو کې ویښ کېني او ټوله شـــپه دې د ناپولن کلک حفاظت وکړي. همدا شان د دښمنانو له خوا ناپولن ته په ډوډۍ کې د زهرو ورکولو ډار بېخي زیات شـــو. د زهرو د ورکولو د مخنیوي په خاطر ناپولن بل اعتمادي خوګ پینکې ته وظیفه ورکړه چې د خوړلو نه مخکې دې د هغه ټول خوراکي شـیان معاینه او وڅکي.

د یوې یکشنبې د سهار په غونډه کې سکیولر وویل:

((ملګرو! زموږ ستر لارښود ملګري ناپولن تصمیم نیولی دی چې د فارم چارتراش په مستر پلکنیګتن خرڅ کړي او غواړي چې د څناورو فارم او ((فاکسووډ فارم)) ترمنځ د ځینو تولیدي شیانو د تبادلې تړون لاسلیک کړي.))

((ملګرو! تاسو ته څرګنده ده چې زموږ مشرتابه او پلکینګتن تراوسه یو بل نه دي لیدلي، زموږ د فارم او فوکسووډ فارم ترمنځ خبرې غیر مستقیم د مستر ویمپر پواسطه رواني دي، خو بیا هم زموږ د ستر لارښود ملګري ناپولن او مستر پلیکنګتن ترمنځ روابط ډېر صمیمانه دي. زموږ ستر لارښود ملګری ناپولن په دې واقعیت ښه پوهېږي چې پلکینګتن یو انسان دی او تاسو د انسان په حیث د هغه نه نفرت کوئ. زموږ مشرتابه امر کړی دی چې تاسو د ده پر ځای فریدرک د ډېر ډار او کرکې وړ شخص وګڼئ او د دغو دواړو ترمنځ د ښه او بد انسان فرق ته حتماً قایله شئ.))

د دوبي په وروستیو شپو ورځو کې د بادي ژرندې سرته رسېدل نږدې شو. هم په دې موده کې په فارم باندې د یوې ناڅاپي حملې ګونګسی لاپسې زیات شو. د یکشنبې په سهار سکیولر غونډې ته وویل:

((ملګرو! غدار فریدرک غواړي چې د شلو وسلوالو نوکرانو سره زموږ په فارم ناڅاپي حمله وکړي. د دې مقصد په خاطر هغه د دې سیمې قاضیانو او پولیسو ته رشوت هم ورکړی دی. قاضیانو او پولیسو ورته پوره ډاډ ورکړی دی که چېرې دغه یرغلګر ((د څناورو فارم)) باندې حمله کوي او زموږ فارم په وچ زور نیسي، دوی به ورته هېڅ نه وایي.))

**ملګرو! ظالم فریدرک په پنجفیلډ فارم کې زموږ په ورونو ځناورو له حده زیات ظلمونه کوي. د دې ظالم یو زیارکښ زوږ اس د غمچینو لاندې مړ کړ.))**

**دې ظالم په زیارکښو غواو خواړه بندکړل او ډېرې غواوې یې له لوږې مړې کړې!**

**دې ظالم یو زیارکښ ســــپی ژوندی تنور ته وغورځاوه او زموږ دغه ورور یې په سور تنور کې وریت کړ.**

**دا ظالم هر ماښــــام د زیارکښــــو چرګانو په ککروکې تېرې چړې تړي او په جنګ یې اچوي. زموږ د ورونو د چرګانو د ســــرونو څخه وینې بهېږي او دا ظالم له دغو وینو د تویېدو څخه خوند اخلي.))**

**کله چې ځناورو د پنجفیلډ فارم په ورونو ځناورو باندې د ظلمونو کیســــې واورېدې، له ډېره قهره د دوی وینو جوش وکړ. غالمغال یې جوړ کړ او ټولو په یوه اواز وویل:**

**((موږ له دغه فارم څخه ظالم انسان شړل غواړو!**

**موږ د ســــتر لاربښــــود ملګري ناپولن څخه په پنجفیلډ فارم د حملې اجازه غواړو!**

**په وړاندې– د زیارکښو ورونو ځناورو د ازادۍ په لور!))**

**ســکیولر په راپارېدلو ځناورو نظر واچاوه، د ځان ســره ومســکېد او بیا یې د ځناورو د دلاسا کېدو لپاره وویل:**

((ملګرو! تل د ستر لارښود ملګري ناپولن په عملي ستراتيژۍ او تاکتيک ټينګه عقيده ساتئ! تل د بې باکه او بې سنجشه عمل څخه ډډه وکړئ! پام کوئ چې د ستر لارښود د قوماندې پرته په خپل سر هيڅ عمل ونه کړئ!))

په دې موده کې سکيولر کوښښ کاوه چې د فريدرک پر ضد د څناورو پاربدلي احساسات ژوندي وساتي. د يوې يکشنبې په سهار ناپولن د ټولو تشريفاتو سره غونډې ته راغی او د فريدرک پر ضد يې لنډه وينا وکړه.

((فريدرک يو ټيټ او رذيل شخص دی. زه شرمېږم او دا زما د شخصيت توهين دی چې د فريدرک غوندې ټيټ شخص سره ارتباط وساتم او يا په دغه رذيل دې د فارم چاتراش خرڅ کړم.))

زه تاسو هغو ټولو کوترو ته چې د انسانانو په فارمونو کې د څناورو ترمنځ د ((انقلاب)) پيغام خپروئ، امر کوم چې له نن څخه وروسته به تاسو د ((فاکسووډ فارم)) دننه پښه نه ږدئ. زما په امر ((مرګ په انسانيت)) شعار له منځه ولاړ او تاسو کوترو ته امر کوم چې له نن څخه وروسته د ((انقلاب)) لباره ((مرګ په فريدرک)) شعار استعمال کړئ.))

((ما په تېر دوبي کې د غدار سنوبال يوه بله دسيسه کشف کړه. دغه غدار به د شپې فارم ته راته او دلته به يې د غنمو د تخمونو سره د وحشي وښو تخمونه ګډول. همدا علت دی چې سږکال د فارم د غنمو فصل د وحشي وښو نه ډک دی. د سنوبال په دسيسه کې يوه بته هم شريکه وه. کله چې دې بتې سکيولر ته ((په خپله خوښه)) د خپل جرم ((اعتراف)) وکړ، نو بيا يې ډېر ژر ((خودکشي)) وکړه.))

**اوس د فارم ټول ځناور په دوو ډلو وېشـل شـوي وو، لوی اکثریت دا عقیده درلوده چې سنوبال ته ((د ځناورو قهرمان لومړی درجه نښان)) هېڅ نه دی ورکړل شــوی، بلکې دا یوه انســـانه ده چې د ((غواوو څپر)) تر جګړې وروســته په خپله ســنوبال د ځان په باره کې خبره کړې ده. دې ځناورو پخه عقیده دلوده چې د ((غواوو څپر)) د جګړې په دوران کې غدار ســـنوبال د جنګ میدان پرېښـــود او د دې تېتښـــتې په وجه د فارم ټولو ځناورو ډارن سنوبال په ګډه وغانده.**

**دویمه ډله ځناور بېخي لږ وو. برعکس دوی د سنوبال په تېښه او ډار باور نه کاوه. یوه ورځ سکیولر دوی راوغوښتل او په ډېر قهر یې ورته وویل:**

**(( تراوســـه موږ ډېره حوصـــله وکه چې ګوندې تاســـو به ټول زاړه عادتونه پرېږدي او د نوو ((انقلابي)) شـــرایطو ســـره ســـم به ځانونه هم بدل کړي. ستاسو دغه شان فکر دوه عوامله لري. یا ستاسو حافظې خرابې شوي دي او یا د غدار سنوبال په لمسون تخریب کوي. که چېرې ستاسو حافظې خرابې دي، نو بیا دا واقعیت ومنئ چې خرابې حافظې تل خراب او غلط فکر کوي. که تاســو د تخریب اراده لرئ نو په دې صــورت کې موږ د ورانکارو په جزا هم ډېر ښـه پوهېږو. حوصـله هم یو حد لري. تاسو ته دا زما وروستی اخطار دی.))**

**د مني د لو او درمندونو د سترې کېدونکي کار او زیار سره سره د ژرندې د جوړېدو کار په بیړه روان و. سره له دې چې ځناورو د کار تجربه نه درلوده. د کار ټول اوزار د انسانانو د کار لپاره جوړ وو. ((سنوبال تل خندونه اچول)) او دا شـــان نور ډېر مشـــکلات هم موجود وو، خو بیا هم ژرنده د ځناورو د پرله پسې کار او زیار په برکت په ټاکلي وخت سرته ورسېدله. اوس د ژرندې**

**د ماشــــینرۍ د ځای پر ځای کېدو وخت راورســــېد او د ویمپر پواســــطه د مشینرۍ د اخیستو خبرې هم پیل شوې. د ډېر کار او زیار له کبله ځناورو تل ډېر زیات ســـتړي ښـــکاره کېدل، خو بیا هم دوی د خپلې ژرندې په جوړېدو ډېر افتخار کاوه. دوی به هره ورځ شاهکار چاپېره ګرځېدل او د لومړي ځل په تناسب دا ځل ورته خپله ژرنده ډېره ښکلې ښکاره کېده. سربېره پر دې دا ځل د ژرندې دېوالونه د مخکنۍ ژرندې د دېوالونو په تناســـب یو په دوه پلن وو. دوی پوخ باور درلود چې دغه پلن دېوالونه د چاودېدونکو موادو پر ته بل هېڅ شی له منځه نه شي وړلای. واقعاً چې دوی ډېر زیار وویســـت او په ډېرو مشـکلاتو یې بریالیتوب وموند. په رښـتیا دوی ډېره سـتړیا ولیدله او تل سـتړي، سـتومانه وو. خو یوازې په دې فکر کولو چې د ژرندې د بادبانونو او ډاینمو تر ګرځېدو وروسـته به د دوی په ژوندکې په زړه پورې بدلون راشـي، دغه ستړیا به له منځه تلله او برعکس دوی به د ژرندې چاپېره د خوشالتیا نه پورته پورته ټوپونه وهل او چیغې به یې ایســـتلې. ناپولن په پوره تشـــریفاتو د ژرندې د لیدو لپاره راغی او د ژرندې د معاینې وروسته یې وویل:**

**((زه شخصاً په دې لوی بریالیتوب تاسو ټولو ځناورو ته مبارکي درکوم او نن دا اعلان کوم چې ما د دې ژرندې نوم ((د ناپولن ژرنده)) کېښود.))**

**دوه ورځې وروســته ناپولن د فارم ټول ځناور لوی ګودام ته راوغوښـتل او په دې فوق العاده غونډه کې یې وویل:**

**((ما د فارم ټول چارتراش په فریدرک خرڅ کړل. ســـبا ته د فریدرک کراچۍ د دې چارتراشو د وړلو لپاره راځي. په تېرې ټوله موده کې زما او د پلکنیګټن دوســـتۍ محض ظاهري بڼه درلوده برعکس پـه دغـه ټولـه موده کې مـا د فریدرک سـره ډېر پټ روابط سـاتل. له نن څخه زموږ او د فوکسـووډ ترمنځ**

ټول روابط قطع شول او په دې برخه کې ما پرون پلکنیګټن ته پیغام ورلیږلی دی. زه ((انقلاب)) خپرونکو کوترو ته امر کوم چې د نن نه دې پنجفیلډ فارم ته نه ځي او ((مرګ په فریدرک)) شعار دې ((مرګ په پلیکنګټن)) په شعار بدل کړي.))

((زه درته ډاډ درکوم چې د ځناورو په فارم باندې د فریدرک د حملې کیسې بېخي غلطې وې او دا چې د پنجفیلډ فارم په ځناورو باندې فریدرک ظلمونه کړي دي، دا خو بېخي پوچې خبرې دي. دا پروپاګنډه سنوبال او د هغه طرفدارانو د دې لپاره کوله چې زما او فریدرک ترمنځ دوستانه اړیکي خراب کړي. اوس دا خبره په اسنادو اثبات شوې ده، چې سنوبال په ټول ژوند کې پنجفیلډ فارم ته نه دی تللی، بلکې برعکس دغه غدار له ډیرې مودې راهیسې په فوکسووډ فارم کې اوسېږي او په دې فارم کې د پلکینګټن دغه ځیره خور د مزو ژوند کوي.))

د ناپولن په دې اعلان ټول ځناور حیران شول او یوازې خوګانو د ده ځیرکتیا او هوښیارتیا په هکله وویل:

(( ملګرو! د پلیکنګټن سره ظاهري ملګرتیا زموږ د ستر لارښود ملګري ناپولن یو ((عالمانه انقلابي تاکتیک)) و. د ستر لارښود ملګري ناپولن دې تاکتیک فریدرک مجبور کړ چې د هر چارتراش قیمت دولس روپۍ نور هم جګ کړي. زموږ د مشرتابه نبوغ دا واقعیت وښود چې فریدرک هم په دې تاکتیک تر پایه پوه نه شو. د دې علت دا دی چې زموږ مشرتابه په دې برخه کې د فریدرک په شمول په هېچا باور نه کاوه.))

((ملګرو! فریدرک غوښتل چې زموږ لارښود ملګري ناپولن ته د کاغذ په یوه پاڼه چې د چک په نوم بلل کېږي د پیسو د ورکړې وعده لیکلې ورکړي.

خو ((زمورږ ستر لاربنود ملکري ناپولن)) پنځه روپيز لوټونه ورڅخه وغوښتل او دا شرط يې هم ورباندې کېښود چې پيسې به د چارتراشو تر ورلو مخکې نغدې ورکوي. اوس فريدرک دغه نغدې پيســې ورکړي دي او فکر کوم چې دغه پيسې د ژرندې د مشينرۍ د اخيستو لپاره بېخي کفايت کوي.))

ډېر چټک چارتراش يوړل شــول او د چارتراشــو تر وړلو وروســته ناپولن د بانک د لوټونو د معاينې په خاطر په لوی ګودام کې د ټولو څناورو فوق العاده مجلس داير کړ، ناپولن د لوی ګودام په اوچت ځای د بوســو په بســتره غځېدلی پرېوت او په دې ورځ يې دواړه (نښانونه ځړولي وو. د موسکا ډکه خوله يې چينګه نيولې وه. ترڅنګ يې په يو چيني لوښي کې د فريدرک لوټونه سـر په سـر ايښـودلي وو. ټول څناور کتار ولاړ وو او هر يو لوټونو ته په ځير ځير کتل. بوکسر د لوټونو د بوی کولو لپاره خپل شونډک وراوږد کړ او د ده په تنفس دغه نازک سپين شيان د چيني لوښي څخه والوت او شاوخوا تيت و پرک پرېوتل.

په فارم کې درې ورځې وروســته لويه هله ګوله پيدا شــوه. ويمپر تک زيړ په بايسـکل سـپور په ځغاسـته فارم ته راغی، بايسـکل يې يوې خواته په غولي کې وغورځاوه او په منډه نېغ د ناپولن کوټې ته ولاړ، څو شـېبې وروسـته د ناپولن د کوټې څخه غال مغال راپورته شـو او د پېښـې خبر په ټول فارم کې د ځنګل د اور په شـان خپور شـو. د ټولو څناورو په خوله دا يوه خبره وه چې ((د بان کلوټونه جعلي دي! فريدرک چارتراش مفت واخيستل.))

ناپولن ډېر ژر د څناورو غونډه راوغوښــتله او غونډې ته يې په قهرجنه لهجه وويل:

((زه غدار فریدرک په مرګ محکوموم. زه غواړم چې دغه غدار ژوندی ونیسم او په جوش اوبو کې یې ژوندی وخوټوم.))

(( له ډېر مودې راهیســـې دغه خاین زموږ په فارم ناڅاپي یرغل کول غواړي، هره شپه د فریدرک او د هغه د نوکرانو د حملې انتظار کوي. دا اوس نه ورته چمتو اوســـئ. زه امر کوم چې د فـارم په ټولو لارو پیره داران ودروئ. زه غواړم چې د پلکینګټن سـره بیا ښـه روابط ټینګ کړم. زه امر کوم چې ډېر ژر دې څلور کوترې فوکسـوود ته ولاړې شـي او زما له خوا دې پلکینګټن ته د ښو روابطو د ټینګېدو هیله او د روغې جوړې پیغام ورسوي.

سبا سهار حمله پیل شوه. څناورو سبا ناری‌کاوه چې پیره داران په یو ترا ټ راغلل او څناورو ته یې د فارم د لویې دروازې په لار د فریدرک او د هغه د نوکرانو د رانبوتلو خبر ورکړ. ټول څناور په ډېره زړورتیا مخې ته ورغلل. دا ځل څناورو ته د ((غواوو څپر)) د جګړې غوندې بریالیتوب اسان نه ښکاره کېده. دا ځل پنځلس تنه د شـــپږو ټوپکو ســـره راغلل. کله چې انســـانان د پنځوس ګامونو په فاصـله څناورو ته رانږدې شـول، نو فوراً یې ډزې شـروع کړې. څناورو د ډاروونکو چاودنو او د ټوپکو د ســوزونکو کولیو مقابله ونه کړلای شوه. ناپولن او بوکسر ډېر کوښښ وکړ چې څناور د یوې کلکې حمله لپاره راټول کړي، اما انسانانو ډېر ژر دوی په شا وتمبول او د میدان څخه یې په تېښـــته مجبول کړل. څناورو د فارم په ودانیو کې پناه واخیســـته او د دې ودانیو د چاودنو او ســـوریو څخه یې غلي غلي بهر ته کتل. دښـــمنانو ډېر ژر مالځر او ژرنده ونیوله. تر یوې شـــېبې پورې ناپولن داســې معلومېده لکه چې هر څه یې بایللي دي. چوپ چاپ یې کښـــته پورته قدم واهه، لکۍ یې شـــخه پورته نیولې وه او کله به یې په یو او کله به یې په بل اړخ وهله. هغه د امید سترګې د فوکسوود فارم پر لور نیولې وې او د ځان سره به یې ویل: ((که په

دې حساسه مرحله کې پلکینګټن او د هغه نوکران زمو مرستې ته راغلل، نو زموږ بریالیتوب یقیني دی.)) هم په دې وخت کې هغه څلور کوترې چې یوه ورځ مخکې فوکسوود ته لېږل شوې وې راغلې. یوې کوترې د پلکینګټن له خوا د کاغذ یوه وړوکې ټوټه په مکوښه کې نیولې وه. په دې کاغذ باندې په پنسل دا عبارت چې (( تا څناورو سره هم دا جوړېږي.)) لیکل شوي وو.

فریدرک او د هغه نوکران ژرندې ته نږدې ودرېدل. څناورو د دوی څار کاوه. د ژرندې په خوا کې د دښمنانو د راټولېدو له کبله په څناورو کې ډار پیدا شو. د فریدرک دوه نوکرانو یو جبل او یو پلک په لاس کې ونیوه دوی غوښتل چې ژرنده له بنسټ څخه چپه کړي.

((ناممکنه ده!)) ناپولن چیغه کړه. ((دا ځل موږ د ژرندې دېوالونه دومره پلن جوړ کړي دي چې دوی یې هېڅ نه شي چپه کولای! زه پوره باور لرم چې په یوه اوونۍ کې هم دغه دېوالونه رانسکورولای نه شي. ملګرو! پام کوئ چې ونه ډارېږئ.)) اما بنجامین په ډېر دقت د انسانانو حرکتونه څارل، د فریدرک دوه نوکرانو په جبل او پلک د ژرندې بنسټ ته نږدې سوری جوړوه، بنجامین په ډېره حیرانتیا خپل سر اخوا دېخوا ښوروه راښوروه. بنجامین نورو څناورو ته وویل: ((ما هم دغه فکر کاوه! تاسو ورته ښه وګورئ چې هغوی څه کوي. هغوی یوه شیبه وروسته په دغه سوري کې چاودېدونکي مواد اچوي.))

ډار شوي څناور منتظر ولاړ وو او له ډاره د باندې نه شو راوتلای. یو څو دقیقې وروسته یې ولید چې د ژرندې له خوا څخه انسانانو یوه او بله خوا منډه واخیسته. او یوه شیبه وروسته یو لوی ډز وشو. ددې کنوونکي ډز په اورېدو کوترې هوا ته والوتې، ټولو څناورو سترګې پټې کړې او یوازې د

ناپولن پرته نورو ټولو په ځمکه پروت وکړ. کله چې د ځمکې نه راپورته شول د ژرندې له پاسه یې تک تور لوګي توره وریځ ولیده. شمال دغه وریځ په کرار کرار یوړه. ګوري چې ژرنده بېخي له منځه تللې ده.

دې بوګنوونکې منظرې په ټولو ځناورو کې لوی هیجان پیداکړ. د دې ټیټ او دکرکې وړ عمل پر ضد لوی قهر د دوی ډار او نا امیدي له منځه یوړل. د انسانانو نه د بدلې چیغه پورته شوه، غیر له دې چې د ناپولن څخه د امر د اخیستو انتظار وکړي، ټولو ځناورو مخامخ په دښمنانو حمله وکړه. په دوی باندې لکه د ږلۍ ګولۍ ورېدلې اما دوی د دغو سوزوونکو ګولیو هېڅ پروا نه کوله. دا ځل ډېره سخته جګړه ونښته. انسانانو ورباندې پرله پسې ډزې کولې خو دوی په ډېره زوړرتیا ورنږدې کېدل. کله چې ورته بېخي نږدې شول، نو انسانانو په کوتکو او په درندو بوټونو وهل پیل کړ. یوه غوا، درې مېږې او دوه بتې ځای پر ځای مړې شوې او تقریباً ټول ځناور زخمي شول. سره له دې چې ناپولن د ځناورو د شا نه د عملیاتو قومانده ورکوله، خو د ده د لکۍ سر هم په ګولۍ والوت. انسانان هم ټپي شول.

بوکسر د درې انسانانو سرونه په سومانو ورمات کړل. یوې غوا د یو انسان خېټه په ښکرونو سورۍ کړه او ژیسي او بلو بیل د یو انسان پرتوګ ټړانګې ټړانګې کړ. ناپولن امر کړی و چې د ده نه ساتونکي سپي دې د بوټو د لاندې پټ ودرېږي. دې سپیو په انسانانو ناڅاپه حمله وکړه او د دې ناڅاپي حملې له ډاره په انسانانو کې ګډوډي راغله. د فارم ځناورو انسانان د هرې خوا نه محاصره کړل او د دې محاصرې د خطر له ډاره فریدرک نوکرانو ته د تېښتې غږ وکړ. یوه شېبه وروسته ډارن انسانانو د خوږ ژوند د ژغورلو په خاطر منډې پیل کړې. ځناورو د فارم تر څنډو تعقیب کړل. کله چې انسانان مجبور

شول چې د اغزنو بوټو له لارې ځانونه وباسي، دلته هم ځناورو ته وروستنۍ کلکې لغتې ورکړې.

ځناورو جګړه وګټله، خو ټول ډېر زيات ستړي او په سرو وينو لمبېدلي ښکاره کېدل. ټول په کرار ګوډ ګوډ فارم ته راستانه شول. کله چې دوی په وښو باندې د ملګرو د خواره واره مړي وليدل، د ځينو ځناور له سترګو څخه اوښکې راوبهيدې څو شيبې د ژرندې پر ځای باندې ويرژن چوپ چاپ ودرېدل، هو! ژرنده يا په بل عبارت د دوی د کار او زيار د شاهکار ټولې نښې نښانې له منځه تللې وې! دا ځل د ژرندې بنسټونه الوتي وو. د ژرندې د بيا جوړېدو لپاره د تيت و پرک پرتو تيږو څخه استفاده کول ګران کار و. د چاودېدونکو موادو قوت دغه تيږې سلګونه ګزه وړاندې غورځولې وې او اوس داسې معلومېده لکه چې په دغه ځای ژرندې هيڅ وجود نه درلود. د جګړې په دوران کې سکيولر په مرموز ډول پټ شوی و، اما کله چې ځناور فارم ته رانږدې شول، هغه لکۍ تاووله راتاووله او ډېر خوشاله په ټوپونو ټوپونو ځناورو ته راغی. په دې وخت کې د فارم د ودانيو له خوا د ټوپک ډز وشو او د دې ډز په اورېدو بوکسر پوښتنه وکړه.

((دا ډزې د څه لپاره دي؟))

((دا زموږ د بریالیتوب د تجلیل ډزې دي.)) سکیولر په چیغه ځواب ورکړ.

((دکوم بریالیتوب؟)) د بوکسر د لینګو څخه سرې وینې روانې وې، یو نعل يې ورک، يو سوم يې چاودلی او يو درجن ګولۍ يې د وروستنيو پښو په لينګيو کې پرتې وې.

((کوم بریالیتوب ملګری! ایا موږ د ((څناورو فارم)) د مقدسې خاورې څخه یرغلګر دښمن ونه شاړه؟)) سکیولر وویل.

((موږ پوره دوه کاله د فارم په ژرنده کار وکړ! اما د ښــمنانو زموږ دغه ژرنده له منځه یوړه! بوکسر ځواب ورکړ.

((ملګری! هیڅ پروا نه کوي! موږ به بله ژرنده جوړه کړو. که موږ یې وغواړو دغه شـان شپږ ژرندې جوړولای شـو. ایا دا نه منې چې موږ څومره لوی کار کړی دی؟ دا ځمکه چې اوس ورباندې دواړه ولاړ یو دښـــمن راڅخه نیولې وه. دا ځمکه موږ او تاسو د ستر لاربښود ملګري ناپولن د مشرتابه په برکت بېرته لاس ته راوړې ده!))

((هم هغه ځمکه مو بېرته ګټلې ده، کومه ځمکه چې موږ مخکې درلوده»» بوکسر وویل:

((دغه زموږ بریالیتوب دی!)) سـکیولر چیغه کړه. ټول څناور ګوډ ګوډ غولي ته ننوتل. د بوکسـر د لینګو د پوسـتکي د لاندې ګولیو سـوزېدونکی درد پیل کړ. بوکسـر په چورت کې ولاړ هغه ته د بنسـټ څخه د ژرندې د بیا جوړېدو کار ډېر دروند او ګرام کار معلوم شـــو. هغه په تصــور کې خپل ځان په دغه دروند او ګران کار یو ځل بیا بوخت ولید. د اول ځل لپاره د ده په مغزو کې دا خبره راغله. (( زه اوس یو لس کلن یم، شـاید چې زما د متو او غړو پخوانی قوت نه وي پاتې.))

کله چې څناورو د شـــین بیرغ پورته کېدل، پر له پســې د ټوپک اوه ډزې او د بریالیتوب په مناسـبت دناپولن د مبارکۍ وینا واورېدلې، نو له دې وروسـته د دوی باور وشـــو چې واقعاً د فارم څناور لوی بریالیتوب ترلاســه کړی دی.

بوکسـر او کلوور د مړو څناورو مړي په کراچۍ کې راکښـل. ناپولن د کراچۍ څخه مخکې او نور څناور د کراچۍ تر شاه روان وو. په جګړه کې مړه څناور په ډېر درناوي خاورو ته وسپارل شو.

پوره دوه ورځې ((د لوی بریالیتوب)) جشن تجلیل شو. سندرې ویل کېدې، د خوګانو ویناوې روانې وې، پرله پســـې ډزې کېدې هر څناور ته یوه منه، هرې مرغۍ ته دوه انس غنم او هر ســـپي ته درې بســـکټ ورکړل شـول. دا جګړه د ((بادي ژرندې جګړه)) په نوم اعلان شـــوه. ناپولن د نوي ((شـــين بيرغ نښـان)) د جوړولو امر وکړ. ډېر ژر دغه نښـان جوړ شـو. او ناپولن د ټولو څناورو په نمايندګۍ دغه نوی نښـــــان ځان ته ورکړ. په دې عمومي خوشالۍ کېد د جعلي لوټونو مسله بېخي هېره شوه.

څو ورځې وروسـته خوګانو د جونز په یوه زېرخانه کې د وسـکي شـرابو لوی صـندوق وموند. په دغه شـپه د فارم د مېنې څخه په جګ اواز د سـندرو غږ راغی. ټولو څناور د خوګانو د خولې څخه ((د انګلستان څناورو)) د ترانې په اورېدو حيران شـول. د سـپوږمۍ شـپه وه. څناورو د شـپې په نهه بجو ناپولن وليد چې د مېنې د شا دروازې نه راووت، هغه د مسټر جونز یوه زړه شپو په سـر کړې وه، د غولي چاپېره يې منډې ووهلې او بيا بېرته په دروازه ننوت. د دې شـپې په سـهار د فارم د مېنې د ننه بېخي چوپه چوپتيا وه او يو خوګ هم بيديا په نظر رانغی. د ســـهار پوره نهه بجې وې چې ســـکيولر د مېنې بيديا وليدل شـــو. دی ډېر خفه راروان و، ســـترګو يې چخې نيولې وې، لکۍ يې د ځان پســـې راکښـــله او د وضـعې نه ډېر ســخت ناروغ معلومېده. ده د فارم څناور راټول کړل او هغوی ته يې په ژړغوني اواز وويل:

**((((ملګرو! ما تاسو ته یو خطرناک خبر راوړی دی! زموږ ستر لاربښود ملګري ناپولن د ځنکدن په حالت کې دی!))**

**د دې خبر په اورېدو ځناورو ویر او انګولا شروع کړه. د فارم د مېنې د دروازې بیدیا بوس خپاره شول او د دې بوسو له پاسه ځناورو د پښو دګوتو په څوکو ډېر پهکرار تګ راتګ کاوه. د هر ځناور سترګې د اوښکو نه ډکې وې. یو ځناور به د بل ځناور څخه یوازې دا پوښتنهکوله: ((که زموږ ستر لاربښود م شو، نو موږ به څهکوو.)) ډېر ژر داګونګوسې چې غدار سنوبال د ستر لاربښود ملګري ناپولن په خوراککې زهر اچولي دي، خپور شو. سکیولر پوره په یوولس بجو راووت او هغه بیدیا خفه ولاړ ځناورو ته یې وویل:**

**((ملګرو! له دې دنیا نه د تلونکي ستر لاربښود ملګري ناپولن وروستنی فرمان دا دی: ((که د فارم هر ځناور شراب وڅښل نو تاسو هغه ته د مرګ سزا ورکړئ.))**

**د ماښام خواو شا ناپولن لږ ښه شو. سکیولر سهار بې خوبه ځناورو ته د هغه د روغتیا زېری وکړل. اوس ناپولن بېخي تکړه و او د شپې له خوا هغه په خپل کارونو پیل وکړ. د دوشنبې ورځ وه، ویمپر فارم ته راغی ځناورو واورېد چې ناپولن ویمپر ته به ویلنګډنکې د شرابو د تقطیر رهنماکتابونو د اخیستو فرمایش ورکړ.**

**یوه اوونۍ وروسته ناپولن دا امر وکړ: تاسو باغچې ته نږدې وړوکی مالځړ چې د تقاعد شویو ځناورو د مالځړ په نوم پرېښودل شویدی، ټول ایرهکړئ، ځکه چې د دې مالځړ د وښو تخمونه بېخي زاړه شوي دي او زه اوس غواړم چې تاسو په دغه مالځړ کې نوي او تازه تخمونه وکړئ: اما ډېر ژر ټولو**

ځناورو ته څرګنده شــوه چې ناپولن په دغه وړوکي مالځړکې د وښــو د تازه تخمونو پر ځای وربشې وکرلې.

یوه شپه غجیبه پېښه و شوه. د یو ځناور پرته نور ټول ځناور په دې شپه پوره پوه نه شول. د شپې په دولس بجو د لوی ګودام د هغه دېوال څخه چې ((اوه احکام)) پرې لیکل شــوي وو، د یو شــي د ماتېدو لوی اواز تر غوږو شــو، د دې اواز پــه اورېدو ټول ځنـاور د خپلو غوجلو څخـه پـه منـډه راووتـل. د سپوږمۍ شپه ده. ځناور ګوري چې د ګودام د دېوال په بېخ کې یوه زینه ټوټې ټوټې پرته ده. د دې ماتې زینې په خواکې سـکیولر خور وور بې سـده پروت دی. د ده تر څنګ یو لاټین، یو د رنګ برش او د ســپین رنګ یو نســکور لوښی هم پراته دي. د سکیولر چاپېره سپي کړې ولاړ دي. کله چې سکیولر په سـد او د تګ وړ شـو، سـپیو ډېر ژر هغه د کرې دننه د فارم مېنې ته بدرګه بوت. د زوړ بنجامین نه غیر نور ځناور د دې پېښــې په علت پوه نه شــول. زوړ بنجامین پوه شو، سر یې وښوروه، خو په خوله یې هېڅ ونه ویل.

تر دې پېښې څو ورځې وروسته موریل د ((اوه احکام)) دېول ته ودرېدله او هغې غوښـتل چې دغه احکام له سره ولولي. موریل د احکامو په لوسـت پیل وکړ. ډېر ژر ورته څرګنده شـوه چې د فارم ځناورو یو بل حکم هم غلط زده کړی دی. ځناورو پنځم حکم داسې زده کړی و چې ((هېڅ ځناور به شراب نه څښــي.)) اما په دې حکم کې دوی دوه ټکي بېخي هېر کړي وو، په دېوال باندې لیکل شـوي اصـلي پنځم حکم داسې و چې ((هېڅ ځناور به - له حده زیات– شراب نه څښي.))

# نهم څپرکی

د بوسکر د چاودلي سوم د جوړېدو موده ډېره اوږده شوه، د بریالیتوب د تجلیل په سبا ځناورو د بادي ژرندې د بیا جوړېدو کار پیل کړ. بوکسر یوه ورځ د کار څخه غیر حاضري نه کوله او دا یې هم خپل سپکاوی ګاڼه چې نور ځناور دې د هغه د سوم په دردونو او تکلیف خبر شي.

((کلوور! دسوم دردونه ډېر تکلیف راکوي!)) بوکسر به هر ماښام کلوور ته پټ اعتراف کاوه. کلوور به ځینې بوټي په خوله کې ژویل، لېټۍ به یې ترېنه جوړه کړه او هره شپه به یې د لېټۍ پټۍ د هغه په چاودلي سوم ایښودله.

((بوکسره! دومره سخت کار مه کوه. پام دې وي چې داسې ځیګر ډېره موده کار نه کوي. ((کلوور! او بنجامین دواړو به هره شپه ورباندې ټینګار کاوه. بوکسر به د دوی خبرو ته غوږ نه ایښود او په ځواب کې به یې ورته ویل:

((زه په ژوندکې یوه ارزو لرم. مخکې له دې چې تقاعد واخلم باید بادي ژرنده جوړه وویم.))

کله چې د ځناورو د فارم لومړني قوانین جوړ شول. دې قوانینو د خوګانو او اسونو د تقاعد عمر دولس کلونه، د غواوو لس کلونه، د سپیو نهه کلونه، د میږو اوه کلونه او د چرګانو او بتو عمر پنځه کلونه وټاکل. قوانین د زوړ عمر تقاعد ته د ډېرې ځیرې حق ورکړی و اما په عمل کې تراوسه په ټول فارم کې نه یو ځناور تقاعد کړی و او نه د تقاعد ځیره ورکړل شوې وه. یو ځل بیا د تقاعد تاوده بحثونه شروع شول. کله چې د باغچې ترڅنګ د وړوکي مالځړ په وربشو وکرل شو، نو ډېر ژر داګونګوسی خپور شو، چې د لوی مالځړ د یوې څنډې نه کتارې تاوېږي او دغه څنده د تقاعد شویو ځناورو د څر لپاره

پرپښــودل کېږي. دا هم ویل کېدل چې د ژمي په موســم کې به تقاعد شــوي اســونه د ورځې پنځه پاوه وربشــې او پنځلس پاوه وچ واښــه ځیره اخلي او د عمومي رخصــتیو په ورځ به یوه ګاژره او یو منه هم ورکول کېږي. بوکسـر په راتلونکي دوبي کې دولس کلون کېده.

ژوند ډېر ســخت و، دغه ژمی د تېر ژمي غوندې ډېر ســوړ اما د تېر ژمي په تناســب په دې ژمي کې خواړه ډېر لږ وو، خوګانو او ســپیو پرته د نورو ټولو ځناورو ځیره یو ځل بیا لږ شــوه. ســکیولر د ځیرې د لږوالي د ضــرورت تشریح په ترڅ کې وویل:

((ملګرو! د ځیرې ټینګ مســاوات ســاتل او ټولو ځناورو ته مســاوي ځیره ورکول ((د ځناورتوب)) د دې اصــل چې هر ځناور ته به د هغه د استعداد او کار به مقابل کې ځیره ورکول کېږي، پر ضــد عمل دی. زه هېڅکله نه غواړم چې د ځیرې لږوالي ته ((د لږوالي)) اصــطلاح اســتعمال کړم، بلکې زه ((د ځناورتوب)) د واقعي اصــولو د روحیې سره ســم دې ته د شــرایېو سره ((د ځیرې د سمون)) اصطلاح استعمالوم. تاسو ته به خوراک لږ ښکاري، خوکه تاسو خپل اوسـني خواړه د جونز د دورې سره مقایسه کړئ، تاسو به راسره دا واقعیت حتماً ومنئ چې تاســو د هېڅ ډول خوراکي موادو قلت نه لرئ. برعکس په فارم کې اوس د خوراکي موادو تولید څو ځله پرېمانه شوی دی.))

ســکیولر د ارقامو کاغذ راوویســت او په چغنده اواز یې ډېر چټک د ارقامو لیست لوست پیل کړ:

((ملګرو! اوس به یې درته د ارقامو تفصــیل اثبات کړي چې تاســو د جونز د دورې په مقایســه پرېمانه وربشــې، پرېمانه واښــه، او پرېمانه ټیپر لرئ. اوس ستاسو د کار ساعتونه لږ دي، ستاسو د څښاک اوبه ښې دي، ستاسو عمر

اوږد شوی دی، ستاسو د ماشومانو مړینه لږه شوې ده. ستاسو په غوجلوکې بوس پرېمانه دي. غوجلې مو پاکې دي او اوس مو د پخوا شـــان ورږې هم نه په عذابوي. پخوا تاســـو د انســـانانو غلامان وئ او اوس خپلواکه او ازاده، زه درته د جونز او اوســـني وخت فرق په یوه جمله کې خلاصـــه کوم. د جونز د دورې ټول شیان خراب وو او د اوسنۍ دورې هر شی ښه دی.))

ډېرو ځناورو د سکیولر وینا په هر ټکي باور کاوه. د دې علت دا و چې اوس د ډېرو ځناورو د حافظې څخه په خپله جونز او د هغه د دورې هر څه هېر شـــوي وو. اوس هغوی ((د ځناورو فارم)) کې د اوســـېدو د تجربې په نتیجه کې یوازې په دې پوهېدل چې په دغه فارم کې دوی تل خوار، زار ژوند تېروه، تل وږي وو، تل یې ســـاړه کېدل او چې تر څو به ویښ وو، تر هغې به یې پرله پسې شاقه کارونه کول.

اوس په فارم کې د خوراک نورې نوې خولې هم پیدا شـــوې. د منې په موســـم کې څلورو خوګانو یو ډېر بچي وزېږول، د ټولو بچو رنګ برګ و او په ټول فارم کې ناپولن یوازې برګ رنګه خوګ و. دا یوازینۍ نښـــــه وه چې د برګ رنګه بچو څخه د هغوی اصـــلي پلار په خپله معلومېده. د یکشـــنبې په غونډه کې سکیولر په نوې اعلامیه کې وویل:

((ملګرو! د خوګانو د مخصوصې کمېټې په فیصله او د ستر لارښود ملګري ناپولن په منظورۍ د خښتو او لرګو د اخیستو وروسته د فارم د مېنې تر څنګ ډېر ژر نوی مکتب جوړېږي. د مکتب د جوړېدو تر وخته پورې به ســـتر لارښـــود ملګری ناپولن په اشپزخانه کې د خوګانو بچو ته درس ورکوي. هره ورځ به دغه بچي د فارم په باغ کې ســـپورټ کوي. تر دې وروســـته ســـتاســـو بچي دا حق نه لري چې د خوګانو د بچو سره یوځای لوبې وکړي. همدا شان

که چېرې تاسو په لارکې د خوګ سره مخامخ کېږئ، تاسو مکلف یاست چې خوګ ته د تېرېدو لومړنی حق ورکړئ. دې فیصـــلې ټولو خوګانو ته دا امتیاز هم ورکړی دی چې هغوی به د یکشـنبې په ورځوکې د لکیو پورې شنې پټۍ هم تړي.))

په دغه کال کې د فارم حاصل ښـه و، اما اوس د ژرندې د مشینرۍ د اخیستو برسـېره د نوي مکتب خښـتو، شـګې او چونې د اخیسـتلو لپاره هم پیسـو ته اړتیا وه، سـکیولر د ژرندې د مشـینرۍ او د مکتب د لګښـت لپاره د عمومي سپما به اعلان کې وویل:

((ملګرو! موږ د ستر لاربښود ملګري ناپولن د لمبې د تېلو، شمعو، بورې او د سپیو د بکسـټ او د ژرندې او مکتب د نویو ودانیو سـامان لکه د مېخونو، سیمانو، جالیو، اوسـپنې، تارونو، خښـتو، شـګې او د چونې د اخیسـتو لپاره د پیسـو سـمپا ته اشـده اړتیا لرو.د پیسـو د لاس ته راوړلو لپاره د وچو وښو یوه لویه‌کوټه او د کچالانو ډېره برخه خرڅه شـــوه او په نوي قراردادکې د یوې اوونۍ د څلور سوه هګیو خرڅلاو شپږ سوه هګیو ته پورته شو.))

د سپما د کمپاین په نوم د دسمبر په میاشت کې لږه شوې ځیره په جنورۍ کې نوره هم لږه شــوه. ســره له دې چې خوګانو د مزو ژوندکاوه اما د خاورو د تېلو د ســـمپا په خاطر د نورو ځناورو په ټولو غوجلوکې د لاټین بلول منع شـــول. خوګانو ته هر ډول ارامتیاوې موجودې وې او د فارم هر خوګ د یوې ورځې نه بلې ورځ ته څربېده. د فبرورۍ په وروســـتیو ورځوکې ځناور ډېر وږي معلومېدل. یوه ورځ تر غرمې وروســـته د خوګانو په پوزه ډېر خوږ بوی ولګېد او د ټولو وږو ځناورو اشتها راوپارېدله. دغه خوږ بوی د جونز د شراب جوړولو د کارخانې څخه راته. د شراب جوړولو کارخانه د اشپزخانې

ترڅنګ وه او د جونز تر شړلو راهیسې دغه شرابخانه شاړه پرته وه. ((دا خو د وربشـــو بوی دی!)) یو ځناور نورو ته وویل، ټولو ځناورو دغه خوږ بوی ټینګ تنفس کړ او بیا یې یو بل ته په تعجب وویل: ((کېدی شـــي چې زموږ د ماښــام د خوراک لپاره به څه خواږه خواږه تیار بوی ماښــام راغی خو خواږه خواږه هېڅ معلوم نه شــول. په راتلونکې یکشــنبه کې دا اعلان چې تر دې وروسته به د فارم ټولې وربشې یوازې د خوګانو لپاره ساتل کېږي وشو. څو ورځې وروســته د فارم ټولو ځناورو ته څرګنده شــوه چې اوس هره شــپه هر خوګ یو لیټر شــراب او ناپولن نیم ګیلن شــراب د ګرد نر په لوی کنډول کې څښي.

په بېکاره وخت کې ټول ځناور یوازې د ډېرو کنسرتونو ویناګانو او مارشـونو پواسـطه مصـروف کېدل. د یوې یکشــنبې د سـهار په غونډه کې سـکیولر د خوګانو دا فیصله ولوستله:

((ملګرو! د خوګانو د محصوصې کمېټې په فیصله او د ستر لارښود ملګري ناپولن په منظوری تر دې وروسته تاسو د فارم ټول ځناور مکلف یاست چې ((د ځناورو فارم)) د بریالیتوبونو او مبارزو د تجلیل په ویاړ په اوونی کې یو ځل ((خود بخودي مظاهرې)) او پرتمین مارشـــونه)) وکړي. (( د پرتمین مارش)) په ټاکلي وخت کې به خپل ټول کارونه پرېږدي او د عسکرو غونډې به د فارم تر سـرحدونو پورې (( پرتمین مارش)) کوي. د مارش په سـر کې به ترومچي تور چرګ، ورپسې به ستر لارښـود ملګری ناپولن روان وي. د ده سـپي به خوګان، د خوګانو پسـط به اسـونه، د اسـونو پسـې به غواوې، غواوو پســې به مېږې، مېږو پســط به چرګان او چرګانو پســې به نور ځناور د یو بل پســـط په منظم کتار ځي. ســـپي به د مارش په دواړو اړخونو کې روان وي. بوکسـر او کلوور به په مارش کې هغه شـین بیرغ چې د سـوم او ښـکر سـمبول

ورباندې انځور شوی دی او ((ژوندی دې وي ستر لاربنود ملګری ناپولن)) ورباندې ليکل شــوی دی، وړي. د مارش په بای کې به پرتمينه غونډه کېږي. په دې غونډه کې به لومړی هغه شعرونه چې د ستر لاربنود ملګري ناپولن د لوړ مقام، نبوغ او سپېڅلي شخصيت په باره کې ليکل شوي دي، ويل کېږي او به پای کې به ســکيولر تاســو ته د فارم د خوراکي موادو د ډېر توليد ارقام اوروي او د نويو مسايلو په باره کې به درته معلومات درکوي.))

د ټولو ځناورو په تناســب د مېږو ((پرتمين مارش)) ډېر خوښ و. کله چې به ځناورو وليد چې خوګان او سپي نه شته، نو دوی به د مارش د ستړيا تر ډېره وخته، په سړو کې د ودرېدو او د وخت د ضـايع کېدو څخه شکايت شروع کړ. مېږو چې به دغه شــکايتونه واورېدل هغوی به ډېر ژر (( څلور بولي ښــه دي، دوه بولي خراب دي)) پــه رمبــاړو دغــه ځنــاور غلي کړل. (( پرتمين مارش)) ځناورو ته يوه ګټه رســوله او هغه دا چې ځناورو د مارش په دوران کې د شعرونو، د ارقامو او د ډزو په اورېدو، د ترومچي تور چرګ په ننداره او د فارم د بيرغ د رپېدو په ليدو خپل تش نسوه او لوږه هېروله.

د اپريل د مياشــتې په لومړنی يکشـــنبه د فارم ټول ځناور چې لوی ګودام ته راغلل او دننه په کتار ودرېدل له دې وروســته ناپولن په ټولو تشـــريفاتو چې تورمچي تور چرګ يې مخکې مارش کاوه، ســپيو ترېنه چاپېره منډې وهلې او خوګان ورپسې وو، ک=ګودام ته راننوت او ټول يو ځای د ګودام اوچت ځای ته پورته شـول. په دې ورځ ناپولن ((د ځناورو قهرمان لومړی درجه نښــان)) ((د ځناورو قهرمان دويمه درجه نښــان)) او ((د شــين بيرغ نښــان)) ځړولي وو. لومړی ترومچي تور چرګ د غونډې د پيل اذان وکړ، بيا ناپولن مخامخ ولاړ په ټولو ځناورو يو سرسري نظر واچاوه او ورپسې يې وويل:

((اوس زموږ ((انقلاب)) خپل تکاملي پړاو ته رسېدلی دی. اوس ((د ځناورو فـارم)) ((جمهوریت)) او ((جمهور رییس)) تـه ضـــرورت لري. زه نن د ځناورو فارم د ((جمهوریت)) لپاره ((خپل ځان)) د جمهوري ریاســـت د کاندید په حیث اعلانوم.))

په ټول فارم کې یوازې ناپولن د جمهوري ریاســـت کاندید و، خوګانو په ســـونګهار او ســـپیو په غپا د هغه کاندیدېدل تائید کړل او په دې غونډه کې ناپولن د رایو په اتفاق ((د جمهور رییس)) په توګه وټاکل شـــو. په دغه ورځ ((د جمهور رییس)) د انتخاب د خوشالتیا په مارچ کې سکیولر وویل:

((ملګرو! اوس موږ ته د جونز او ســنوبال د ګډې دسـیسـې په باره کې نوي مفصـل او مســتند اســناد په لاس راغلي دي. دې اســناد مخکنی دا نظر چې ســنوبال د جونز سـره پټ ارتباط درلود او ((د غواوو څپر)) په جګړه کې یې موږ ته ماتې راکول غوښتل، بېخي غلط اثبات کړي دي. مستند اسناد وایي ((ســنوبال د جونز په طرفداری د انســانانو په ســرکې راغی او هغه د یرغلګرو اســـنانانو د لیډر په صـــفت د دې شـــعار په ویلو چې ((ژوندی دې وي انسانیت)) د فارم د ځناورو پر ضد جګړه پیل کړه.))

((ملګرو! تاسو ته به د غدار سنوبال په ملا زخمونه یاد وي. دغه غدار زموږ د غولولو لپاره د ځان پســـې دا تبلیغ شـــروع کړ چې د هغه ملا د جونز د ټوپک په مرمیو زخمي شـوې ده. اوسـنیو مسـتن اسـنادو په دغه دروغو پوره رڼا اچولې ده. ((د غواوو څپر)) د جګړې د تفصیل په برخه کې داسې راغلي دي، ((کله چې سنوبال د انسانانو د مشر په حیث د فارم په ځناورو حمله پیل کړه. ((د ځناورتوب د اصـــولو او ((د ځناورو فارم)) واقعي محافظ ملګري نـاپولن پـه ډېره زړورتیـا د جنګ ډګر تـه راغی او د راتـګ ســـره ((زړور

قومندان)) ملګري ناپولن د سـنوبال په ملا ورودانګل. ملګري ناپولن د هغه ملا په خپلو تېرو غاښـونو داسې ټینګه ونیوله، چې سنوبال د زخمونو له درد نه د جنګ میدن پرېښود او په تراټ وتښتېد.))

د دوبي په منځ کې د کلونو ورک کارغه موســز ناڅاپه بیا فارم ته راغی. په موسز کې هېڅ تغیر نه و رغلی. هغه د پخوا په شان اوس هم ټک کار نه کاوه او ټوله ورځ به یې په یوه ســاه د نباتو د غر په باره کې خبرې کولې. دی به د ونې په ښــاخ ناســت و، خپل تور ځانګونه به یې پړکول او په ســاعتونو به ګړېده. لومړی به یې په اوږده منښـوکه اسـمان ته اشـاره وکړه او بیا به داسـې شروع شو: ((ملګرو! تاسو په اسمان کې دغه توره وریځ وینئ. بلکل د دغې وریځ اخوا (( د نباتو غر)) او د دې غر په سیمه کې د شوتلو تل شنه پټي او د دې پټیو چاپېره د کیک او نباتو ونې ولیدلې. یوازې دغه د خوشالۍ او ارامتیا ډکه سیمه ده. په دغه سیمه کې هېڅ کار او بیګار نه شته. کله چې موږ سترې او ستومانه ځناور مړه شو، زموږ د ټولو ارواح دغې سیمې ته ځي او یوازې په دغه سیمه کې ابدي ارام مومي.))

ډېرو ځناورو د موسز په خبرو عقیده کوله. دې ځناورو په خپل استدلال کې ویل، ((په دې دنیا کې زموږ ژوند د لوږې او مشـقت څخه ډک دی. زموږ د ارواح د ابدي ارام لپاره چېرته داسې دنیا به حتماً وجود لري.))

د موســز په برخه کې د خوګانو نظر او عمل معلومول ګران کار و. په ښـکاره به خوګانو د موسز څخه نفرت کاوه او تل به یې ځناورو ته ویل چې ((د نباتو غر)) د موســـز د دروغو د فابریکې اختراع ده اما له بلې خوا به خوګانو ډېر پټ ببکاره موسز ته پرېمانه ځیره او د ورځې یو لیټر شراب ورکول.))

د بوکسر سوم روغ شو او د سوم تر جوړېدو وروسته هغه لاپسې سخت کار شروع کړ. څناورو ټول کال د غلامانو غوندې کار کاوه. د مارچ په میاشت کې د فارم د کر کیلې او د ژرندې د بیا جوړېدو د کارونو برسېره د خوګانو د بچو لپاره د مکتب د ودانۍ کار هم شروع شو. په ورېږ خېټه پرله پسې کار کول د زغم وړ خبره نه وه، اما په ټوله موده کې یو څناور هم دا و نه لید چې بوکسر دې ي د لوږې او یا د پرله پسې کار څخه شکایت کړی وي او یا دې بېکاره ناست وي. د بوکسر د خبرو او کار څخه دا نه څرګندېده چې هغه یا زوړ شوی دی او یا ورته د ځوانۍ پخوانی قوت نه دی پاتې. اوس د هغه د پوستکي مخکنۍ تازه ګي له منځه تللې وه او لوی ورنونه یې غونج ښکار کېدل. کله چې به نورو څناورو د هغه دا حالت ولید، یو څناور به بل ته ویل، ((که بوکسر د راتلونکي پسرلي شنه واښه وخوړل، بیا به څورب شي.)) اما پسرلی راغی او بوکسر پرېمانه شنه واښه وخوړل خو بیا هم هېڅ څورب نه شو!

کله چې به بوکسر د تېږو د کان په مخ زوړ کې لوی پرښې ته اوږه اړم کړه، پښې به یې رېږدېدلې، د وجود نه به یې خوله څڅېدله او اوس داسې معلومېده لکه چې بوکسر ته د ځوانۍ مخکنی قوت نه دی پاتې. د خپل وخت پهلوان او د کار قهرمان اوس یوازې د خپل ارادي قوت په طاقت کارونو ته دوام ورکاوه. د هغه جګ اواز ناست و، اوس چې به هغه لوی پرښې ته اوږه اړم کړه، د ده شونډې به رپیدې او د شونډو د رپېدو څخه به دا شعار چې (( زه به لاپسې سخت کار کوم.)) ایله معلومېده کلوور او بنجامین ورته بیا اخطار ورکړ:

((بوکسره! صحت لوی نعمت دی او ته د دې نعمت هېڅ پروا نه کوې!)) بوکسر وویل:

(( زه څه موده وروسته دولس کلن کېږم. مخکې له دې چې تقاعد شم غواړم چې د ژرندې د بیا جوړېدو لپار د تیږو لویه ذخیره راټوله کړم او تر هغه وخته به (( زه لاپسې سخت کار کوم.)) د دوبي وروستنۍ شپې ورځې دي. یو ماښام ناڅاپه دا اوازه چې په بوکسر څه چل شوی دی، ګډه شوه. په دغه ماښام هغه یوازې د تیږو کان ته تللی و. یوه شېبه وروسته دغه اوازه رښتیا شوه. دوه کوترې ډېرې چټکې راغلې او د فارم ځناورو ته یې دا اطلاع ورکړه:

((بوکسر غورځېدلی دی. په یو اړخ پروت دی او له ځایه نه شي پورته کېدلای!

د دې خبر په اورېدو د فارم نیم ځناور په یوه منډه د ژرندې غونډۍ ته ولاړل. ګوري چې بوکسر د کراچۍ د ټایرونو ترمنځ پروت دی. اورمېږ یې اوږد غزولی دی او د سر د راپورته کولو توان نه لري. ځناور ترینه چاپېر ودرېدل، ټولو ولید چې د بوکسر سترګې سپینې اوښتې دي، د ټول وجود نه یې خوله روانه ده او د خولې نه یې وینه لاندې په ځمکه څاڅکي څاڅکي څڅېږي. کلوور ورته په ګونډو شوه او په ډېره وارخطایۍ ترینه پوښتنه وکړه: ((بوکسره! بوکسره! اوس څنګه یې؟))

((د ځیګر نه په تکلیف یم. پروا نه کوي باور لرم چې ته او بنجامین به بې له ما هم ژرنده سرته ورسوئ. ما درته د تیږو ذخیره راټوله کړې ده. ما اراده کړې وه چې په راتلونکې یوه میاشت کې د ژرندې د ودانۍ ټولې تیږې پوره کړم. که رښتیا درته ووایم زه اوس د تقاعد ارزو لرم. زما مګلری بنجامین هم زوړ شوی دی او هغه به هم زما سره یوځای تقاعد واخلي او د تقاعد په دوره کې به یوځای څرېږو!)) بوکسر ورته په ډېر ضعف اواز وویل.

((بوکسـر عاجلې مرسـتې ته اړتیا لري. یو څناور دې په منډه ولاړ شـي او سـکیولر ته دې د پېښـې اطلاع ورکړي!)) کلوور په وارخطایۍ څناورو ته وویل: یوازې کلوور او بنجامین پاتې شـول او نورو ټولو څناورو د فارم مېنې ته منډه واخیسـته. بنجامین د بوکسـر ترڅنګ پرېوت. په اوږده لکۍ ترېنه مچان شـړل اما هېڅ خبرې یې نه کولې. پنځلس دقیقې وروسـته سـکیولر راورسـېد او د بوکسـر په حالت یې تشـویش او همدردي ښـکاره کړه. ویې ویل:

((ملګرو! زموږ سـتر لاربښـود جمهور رییس ملګري ناپولن ته د فارم له ټولو نه وفادار کارګر ملګري بوکسـر د دې بدې ورځې د خبر په اورېدو لویه صدمه ورسېدله. زموږ زړه سواندي مشرتابه تصمیم ونیو چې ملګري بوکسر د عاجلې تداوۍ لپاره ویلنګډن روغتون ته ولېږي.))

څناور د دې خبر په اورېدو نا ارامه غوندې شول. تراوسه د مولي او سنوبال پرته بل هېڅ څناور د فارم نه باهر نه و تللی هغوی نه غوښـتل چې ناروغ ملګری دې د انسـانانو روغتون ته ولاړ شـي او انسـانان دې د هغه درملنه وکړي. سـکیولر د څناورو نا ارامي احسـاس کړه او د څناورو د قانع کېدو لپاره یې وویل: ((ملګرو! د ویلنګډن په روغتون کې یوه تکړه بیطار دی او دغه بیطار د جراحۍ اوږده تجربه لري. زموږ سـتر لاربښـود جمهور رییس ملګری ناپولن غواړي چې ناروغ بوکسر دغه بیطار ته ولېږي. تاسو پوره باور وکړئ چې دغه بیطا به د ملګري بوکسر ډېر په زه پورې علاج وکړي.))

تقریباً نیم سـاعت وروسـته بوکسـر لږ ښـه شـو. هغه په ډېر تکلیف په ښـو ودرېد او څو شـېبې وروسته ګوډ ګوډ غوجل ته ولاړ. کلوور او بنجامین ورته په غوجل کې د بوسـو پسـته بسـتره جوړه کړه، تر دوو ورځو بوکسـر په دغه

بسترە پروت و. خوګانو په یو صندوق کې دګلابي رنګه دوايي یو لوی بوتل پیداکړ او بوکسر ته یې ولېږه. کلوور د خوراک نه وروسته د ورځې دوه ځله دغه دوايي ورکوله. د شپې له خوا به کلوور او بنجامین د بوکسر ترڅنګ پراته وو. کلوور به ورسره خبرې کولې او بنجامین به ترېنه مچان شړل. په دویمه شپه بوکسر ورته وویل:

(( تاسو زما په ناروغتیا مه خفه کېږئ، که له دې ناروغتیا څخه روغ شوم، درې کلونه نور هم ژوندی پاتې کېږم. لکه چې مخکې مې درته ویلي دي، خپل تقاعد اخلم او راتلونکي درې کلونه د ملګري بنجامین سره یوځای د لوی مالځر په څنډه کې په ارام تېروم. فکر کوم چې دغه به زما د ژوند لومړنی فارغه وخت وي. په دې موده کې مطالعه او خپل ذهن ته انکشاف ورکول غواړم. ما تراوسه د الفبا څخه ایله څلور ټکي زده کړي دي، تصمیم مې نیولی دی، چې پاتې ژوند د ټولې الفبا زده کړې ته وقف کړم.))

کله چې به کلوور او بنجامین د کار نه وزګار شول، هغوی به نېغ بوکسر ته راتلل. د درېیمې ورځې د غرمې پر وخت د بوکسر د وړلو لپاره یوه سر پټې کراچۍ راغله. په دغه ورځ ټول څناور د ټیپرو په للون بوخت وو او یو خوګ ورته غمچینه په لاس د نګران په توګه ولاړ و، هغوی ولید چې بنجامین د فارم د ودانیو له خوا په یو تراټ راځغلي او په جګ اواز هنېږي. دا لومړی ځل و چې څناورو بنجامین دومره هیجاني ولید! دا لومړی ځل و چې څناورو د بنجامین چار نال ځغاسته ولیدله. ټولو ورته حیران کتل. د رارسېدو سره بنجامین چیغه کړه.

((ژر راځئ! هله ډېر ژر راځئ! هغوی زموږ نه بوکسر وړي)) هر څومره چې نګران خوګ چیغې ووهلې او د غمچینو ګوزارونه یې وکړل، څناورو د خوګ

د له اجازې پرته د للون کار پرېښـــود او ټول په يوه منډه ودانيو ته راغلل. ګوري چې د ودانۍ په غولي کې يوه ســر پټې کراچۍ دوه اســونه يې راکاږي ولاړه ده او د کراچۍ په مخکې ســيټ باندې يو چالاک کراچيوان چې لويه شــپو يې په ســر ده، ناســت دی. ټول ځناور په منډه غوجل ته ولاړل. ګوري چې غوجل خالي دی. ټول بېرته راغلل او د کراچۍ چاپېر ودرېدل، ټولو په يو اواز چيغه کړه.

((بوکسره په مخه دې ښه شه! بوکسره! په مخه دې ښه شه! ((وا احمقانو! وا احمقانو! ايا تاســو يې نه وينئ چې په کراچۍ څه ليکل شــوي دي؟ ايا تاســو ړانده ياست؟ )) بنجامين د ځناورو چاپېره پورتهپورته دانګل، په خپلو وړوکو سومانو يې ځمکه کيندله او چيغې يې وهلې.

د بنجامين د چيغو په اورېدو ټول ځناور چوپ ودرېدل، موريل راوړاندې شــوه، هغې لا د ليک لوســت نه و شــروع کړی چې بنجامين يوه خو پورې وهله او په خپله يې په کراچۍ ليکل شوي ټکي ((سايمند– د اسونو قصاب– د پوستکو، هډوکو او غوښو تجار– ويلنګډن)) په جګ اواز ولوست.))

((ايا تاســو د دې ليک په مانا پوهېږئ؟ مانا يې بالکل واضــح ده! دوی زموږ څخه بوکسر قصابخانې ته وړي!)) بنجامين چيغه کړه.

ټولو ځناورو د ډار چيغه پورته کړه! په دې وخت کې کراچيوان اســونو ته غمچينه ورکړه. کراچۍ د غولي څخه د بيديا پر لور حرکت پيل کړ. ځناور کراچۍ پســې روان وو او ټولو په جګ اواز يغې وهلې. کلوور له ټولو ځناورو نه مخکې شــوه. د کراچۍ حرکت چټک شــو او کلوور هم ورپســې ګړندۍ شوه.

(( بوکسره! بوکسره! واه بوکسره!)) هغې ورته چیغې وهلې. داسې معلومېده لکه چې بوکسر ځناور چیغې او شور واورېد. د هغه وربوز د کراچۍ تر شاه په وړوکې کړکۍ کې څرګند شو.

((بوکسره! واه بوکسره! راووځه! چټک راووځه! دوی تا حلالولو ته وړي!)) کلوور او نورو ځناورو ورته په یوه اواز غږ وکړ. کراچۍ نوره هم چټکه شوه او ورو ورو د ځناورو او کراچۍ ترمنځ واټن زیاتېده، څو شېبې وروسته د بوکسر مخ په کړکۍ کې پناه شو او د مخ د پناه کېدو سره جوخت د کراچۍ دننه د لغتو درب پیل شو. هغه کوښښ کاوه چې په لغتو کراچۍ ماته کړي او بیدیا ته راووځي. یو وخت داسې هم و چې بوکسر په څو لغتو دغه کراچۍ لکه د ګوګړ قوتۍ غوندې خیچ پیچ کړې وای، خو افسوس چې اوس بوکسر ته د ځوانۍ قوت نه و پاتې. څو شېبې وروسته د لغتو اواز ورو ورو په کرار شو او بیا وا نهورېدل شو.

((ملګرو! واه ملګرو! ودرېږئ، خپل ځناور ورور مرګ ته مه وړئ!) مایوسه او نامیده ځناورو د کراچۍ اسونو ته عذر زاري شروع کړه. اما دغه احمق، وحشي او جاهل اسونو د دوی په عذر او زارۍ او یا په دې چې څه پېښه شوې ده، هېڅ پوه نه شول. اسونو غوږونه لک ونیول او لاپسې چټک شول. یو ځناور فکر وکړ چې دفارم لویه دروازه بنده کړي. دغه ځناور په منډه دروازې ته ولاړ او تر څو چې هغه دروازې ته رسېده کراچۍ د لویې دروازې نه بیدیا پر لوی سړک روانه وه. تر دې وروسته بوکسر هېڅ ونه لیدل شو.

درې ورځې وروسته سکیولر راغی، د هغه د تنګو سترګو نه اوښکې روانې وې او په ژړغوني اواز یې ځناورو ته وویل:

((ملګرو! په ډېره خواشــــینۍ اعلان کوم ې زمونږ وفادار او کارګر ملګری بوکسر د ویلنګډن په روغتون کې مړ شو. د روغتون نامتو تجربه‌کار جراح د ملګري بوکسـر په تداوۍ کې هر ډول کوښــښــونه وکړل، لاکن بریالی نه شـو. زه په خپله د بوکسـر تر څنګ حاضـر وم. د ملګري بوکسـر ځنکدن زما لپاره یوه داســـې زړه دردوونکې خاطره ده چې ما په خپل ژوند دغه شـــان زړه دردوونکې خاطره هیڅ نه درلوده!)) د دې جملې له ویلو ســره ســکیولر په سـلګو لاس پورې کړ. اواز یې ډډ شـو، په مخ یې اوښـکو لیکې جوړې کړې. هغه یوه شـېبه غلی ودرېد، مخکې ښـي پښـه یې راپورته کړه او د مخ اوښـکې یې پاکې کړې. تر دې وروسته خپلې وینا ته داسې دوام ورکړ:

(( ملګرو! لکـه چې مخکې مې درتـه وویـل زه تر پـایـه د ملګري بوکســـر تر څنګ حاضـــر وم. ناروغتیا دغه قوي پهلوان دومره ضـــعیف کړی و، چې خبرې یې هم نه شـوې کولای. هغه راته په غوږ کې ډېر په ضـعیف اواز وویل: )) زمـا یواځینی خفګـان دا دی چې د ژرنـدې د جوړېدو نـه مخکې مرم! ملګرو! مخ پر وړاندې ((انقلاب)) په خاطر! ژوندی دې وي د ځناورو فارم! ژوندی دې وي ستر لارښـود ملګری ناپولن، ستر لارښـود ملګری ناپولن تل رښــــتیا وایي.)) دا دي د ملګري بوکســـــر وروســـتني الفاظ چې ما په خپلو غوږونو د هغه له خولې واورېدل.))

د ویان په دې برخه کې د سـکیولر وضـعې ناڅاپه تغې روموند هغه یوه شـېبه غلی ودرېد او مخکې له دې چې خبرو ته دوام ورکړي، هغه په تنګو ســترګو په ولاړ ځناورو باندې د شک ډک نظر وځغلاوه. د عادت سره سم یې خپله لکۍ ژر ژر تاووله راتاووله او یوه خوا او بله خوا یې په ټوپونو شروع وکړه او په قهرجنه لهجه یې ځناور داسې مخاطب کړل:

(( زه د بوکسر د ورلو په وخت کې د یو احمقانه ناوړه ګونګسي څخه هم خبر شوم. ځینو بې عقله څناورو چې په کراچۍ د اسونو قصاب...)) لیک ولوست دوی فوراً د دغه لیک څخه دا نتیجه واخیستله چې ګوندې بوکسر قصابخانې ته لیږل کیږي. ما تراوسه دا باور نه درلود چې په دې فارم کې داسې احق څناور هم وجود لري! دغه بې عقله څناورو تر اوسه زموږ زړه سواندی او محبوب ستر لارښود جمهور رییس ملګری ناپولن نه دی پیژندلای.))

((ماته د بوکسر د ناروغتیا او مړینې په باره کې هر څه په تفصیل معلوم دي. د هغه په علاج زموږ ستر لارښود جمهور رییس ملګري ناپولن دومره پیسې لګولي دي چې تاسو یې تصور هم نه شئ کولای. که بیطار به د بوکسر د علاج لپاره هر څومره قیمتي نسخه ولیکله، نو زموږ زړه سواندي او محبوب لارښود به امر کاوه چې پیسو ته مه ګورئ او ژر دوا اخلئ. پر دې سربیره به یې تل په بیطار دا ټینګار کاوه چې د بوکسر په علاج باندې خپله ټوله پوهه او انرژي پکار واچاوه.))

(( دا احمقانو شک له دې پیدا شوی دی چې په کراچۍ باندې ((د اسونو قصاب...)) لیکل شوي و، دا یوه ساده موضع ده، ماته پوره معلومه ده چې دغه کراچۍ لومړی د یو قصاب ملکیت و او څو ورځې مخکې دغه قصاب خپله کراچۍ په بیطار خرڅه کړه. د روغتون بیطار تراوسه د کراچۍ څخه دغه پخوانی لیک نه دی پاک کړی او یوازې د بیطار د سهوې څخه دغه احمقانه شکوک پیدا شوي دي.))

د سکیولر د وینا په اوریدو ټول څناور قانع شول او د هغوی ټول شکوک له منځه ولاړل. اوس دوی ته د پخوا غوندې د ملګري په مړینه دومره افسوس

او خواشـيني نه وه. اوس ټولو ځناورو فکرکاوه چې خوګانو د بوکسـر علاج ته پوره توجه ورکړې ده او د دوی ملګری خوشاله مړ دی.

د راتلونکې يکشـنبې د سـهار غونډې ته ناپولن په خپله راغی او د بوکســر ستايني د لنډې وينا په پای کې وويل:

((دا ممکنه نه وه چې د ملګري بوکســر مړی راوړو او دلته په فارم کې يې خاورو ته وســپارو. ما خوګانو ته امر کړی دی چې د فارم د ګلونو نه دې د ګلونو يوه لويه ګېډۍ جوړه کړي او زما له خوا دې د بوکســر پر قبر کېږدي. خوګانو ته مې دا هم امر کړی دی چې څو ورځې وروسته دې د بوکسر په ياد يوه لويه مېلمستيا ترتيب کړي. زه خپله وينا د بوکسـر د خوښې په دې دوو وجيزو چې (( زه به لا پسـې سـخت کار کوم.)) او ((سـتر لارښـود ملګری ناپولن تل رښـــتيا وايي.)) پای ته رسـوم او زه پوره باور لرم چې د فارم ټول ځناور به دغه دوه وجيزې خپل شـــعار وګرځوي او ترپايه به په دې وجيزو ټينګ عمل وکړي.))

د مېلمستيا په ټاکلې ورځ د ويلنګډن يو دوکاندار د لرګيو يو لوی صندوق په کراچۍ کې راوړ او د فارم په مېنه کې يې خوګانو ته ورکړ. په دغه شـــپه تر دولس بجو د خوګانو د اوسېدو د مېنې څخه په جګ اواز سندرې غال مغال او د شـرابو د ګيلاسـونو د جنګېدو شـرنګار اورېدل کېده. د دې شپې په سبا تر غرمې پورې يو خوګ په نظر رانغی. د غرمې نه مخکې په ټولو ځناورو کې داګونګســی خپور شـــو چې د يو نامعلوم ځای څخه خوګانو پيســې لاس ته راوړې دي او غوارې چې په دغه پيسـو د وسـکي شـرابو يو بل لوی صـندوق واخلي.

# لسم څپرکی

کلونه تېر شــول، موســمونه راغلل او لاړل. په دې موده کې د فارم لړعمره څناور ټول مړه شــول! د کلوور، بنجامین، موسـز او یو شــمېر خوګانو پرته د فارم نورو څناورو ته ((د انقلاب)) ترمخه پخوانی وخت هېڅ نه و په یاد.

موریل، بلوبل، ژیســـي او پنچر مړه وو. جونز د دې ســـیمې څخه یوې بلې ســیمې ته ولاړ او هلته یې په شــرابخانه کې ســکته وکړه. ســنوبال او بوکسـر تراوســـه یوازې هغوی څناورو ته چې دوی یې پېژندل ورته په یاد وو. نورو ټولو څناورو دوی نه پېژندل. اوس کلوور زړه وه. د پښــو دبندونو په درد اخته وه او ســترګو به یې تل چخې نیولې وې. تراوســـه یو څناور تقاعد نه و کړی. د تقاعد د عمر څخه د کلوور دوه نور کلونه هم تېر شـــوي وو. هغه مخکني تاوده بحثونه چې دمالځړ یوه څنډه د تقاعد شـــویو څناورو د مالځړ په حیث پرېښودل کېږي اوس بېخي نه اورېدل کېده. اوس ناپولن څلورویشت کلن د پوخ عمر خوګ و. سکیولر دومره څورب شوی و چې په تنګو سترګو یې په ډېر مشکل شیان لیدل. په زوړ بنجامین کې هېڅ بدلون نه و راغلی، خو یوازې د وربوز څینې ویښته یې سپین معلومېدل. د بوکسـر د مړینې راهیسې هغه تل خفه او غلی ګرځېده.

اوس د فارم د مخلوق شمېر زیات و. اما لکه څنګه چې په مخکنیو کلونو کې توقع کېده هومره نه وو زیات شوي. نویو زېږېدلو څناورو ته اوس ((انقلاب)) په میراث پاتې محض یوه افسانه او عنعنه وه، څینې داسې څناور هم اخیستل شــوي وو چې فارم ته د راتګ ترمخه ((د څناورو انقلاب)) د نوم ذکر قدرې هم نه اورېدلی. اوس فارم د کلوور برســېره نور درې اســونه درلودل. درې واړه د فارم مخلص، تکړه او کاریګر څناور وو. دوی ډېر ســاده اما رښــتیني

ملګري ګڼل کېدل. ترپايه په درې واړو کې دا استعداد پيدا نه شو چې د ((بي)) نه مخکې نور ټکي دې زده کړي. خوګانو چې به ورته ((د انقلاب)) او ((د ځناورتوب)) د اصولو په باره کې هر څه ويل، دوی به په پټو سترګو منل. دوی د کلوور په خبرو پوره باور کاوه او د اولاد غوندې يې د کلوور درناوی کاوه. ايا دوی د کلوور په خبرو پوهېدل او که نه؟ دا ترپايه څرګنده نه شوه.

((مستر پلنګيټن څخه دوه پټي په نغدو پيسو واخيستل شول او د فارم برخه شوه. اوس فارم په منظم ډول پرمختګ کړی و او ژرنده هم په برياليتوب سرته ورسېدله. فارم د زراعتي چارو د انکشاف لپاره د فصل د رېبلو او د دانو د پاکولو ماشين واخيست. د وښو لوی ګودام او نورې ډول ډول ودانۍ جوړې شوې. ويمپر د سورلۍ بګۍ واخيسته. ترپايه ژرندې برق توليد نه کړ، اما فارم په ژرنده باندې د وړوکولو له لارې ډېرې پيسې وګټلې. کله چې ژرنده سرته ورسېدله، ځناورو د خوګانو د نګرانۍ د لاندې يوې بلې ژرندې په جوړېدو بوخت شول. خوګانو به سترو ستومانه ځناورو ته ويل: دا ژرنده ژر سرته ورسوئ، ستر لارښود، جمهور رييس، ملګري ناپولن تصميم نيولی دی، چې په نوې ژرنده کې د برق د توليد ډاينمو نصب کړي.

دويمه ژرنده هم جوړه شوه. اما لکه څنګه چې سنوبال د ژرندې د ډاينمو د ګټورتوب په باره کې ځناورو ته تشريح ورکړې وه او ځناورو د ډاينمو د نصب کېدو وروسته په غوجلو کې د برق د رڼا، د تودو او سړو اوبو او د اوونۍ د درې ورځو د کار خوبونه ليدل اوس په دغه شيانو هېڅ خبرې نه کېدې. برعکس ناپولن دغه شان مفکوره ((د ځناورتوب)) د روحيې پر ضد عمل باله. ناپولن به ويل: (( واقعي خوشالتيا د پرله پسې سخت کار او د اقتصادي سمپا سره ارتباط لري.))

په فارم‌کې د خوراکي شـــیانو پرېماني وه. دغه پرېماني یوازې د خوګانو او سپیو قسمت و، شتمن فارم نورو ځناورو ته هېڅ‌کته و نه رسوله، بلکې ترپایه د دوی په قسمت‌کې د سخت‌کار او ولږې پرته بل هېڅ شی و نه لیدل شول. په فارم‌کې ډېرو خوګانو او ســپیو ژوند کاوه، دوی هېڅ تولیدي کارونه نه کول. د خوګانو کار د فارم د ځناورو نګراني او د ســـپیو وظیفه د ځناورو ډارول و.

یو ځناور هم نه و لیدلي چې دوی دې په فارم‌کې خوراکي شـــیان تولیدکړي وي او یا دې د ژرندو او د فارم د نورو ودانیو په‌کارکې عملي برخه اخیستې وي. دوی یوازې د نورو ځناورو د‌کار او زیار په برکت د تولید شـــوي خوراکي شـــیانو د خوړلو لپاره ډېره ښـــه اشـــتها درلوده او د فارم ټولې ښـــې ودانۍ یوازې د دوی د ساعت تېرۍ او د استراحت مرکزونه وو.

له بلې خوا ســـکیولر د خوګانو له خوا د فارم د نګرانۍ او تنظیم په صـفت نه ستړی‌کېده. د مثال په تګه ده به نورو ځناورو ته ویل: ((که تاسو تولیدکوئ، نو موږ خوګان د فارم د نګرانۍ او تنظیم لپاره دومره مهم‌کارونه‌کوو چې تاســو ســاده او ناپوه ځناور ددغه‌کارونو په اهمیت نه پوهېږئ. تاســو د فارم ((جسمي‌کارګران)) یاست او موږ ((ذهني‌کارګران)) موږ ستاسو په تناسب ډېرکار او ډېره انرژي خرڅوو. د ټولو خوګانو په نمایندګۍ زه خپل‌کار د مثال په توګه وړاندې‌کوم. تاســو یې په خپله وینئ چې زما وظیفه او مسولیت څومره درونده دی. زه هره ورځ راپورونه لیکم. د غونډو یادښـــتونه ثبتوم. وړانـدیزونـه وړادې‌کوم. ارقـام راټولوم او بیـا دغـه ټول شـــیـان په خپلو مخصـوصـو دوسیو‌کې ږدم. اوس تاسـو فکر وکړئ چې دا څومره درانده او مهم‌کارونه دي او داکارونه د فارم د هوســا ژوند لپاره څومره زیات اهمیت لري!))

نورو ځناورو ته د سکیولرکار ډېر ښه معلوم و. دوی په خپلو سترګو لیده چې هغه هره ورځ په سپینو کاغذونو څه لیکي او کله چې سپین کاغذونه تور کړي، بیا دغه کاغذونه پټ اور ته اچوي.

اوس ځناور په دې واقعیت ډېر ښه پوهېدل چې دوی تل وږي وو، په غوجلو کې په بوسو ویده کېدل، د ډنډ چټلې اوبه یې څښلې، په ژمي کې د یخنۍ او په دوبي کې د مچانو له لاسه سخت په تکلیف وو. کله به د فارم زړو ځناورو په خپلو حافظو زور اچاوه چې دا واقعیت ځانونو ته معلوم کړي، چې ایا (( د انقلاب)) د لومړنیو ورځو په تناسب د دوی ژوند ښه شوی او که لاپسې خراب شوی دی؟ حافظو ورسره هېڅ کومک نه کاوه. د ډېرو فکرونو باوجود د دوی سره یو داسې اساسي معیار وجود نه درلود چې د دغه معیار له مخې د پخواني او اوسني ژوند ترمنځ مقایسه وکړلای شي اوس یوازې د سکیولر د ارقامو لستونه د دوی معیار و او کله چې به سکیولر لستونه لوستل نو د ارقامو په زور به ده ثابتوله چې د جونز تر شړلو راهیسې د فارم په ټولو شیانو کې له حده زیات ډېروالی راغلی دی او د فارم ټول شیان له حده زیات ښه شوي دي.

د نورو ځناورو لپاره دا موضوع د حل وړ نه وه، د دې علت دا و چې د فارم ټول ځناور په سختو کارونو مصروف وو او په دغه شان مسایلو باندې دوی د فکر کولو لپاره وخت نه درلود، یوازې زوړ بنجامین به کله کله نورو ځناورو ته پټ ویل: په دې فارم کې ما د ټولو ځناورو نه ډېر ژوند تېر کړی دی.ما د خپل اوږد ژوند په دوران کې ډېرې تودې سړې لیدلي دي. زه د هر څه تجربه لرم. ماته د ژوند ټولې پېښې ښې یادې دي. زه په هر څه بوهېږم. زه ورته د ژوند د تجربې څخه وایم چې د فارم ژوند تر دې نه ښه کېږي او نه خرابېږي. د دې خراب ژوند نه به نور څه خراب شي. تاسو دا واقعیت ومنئ

چې د دې فارم د څناورو په ژوندکې لوړه، مشکلات،کار بیګار او نا امیدي نه بدلېدونکی قانون دی.))

د ټولو مشکلاتو باوجود څناورو امید او حوصله له لاسه ور نه کړه، زړو څناورو یوازې د تېرو خاطرو په یاد چې دوی لومړني څناور وو چې د انسان پر ضد یې ((انقلاب)) وکړ، په ټوله سیمه کې یې د لومړي ځل لپاره ((د څناورو)) فارم تاسیس کړ. ټول فارم د دوی په ملکیت کې راغی، د خپل فارم چارې په خپله چلوي او ((د خپل ازاد او مستقل فارم)) غړي دي افتخار کاوه. همدا شان ((د انقلاب)) نه وروسته زېږېدلو ځوانو څناورو او فارم ته نویو راغلو څناورو خپل فارم یوه معجزه ګڼله. کله چې به دوی د ټوپک ډزې واورېدې او د فارم د بیرغ رپا به یې ولیدله، نو د دوی زړونو به د ډېر غرور او افتخار څخه هوا وکړه. دوی به د مشرانو د قهرمانی، د جونز د شړلو اوه احکامو او د د هغو لویو جګړو په باره کې چې انسانانو ته یې پرله پسې ماتې ورکړې، خوندور بحثونه کول. دوی په دې زوړ خوب یا د زوړ میجر په دې وړاندوینې چې د ځمکې په سر د اوسېدونکي ټول انسانان حتماً له منځه تلونکي دي او تر دې وروسته ((د څناورو جمهوریت)) حتماً راتلونکی دی، پخه عقیده درلوده. تلقین شویو څناورو به یو بل ته ویل:

(( هغه ورځ حتماً راتلونکې ده چې د څناورو د ((جمهوریت)) خوب حتماً عملي جامه اغوندي! هېڅ قدرت د دې ((جمهوریت)) مخه نه شي نیولای. احتمال لري چې ((دغه رښتینی او واقعي جمهوریت)) ژر را نه شي. یا اوسني ژوندي څناور په خپل ژوندکې ((دغه جمهوریت)) په سترګو ونهګوري اما (( دغه راتلونکی جمهوریت)) حتماً راځي!))

تراوسه د فارم څناورو ته (( د انګلستان څناورو)) ترانه یاده وه او دوی به ډېره پټه دغه ترانه یوځای او بل ځای زمزمه کوله، لاکن د فارم یو څناور هم دا جرات نه درلود چې دغه ترانه د خوګانو او سپیو له ډاره په جګ اواز ووايي. بېچاره څناور د ژوند په ډېرو مشکلاوکې ښکېل شوي وو. د دوی د ژوند ډېر امیدونه نیمګړي وو، خو د پرله پسې تلقین په وجه دوی ته دا شعور ورکړل شوی و، چې د فارم څناور د نورو څناورو غوندې نه دي او د نورو په تناسب دوی خپل ځانګړی هویت او ماهیت لري. دوی به تل د پرله پسې تلقیاتو له کبله ځانونو ته داسې قناعت ورکاوه:

((که موږ په خپل فارم کې وږې شپې ورځې تېروو، نو اوس دغه ولږه په ټولو څناوروکې یو شان ده. پخوا خو به موږ یوازې د مستبد انسان خېټه مړوله او په خپله به وږي وو. اوس موږ دغه ټول ګران کارونه د ځان لپاره کوو. زموږ په فارم کې یو څناور هم په دوو پښو نه ګرځي. یو څناور ته ((بادار)) نه وايي. بلکې اوس ټول څناور مساوي دي.))

د دوبي په پیل کې یوه ورځ سکیولر د فارم ټولې مېږې د فارم په لرې څنډه کې پروت د بوټو ځنګل ته بوتلې. دلته مېږو ټوله ورځ د سکیولر د نګرانۍ له لاندې په څر تېره کړه. په ماښام کې سکیولر د فارم مېنې ته راغی او مېږې هلته پاتې شوې. تر یوې اوونۍ څناورو دغه مېږې په سترګو ونه لیدلې. که یو څنور به د سکیولر څخه د مېږو په باره کې پوښتنه وکړه، نوهغه به ورته فوراً دا ځواب ورکاوه چې زه مېږو ته یوه نوې ترانه ورزده کوم او د ترانې د زده کړې لپاره هغوی ته د یو ځانله ځای ضرورت دی.

په یو ښکلي ماښام کې څناورو دکار څخه د فارم د ودانیو پر لور راغلل چې په دې وخت کې د یوې اوونۍ وروسته مېږې هم راغلې. په دې وخت کې د

**یو ترهېدلي اس د شــنېدو اواز د فارم د مېنې له غولي څخه واورېدل شــو. د دې اواز په اورېدو ټول څناور تر یوې شــېبې په لاره کې ودرېدل. دا د کلوور اواز و، هغه بیا وشنېدله، ټول څناور په یو تراټ غولي ته رانوتل او هغه ننداره یې په خپله وکړه څه چې هغې مخکې لیدلي و.**

**یو خوګ په دوو پښــو ولاړ په غولي کې روان و. دغه خوګ ســکیولر و. دی اوس ډېر څورب شــوی و او ډېر په ســختۍ په دوو پښـــو په لار تللو. د څوربتوب له کبله ورته د وجود موازنه ســاتل ګران و، خو ســره له دې هم د غولي د یوې څنډې نه بلې څنډې ته یې ورو ورو ځان ورســاوه. یوه شــېبه وروسته د فارم د مېنې له دروازې څخه په دوو پښو روان د خوګانو اوږد کتار راووت. ځینې خوګان د ځینو په تناسب ښــه مزل کاوه. یو یا دوه خوګان ډېر شــواړ او نامنظم روان وو. داســې ښکارېدله لکه چې دوی د تګ لپاره امسـا ته اړتیا درلوده. ټول خوګان پــه پوره بریالیتوب د غولي چاپېره وګرځېدل راوګرځېدل. په پای کې د سپیو غړمبېدل او د تور چرګ اذان تر غوږ شو. په دې وخت کې ناپولن پــه ډېره لویه دبدبه بېخي پــه دوو پښـــو نېغ ولاړ لـه دروازې څخه راووت. د مخکنۍ ښـــي پښـــې په پنجه کې غمچینه نیولې وه، یوه او بلـه خوا یې پـه ډېرغرور کتل او دده محـافظ ســـپیو تربنـه چاپېره د خوشالتیا ټوپونه وهل.**

**حیران، ډار شـــویو او یو بـل تـه جوخت ولاړ څناورو چوپ چاپ د غولي چاپېره د خوګانو د کتار مارش ننداره کوله. څناورو ته د خوګانو په دوو پښــو تګ دومره لویه صدمه ورسوله، لکه چې ځمکه وربانديې په په بل مخ اوښتي وي. او یا اســمان ددوی په ســرونو راپرېوتی وي. ســره له دې چې د اوږدو کلونو په دوران کې څناور په دې تلقین شـــویو چې هېڅکله به شـــکایت نه کوي، په هېڅشي به تنقید نه کوي او د سپیو څخه هم ډېر زیات ډارېدل، خو**

بیا هم دوی د خوګانو په دوو پښــو تګ باندې احتجاج شــروع کړ. دوی د احتجاج اواز پورته کاوه چې ســکیولر مېږو ته اشــاره وکړه او د دې اشــارې ســره ســم دلاســه ټولو مېږو یوځای په ډېر اوچت اواز ((څلور بولي ښــه دي، دوه بولي لا ښــه دي، څلور بولي ښــه دي، دوه بولي لا ښــه دي.)) رمباړې شــــروع کړې. د دوی رمباړو پوره پنځه دقیقې دوام وکړ او کله چې د دوی رمباړې غلې شــوې په دې دوران کې خوګان د فارم مېنې ته بېرته ننوتل. دا ځل هم څناورو د خوګانو پر ضد احتجاج موقع له لاسه ورکړه.

یو څناور د زوړ بنجامین په څټ پوزه وسولوله. ده مخ راوګرځاوه ګوري چې کلوور د هغه تر څنګ ولاړه ده. هغې چوپ چاپ د بنجامین د څټ ویښــــته راکش کړل او په کرار یې د لوی ګودام په طرف بوته. د دې ګودام په دېوال (( اوه احکام)) کښــل شــوي وو. دوی دلته درې دقیقې ودرېدل او په قیر دېوال لیکل شویو سپینو ټکو ته یې په ځیر ځیر کتل.

((بنجامینه! زما د سترګو نظر ډېر ضعیف شوی دی، په ځوانۍ کې هم ما دغه لیک نه شو لوستلای، ماته خو داسې ښکاري لکه چې د دېوال په شکل او لیک کې ډېر زیات بدلون راغلی دی. ایا دا هم هغه ((اوه احکام)) دي، کوم چې د ((بغاوت)) نه وروسته سم د لاسه ولیکل شول؟)) کلوور وویل:

دا لومړی ځل دی چې بنجامین د خپل ژوند اصــــول ماتوي او کلوور ته په دېوال لیک لولي. اوس په ټول دېوال باندې د ((یو حکم)) پرته بل هېڅ شــی نه و، دغه یو حکم دا و:

((ټول څناور مســاوي دي، خو ځینې څناور د نورو څناورو نه ډېر مســاوي دي.))

تر دې وروسته تلقين شويو څناورو ته هيڅ شی د تعجب او حيرانتيا ور نه ښکاره کېده.

دوی د دغې شپې په سبا په خپلو سترګو وليدل چې د فارم نګران خوګان په دوو پښو ولاړ دي او د ښي پښې په پنجوکې يې غمچينې نيولې دي، دوی هيڅ تعجب ونه کړ!

څناورو ته معلومه شوه چې خوګانو يوازې د خپل ځان لپاره بې سيم اخيستی دی او يو ټليفون يې نصب کړی دی او د فارم ټولو خوګانو په مجلو او ورځپاڼو کې ګډون هم کړی دی! په دې هم دوی حيرانتيا ونه ښودله!

دوی په خپلو سترګو وليدل چې ناپولن پايپ په خوله د فارم دمېنې په باغ کې چکر وهي! دوی په خپلو سترګو دا هم وليدل چې خوګانو د مستر جونز د الماری څخه جامې راوويستلې او ټولو دغه جامې واغوستلې، دوی ورته کتل چې ناپولن د جونز تور بالاپوش واغوست او د هغه د څرمن پتاوې يې وتړلې! دوی دا هم وليدل چې د ناپولن معشوقې او ګرانې خوګې د مېرمن جونز ورښمينې ښکلې جامې اغوستې دي او د خپل عاشق سره لاس په لاس چکر وهي! په دې هم دوی هيڅ تعقب ونه کړ.

يوه اوونی وروسته په ماښام کې يو شمېر بګۍ فارم ته راغلې. ناپولن خواوشا د ګاونډيو زميندارو يوې ډلې ته د فارم د معاينې بلنه ورکړې وه. راغلې ډله په ټول فارم کې وګرځېده، خوګانو ورته د فارم ټول شيان وښودل او دوی له ډېرې مودې وروسته د فارم دننه ټول شيان په خپلو سترګو وليدل. دوی د فارم د هرش ي او مخصوصاً د بادي ژرندې له حده زياته ستاينه وکړه. په دې شپه څناورو د سپوږمۍ په رڼاکې د تيپرو په پټيوکې للون کاوه. دوی په خپل کار سخت بوخت وو او ترپايه يې د ځمکې نه سرونه راپورته نه کړل. د

دې په علت هېڅوک پوه نه شول چې څناور د خوګانو څخه وډار شول او که د راغلو انسانانو څخه.

راغلي مېلمانه د فارم مېنې ته راغلل. کله چې څناورو د مېنې تر څنګ تېرېدل د خندا او سندرو اوازونه د دوی تر غوږ شول. دوی د باغ په لویه دروازه کې غلي ودرېدل. یو څناور هم مېنې ته د ننوتلو جرات نه کاوه. کلوور رامخکې شوه، نورو څناورو هم جرات پیداکړ. دوی چوپ چاپ او د پښو په څوکو دمېنې کړکیو ته راغلل. ګوري چې د مېنې په سالون کې یو لوی ګرد مېز پروت دی او دا لومړی ځل دی چې شپږ انسانان او شپږ نامتو خوګان په مساوي ډول په څوکیو ارام ناست دي او ناپولن د مېز سر ته ځای نیولی دی. د انسانانو او خوګانو ترمنځ قطعه بازي روانه ده او داره ډلې د قطعه بازۍ څخه ډېر خوند اخلي.
دوی دش رابو د څښلو او د یو بل په سلامتۍ د جامونو د پورته کولو په خاطر قطعه بازي پرېښوده. د شرابو ډکه صراحي لاس په لاس ګرځېده او د مېز په سر پراته لوی جامونه ډکېدل او تشېدل. بیدیا ولاړ څناورو د کړکیو څخه دننه په ځیر ځیر کتل او د دوی په مخونو د تعجب او حیرانتیا نښې اوچتې معلومېدلې. له بلې خوا دننه ناست مست خوګان او انسانان دومره نشه وو چې دوی تر پایه په بیدیا ولاړ یو څناور هم ونه لیده. د شرابو ډک لوی ګیلاس په لاس د فوکسووډ فارم څښتن له څوکۍ راپورته شو او ویې ویل:
(( زه د درنو حاضرینو څخه هیله کوم چې د حاضر مجلس په سر سلامتۍ جامونه پورته کړي او دا هم خپل فرض ګڼم چې د درنو حاضرینو په اجازه یو څو ټکي عرض کړم.))
((ښاغلو خوګانو! دا زما او د راغلو مېلمنو لپاره د ډېرې خوشالۍ ځای دی چې د نن نه زموږ د انسانانو او خوګانو ترمنځ د بې اعتمادۍ د غلط فهمۍ اوږده موده پای ته ورسېدله. زه درته رښتیا وایم ما او راغلو نورو مېلمنو د

خوګانو پر ضد د مخالفت او دوښمنۍ هېڅ ډول احساس نه درلود، لاکن د دې فارم ځینو ګاونډیو انسانانو د دې فارم د درنو ځناورو ښه سلوک ته د اشتباه په نظر کتل. په تېره موده کې ځینې بدمرغه پېښې شوې دي چې د دغو پېښو په نتیجه کې انسانانو د ځناورو په برخه کې ځینې غلطې مفکورې خپلې کړې. موږ انسانانو دا احساس کاوه چې دا فارم چې ستاسو د ټولو ځناورو ملکیت دی او ښاغلي خوګان د دې فارم چارې چلوي، شاید چې په ګاونډیو فارمونو کې ګډوډې پیداکړي او دا ګډوډي د فارمونو په ځناورو ناوړه غیر طبیعي اغېزه وکړي. په دې برخه کې انسانانو پوره تحقیق ونه کړ او غیر له کوم ثبوت څخه ډېرو زمیندارو دا فکر کاوه چې ((د ځناورو فارم)) کې هر ډول بد اخلاقي او بې ډسپلیني روانه ده او د ګاونډیو فارمونو خاوندانو د خپلو فارمونو په ځناورو او نوکر انسانانو باندې د دې بداخلاقۍ او بې ډسپلینۍ د ناوړه اغېزې څخه ډېره وېره ښودله. دوی واقعاً وارخطا وو. اما اوس دغه ټول شکونه بېخي له منځه ولاړل.))

((درنو خوګانو! نن ما او زما ملګرو ستاسو ((د ځناورو فارم)) لوېشت لوېشت په خپلو سترګو ولید. موږ ستاسو په فارم کې بېخي نوي معاصر میتودونه، مطلق ډسپلین او هر اړخیزه ښه تنظیم ولید او زه پوره باور لرم چې موږ انسانان به ستاسو د مثالي فارم څخه ډېر شیان تقلیدکړو. د مثال په توګه ستاسو په فارم کې ((کښته طبقه)) ځناور له حده زیات کارکوي او د دې سیمې د نورو فارمونو د ځناورو په تناسب ډېره لږه ځېره اخلي او ډېر لږ خواړه خوري. برعکس زموږ د فارمونو ځناور ډېر لږ کارکوي او ډېره ځېره اخلي او وله ورځ چتې په خوړلو تېروي، دغه شان نن ما او زما ملګرو ستاسو د فارم نور ډېر ښه خصوصیات ولید او د نن نه موږ اراده لرو چې دغه ډول ښه شیان ډېر ژر په خپلو فارمونو کې رواج کړو.))

((ګرانو خوګانو! زه یو ځل بیا په دې واقعیت ټینګار کوم چې ((د ځناورو فارم)) او د ګاونډیو فارمونو ترمنځ د دوستۍ او مینې احساسات په اینده کې

هم باید ژوندي وساتو. زما په عقیده د خوګانو او انسانانو د ګټو ترمنځ تضاد او اختلاف وجود نه درلود او نه په اینده کې دغه شـــان بېځایه اختلاف ضـــرورت لري. زه پوره باور لرم چې د خوګانو او د ګاونډیو فارمونو د خاوندانو هلې ځلې او مشــکلات یو شــان دي. د مثال په توګه ایا د دې فارم او د نورو فارمونو د کارکشاله یو شان نه ده؟))

د وینا په دې برخه کې داســې څرګنده شــوه لکه چې مســتر ویلنیګټن په ډېر احتیاط د مخکې نه جوړې څه ټوکې کول غواړي، اما په دې وخت کې ډېر نشه و. څو ځله د هغه ژبه بنده رابنده شوه، تر یوې شېبې وروسته هغه خپله ټوکه داسې پیل کړه:

((ګرانو خوګانو! ما په خپلو سترګو ولید چې ستاسو په فارم کې (( د کښته طبقې)) ځناور هېڅ ډول نازولتوب او امتیاز نه لري. زه تاســو درندو خوګانو ته د دې مبارکي درکوم چې تاسو ((دکښته طبقې)) په ځناورو ډېر ساعتونه کار کوئ او په مقابل کې لږه څېره ورکوئ. نو که تاسو د کښته طبقې ځناورو پر ضد دغه شان مبارزه کولای شئ، نو بیا خو موږ ته هم د خپلو فارمونو دننه د کښته طبقې د ځناورو او انسانانو پر ضد د مبارزې حق ته قایله شي.))

(( ډېرو ښاغلیو! لطفاً ودرېږئ خپل ګیلاسونه ډک کړئ او ما سره د ناپولن د صحت او ((د ځناورو فارم)) د بریالیتوب او نېکمرغۍ په شعار کې ملګرتیا وکړئ!))

د ویلنیګټن د وینا په پای کې به زوره چک چکې او د خوشــالۍ چیغې ووهل شوې. ناپولن ډېر خوشاله شو. هغه له ډېرې خوشالۍ راپورته شو. ویلنیګټن یې ډېر کلک په غېږ کې ونیو او خپل ګیلاس یې ورسره په زوره وجنګاوه. کله چې چک چکې او چیغې غلې شوې ناپولن بالکل نېغ په دوو پښو ودرېد او د غونډې نه یې د خبرو اجازه واخیســـتله. د ناپولن د ټولو ویناګانو غونډې دا وینا هم ډېره لنډه او پر ځای وه:

(( ښاغليو مېلمنو! زه او زما ملګري خوګان ډېر خوشاله يو چې نن زموږ او ستاسو ترمنځ د غلط فهمۍ دوره پای ته ورسېدله. موږ خوګان په دې خبر يو چې له ډېرې مودې راهيسې ځينو خطرناکو دښمنانو د څناورو او انسانانو ترمنځ د مخالفت او غلط فهمۍ د راپيداکولو په لاره کې ډېر کار کاوه. دې خطرناکو دښمنانو به ستاسو په فارمونوکې موږ پسې تل دا پروپاګنده کوله چې ګوندې زه او زما ملګري خوګان دا اراده لرو چې د انسانانو په فارمونو کې څناور د انسانانو پر ضد (( بغاوت)) ته ولمسوو او په دغه فارمونوکې تخريب وکړو. او ((انقلاب)) ته لار جوړه کړو. زه ورته رښتيا وايم چې د دښمنانو دغه شان پروپاګنډې هېڅ حقيقت نه لري! بلکه زموږ واقعي ارزو دا وه. ده او دوی به چې د خپلوګاونډيو انسانانو سره په سوله ژوند وکړو. د يو بل په چاروکې هېڅ ډول مداخله ونه کړو او د دې فارم او د انسانانو د فارمونو ترمنځ تجارتي روابط ډېر ټينګ وساتو. دا فارم چې زه يې د کنټرول افتخار لرم په واقعيت کې يوه ((تجارتي پروژه)) ده او دا پروژه د خوګانو د ډله ييز ليډر شپ پواسطه اداره کېږي.))

(( درنو مېلمنو! زه پخه عقيده لرم چې د نن نه د خوګانو او د ګاونډيو فارمونو د خاوندانو ترمنځ ټول پخواني شکونه بېخي له منځه ولاړل. د خوګانو ډله ييز ليډرشپ د فارم په ورځني او عادي مسلوکې بدلون راوستلای دی او زه پوره باور لرم چې دغه بدلون به د څناورو او انسانانو ترمنځ زيات اعتماد ته ډېره وده ورکړي. تراوسه د دې فارم څناورو يو بل ته د ((ملګري)) خطاب کاوه او زموږ په نظر دا يو احمقانه رواج و. زما په امر دغه رواج ختم شو. په دې فارم کې يو بل عجيبه احمقانه رواج هم و. د باغ دننه د يوې ستنې پورې د يو خوګ کوپړۍ مېخ شوې وه، د هرې يکشنبې په سهار به د فارم ټولو څناورو د دغه خوګ ترکوپړۍ مارش کاوه. د دې رواج منشا تراوسه راته معلوم نه شوه. زما په امر دغه کوپړۍ ښخه شوه او دغه رواج مې هم له منځه يوړ. تاسو د فارم په جنډه رپانده شين بيرغ په خپلو

سترګو ولیدل. مخکې په دغه بیرغ په سپین رنګ د څناورو سوم او ښکر رسم شوي وو. زما په امر دغه رسم پاک شو او تر دې وروسته به دغه بیرغ یوازې ساده شین رنګ لري او بس.))

((ګرانو مېلمنو! مستر ویلنیګټن د انسانانو او څناورو ترمنځ د ښه ګاونډیتوب په برخه کې ډېره اعلی وینا وکړه. خو زه د ده په وینا باندې یوازې یو تنقید لرم. دغه تنقید دا دی چې مستر ویلنیګټن د خپلې وینا په دوران کې څو ځله زموږ فارم ته ((د څناورو فارم)) په نوم اشاره وکړه. فکرکوم چې دی تراوسه په دې نه دی خبر چې ما د فارم نوم بدل کړی دی. یو ځل بیا ستاسو د ټولو د خبرتیا لباره اعلان کوم چې ((د څناورو فارم)) نوم له منځه تللی دی او اوس د دې فارم نوم ((مانور فارم)) دی. د ازموږ د فارم سم او اصلي نوم دی.))

(( ډېرو ښاغلیو انسانانو! خپل ګیلاسونه تر خولې ډک کړي. زما سره په دې شعار کې - بریالي او خوشاله دې وي د مانور فارم!– برخه واخلي.))

د ناپولن د وینا په پای کې څو دقیقې چک چکې، چیغې او په ښپو باندې د ځمکې دربول روان وو او د شرابو ډک لوی ګیلاسونه تر وروستني څاڅکي پورې وڅښل شول. څو ځله ګیلاسونه ډک او تش شول. خوګان او څناور دومره نشه شول چې ځینو ته یو مخ پنځه مخونه، ځینو ته یو مخ څلور مخونه او ځینو ته یو مخ درې مخونه ښکاره کېدل. باهر ولاړ څناورو دې صحنې ته په ځیر ځیر کتل. کله چې د انسانانو او خوګانو چک چکې او چیغې غلې شوې، راغلو مېلمنو او خوګانو بیا قطعه بازي شروع کړه.

بیدیا ولاړ څناور ډېر غلي باهر ته روان شول. دوی لا شل قدمه نه وو تللي چې د فارم د مېنې نه څوږ راپورته شو. د شور په اورېدو څناور ځای پر ځای ودرېدل. دوی بېرته رامنډه کړه او بیا کړکیو ته ودرېدل ګوري چې د خوګانو او انسانانو ترمنځ سختې ناندرۍ روانې دي. په زوره چیغې وهل کېږي، مېزونه ډبول کېږي، یو بل ته د شک په نظر شان شوي وو! باهر ولاړ مخلوق

**به کله خوګ او کله انســـان او کله انســـان او کله خوګ ته کتل راکتل! اوس ځناورو ته د خوګ او انسان ترمنځ فرق کول ګران ښکاره کېدل.**

# پروفیسور رسول امین

پروفیسور رسول امین پر (۱۹۳۹ م) کال د کونړ ولایت په وټه پور ولسوالۍ کې د محمد امین خان په کور کې زیږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې په افغانستان کې ترسره کړې دي. د منځنیو او لوړو زده کړو لپاره پر (۱۳۳٤ ل) کال پېښور ته ولاړ، هلته یې یو کال د انګرېزي او اردو ژبې لپاره او بیا د منځنیو زده کړو لپاره په فارورډ ښوونځي او کالج کې شامل شو. پر (۱۹٦۰ م) کال له همدې ښوونځي او کالج څخه فارغ او د لوړو زده کړو لپاره د پېښور په اسلامیه کالج کې شامل شو. پر (۱۹٦٦ م) کال یې د ماسترۍ سند ترلاسه کړ او بېرته کابل ته راستون شو. کابل ته په راستنېدو یې د پښتو ټولنې غړیتوب ترلاسه کړ او د دې تر څنګ د کابل پوهنتون په ادبیاتو او بشري علومو پوهنځي کې د اجتماعي علومو د استاد په توګه وټاکل شو.



پروفیسور امین پر (۱۳۵۸ ل) کال کې د وخت د رژیم د مخالفت له کبله زندان ته ولېږدول شو او له زندانه تر خلاصېدو وروسته پر افغانستان باندې د سرو لښکرو له راتګ سره سم بېرته پېښور ته کډه شو. پروفیسور امین له (۱۹۸۰ م) کال څخه تر (۱۹۸۵ م) کال پورې په پېښور کې د اسلامي محاذ په تنظیم او افغان اطلاعاتي مرکز کې کارکاوه او پر (۱۹۸۵ م) کال د ده او یو شمېر نورو افغانانو له خوا (د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنه) یا (وفا) رامنځته کړه او پروفیسور رسول امین د دې ټولنې د رییس په توګه وټاکل شو. وروسته

یاده ټولنه د افغانستان د مطالعاتو پر مرکز بدله شوه، چې بیا یې هم پروفیسور امین مشـــري کوله. رســـول امین د کډوالۍ پر مهال یو لړ ملي او نړیوال ســـیمینارونه جوړ کړل او د (خپلواکۍ) په نوم مجله، د (وفا) په نوم اخبار او افغان جریدې په نامه جریده چاپ او خپاره کړل، د دې ترڅنګ یې د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنې له خوا په سلګونو کتابونه هم چاپ او خپاره کړل.
پروفیسور امین د افغانستان د مسالې په اړه په ډېرو ملي او نړیوالو سیمینارونو کې ګډون کړی دی، چې د هغې په ترڅ کې د امریکا متحده ایالاتو، انګلستان، فرانســه، المان، مرکزي اسـیا، ډنمارک، هالنډ، بلجیم، سـویس، یونان، ایټالیا، ناروې، مصـــر او نورو هېوادونو ته ســـفرونه کړي دي. کله چې په روم کې افغانان د افغانسـتان د مسـالې په اړه سـره راټول شـول، نو رسـول امین یې د مخکښـــانو له ډلې څخه و، چې بیا د بن کنفرانس تر پرېکړې وروســـته په افغانستان کې لنډمهاله اداره رامنځته شوه، نو پروفیسور امین د همدې ادارې د پوهنې وزیر په توګه وټاکل شو. د پروفیسور رسول امین یو شمېر خپل او له نورو ژبو څخه ژباړل شـــوي اثار هم چاپ شـــوي دي، یوه مهمه رســـاله یې (افغانســـتان تر یو خطرناک پېچومي تېرېږي) په نوم هم چاپ شـــوې ده.
پروفیسـور رسـول امین د لنډمهالې ادارې تر شپږ میاشتني وزارت وروسته د افغانســتان د مطالعاتو مرکز د رییس په توګه خپله موســســه پر مخ وړله او له دې لارې یې د خپلو افغانانو خدمت کاوه.
پروفیسـور رسـول امین د (۲۰۰۹م) کال د اکتوبر میاشـتې پر (۳۱)مه نېټه د اســټرالیا په میلبورن ښــار کې د وریېښــې ناروغۍ له امله له دې نیمګړې دنیا څخه د تل لپاره سترګې پټې کړې. روح یې ښاد.

# د پروفیسور رسول امین کورنۍ

## (لنډه پېژندنه)

---

### مرحوم غازي محمد امین خان

### (د پروفیسور رسول امین پلار)

مرحوم غازي محمد امین خان د مرحوم نورمحمد خان زوی، چې له نن څخه (۱۱۲) کاله مخکې د کوزې پښتونخوا په باجوړ سیمه کې دې نړۍ ته سترګې پرانیستې دي. د ماشوموالي دوره یې په باجوړکې تېره کړه، وروسته له خپلې کورنۍ سره کونړ ته راغی او په وټه پور ولسوالۍ کې مېشت شو. مرحوم محمد امین خان د هغه وخت مروجه زده کړې د جومات له ملایانو څخه وکړې. مرحوم محمد امین خان په لومړیو کې له بزګرۍ سره ډېره مینه درلوده، وروسته په تجارت بوخت شو او له دې لارې یې ډېره



شتمني ترلاسه کړه. کله چې د امير امان الله خان په دوره کې په کور دننه يو لړ بغاوتونه پيل شــول، امير امان الله خان خپل نږدې دوســـت او پياوړی جنرال خان ميرزمان خان چې د مرحوم محمد امين خان ســـکه ماما و، د بغاوتونو د خاموشه کولو لپاره بېلابېلو سيمو ته ولېږه. له دې جملې څخه د منګلو جنګ ته چې په هغې کې مرحوم محمد امين خان هم حضـــور درلود. باغيان يې وځپل او فاتحانه کابل ته راستانه شول، چې په کابل کې د امير امان الله خان له تود هرکلي ســره مخ شــول او په ډېرو ډاليو يې ونازول، ورســره يې اعزازي کندک مشــری رتبه مرحوم محمد امين خان ته ورکړه او هم د غازيانو په ډله کې د غازي لقب هم ورکړ شو.

مرحوم محمد امين خان د عمر په وروستيو کې د يو لړ ناروغيو سره مخ شو او په پای کې پر (۱۳۵۱ ل) کال وفات شو. بايد ووايم په خپله مرحوم محمد امين خان کم سـواده و، خو له تعليم سـره يې ډېره مينه وه، د نوموړي د مينې له برکته د پروفيسـور رسـول امين کورنۍ په تعليميافته کورنۍ تبديله شـوه، په علم سمبال او پوه اولاد يې ټولنې ته وړاندې کړل. روح يې ښاد.

# اروابناد محمد رسول غیرت

## (د پروفیسور رسول امین ورور)

اروابنـاد محمد رسـول غیرت امین د محمد امین خان زوی او د نورمحمد لسـمی دی. نوموړی پر (۱۳۳۷ل) کال په حوت میاشـــت کې د کونړ ولایت وټه پور ولســوالۍ په شــامیدکوټ کلي د خانانو په کورنۍ کې زېږېدلی دی. اروابنــاد خپلې لومړنۍ، منځنۍ او ثـانوي زده کړې د عمرا خان په عالي لېسه کې بشپړې کړې او په اعلی درجه ترې پر (۱۳٤۹ل) کـال فـارغ شـو. د دولسـم ټولګي تر فراغت وروسـته د نظامي زده کړو لپاره کابل ته ولاړ او هلته يې نظامي زده کړې وکړې او پـه بریالیتوب يې پایته ورســـولې. پر (۱۳۶۰ل) کال کابل ته کډوال شـو او هلته مېشـت شـو، له تک سره سـم يې خپله لومړۍ دنده د کابل په چهلســـتون کې د لومړۍ حوزې د قومندان په توګه ترسره کړه.



---



محمد نوروز خان
(د پروفیسور رسول امین ورور)



ډګروال محمد ظاهر شاه
(د پروفیسور رسول امین ورور)



احمدشاه امین
(د پروفیسور رسول امین ورور)

# دوست محمد امين

## ( د پروفیسور رسول امین وراره)

دوســـت محمد امين د مرحوم محمد نوروز خان زوی او د مرحوم محمد امين خان لمسی دی، پر (۱۹٤۸م)کال د کونړ ولايت په وټه پور ولسـوالۍ کې زيږېدلی دي. نوموړي خپلې لومړنۍ زده کړې د جوزجان ولايت په فيض اباد ولســوالۍ کې ترســره کړي دي، منځنۍ زده کړې يې د کابل په ابن سينا منځني ښــوونځي کې او د دولســم ټولګي د فراغت ســند يې د کابل ښــار د کرنې له ليسې څخـه ترلاســــه کړی دی.



لوړې زده کړې يې د کـابـل پوهنتون د کرنې پوهنځي کې ترســـره کړې او لـه همدې پوهنځي يې د ليسانس سند يې ترلاسه کړی دی. په همدې برخه کې يې د ماسترۍ سند د ايران له تهران پوهنتون څخه ترلاسه کړی دی.

دوســـت محمد امين د (۱۳٤۸ل)کال را پدېخوا د کرنې وزارت په لاندې پوستونو رسمي کار کړی دی:

د ننګرهار د زراعت رياســت د ترويج د امر، د کرنې وزارت د عالي تعليماتو د امر، د کرنې او مالدارۍ د انســـتيټوت د مشـــر، د لوړ زده کړو وزارت د مســـلکي زده کړو د مســـول، د لوړو زده کړو وزارت د پلان عمومي امر په توګه دندې ترسره کړې دي.

**پر (۲۰۰۲ م) کال د اوبو لګولو وزارت د پلان د معین، پر (۲۰۰۴ م) کال د اوبو لګولو، د اوبو د زیرمو او د ژوند د چاپیریال ساتنې د وزارت مسلکی معین، پر (۲۰۰۸م) کال د چاپېریال ساتني د ملي او خپلواکې ادارې د معین، پر (م۲۰۱۲) کال د ژوند د چاپېریال ســـاتني د خپلواکې ادارې معین او د نوموړې ادارې سرپرست عمومي ریس په توګه دندې ترسره کړې دي.**

**باید ووایم دوســت محمد امین د چاپېریال ســاتنې ملي ادارې موســس او د چاپېریال ساتنې د قانون طراح هم پاتی شوی دی. د دې ترڅنګ نوموړی په اداره، کرنې او چاپېریال ساتنې کې اوږده تجربه لري.**

**دوســـت محمد امین د ژوند چاپېریال ســـاتنې په اړه یو شـــمېر نړیوالو کنفرانسونو او سیمینارونو کې چې په بېلابېلو هېوادونو لکه : المان، سینیګال، روسیه، سویس، جنوبي افریقا، سنګاپور، بوتان، سیریلنکا، ایران، هندوستان، فیلیپین او یو شمیر نورو کې جوړ شوي وو، ګډون کړی دی.**

**د دوست محمد امین چاپ شوي اثار:**

- **(د افغانستان او نړۍ د ژوند د چاپېریال ننګونې او رغونې) په پښتو ژبه.**
- **(حفاظت محیط زیست افغانستان و جهان) په دري ژبه.**
- **(د جلال اباد دکانال بیا رغونې او انکشـاف لارې چارې) په پښـتو ژبه.**
- **(د مېوه جاتو د قورې ســمبالبنـــت او د اصــلاح شــویو مېوه جاتو روزنه) په پښتو ژبه .**

ډاکتر شمیم اکبر د پروفیسور رسول امین مشره لور ده، لومړنۍ زده کړې یې په ښوونځي کې کړې دي. نوموړې خپلې منځنۍ زده کړې په علیشام لېسه کې پر (۱۹۷۶م) کال پای ته ورسولې. ډاکتر شمیم اکبر پر (۱۹۹۱م) کال د پېښور خیبر میډیکل کالج څخه د MBBS سند پای ته ورساوه، نوموړې لومړنۍ افغان میرمن په توګه وپېژندل شوه، چې د خیبر میډیکل کالج پېښور څخه یې د MBBS سند پای ته ورساوه، ډاکتر شمیم اکبر له (۱۹۹۱م) کال څخه تر (۱۹۹۳م) کال پورې په پېښور کې د افغان مېرمنو په روغتون کې د عمومي ډاکترې په توګه دنده ترسره کړې ده. پر (۱۹۹۳م) ډاکتر شمیم استرالیا ته مهاجره شوه او د افغان کورنیو مېرمنو لپاره یې د کډوالۍ همغږي کونکي په توګه کار پیل کړ. ډاکتر شمیم اکبر په پنځو ژبو تفسیر کوي: دري، پښتو، فارسي، هزارګي او اردو.



---

ډاکتر یاسمین امین چې د پروفیسور رسول امین لو ده، خپلې ثانوي زده کړې یې په پېښور کې سر ته رسولې دي تر منځنیو زده کړو وروسته یې د پېښور خیبر میډیکل کالج څخه د MBBS سند ترلاسه کړی دی، ماستري یې په استرالیا کې د ایمبریولوژي په برخه کې کړې ده او دریې کاله یې د افغانستان د روغتیا په وزارت کې د ستړې سلاکارې په توګه کار کړی دی.



---

تاتره زماني د پروفیسور رسول امین لور ده، چې په کابل ولایت کې زیږېدلې ده. ثانوي او لوړې زده کړې یې په پېښور کې پای ته رسولي او د ماسترۍ سند یې په استرالیا کې د نریوالو اړیکو په برخه کې ترلاسه کړی دی، اوس مهال د استرالیا په دولت کې کار کوي.





ایمل امین د پروفیسور رسول امین مشر زوی دی، لومړنۍ زده کړې یې د پېښور په اسلامیه کالجیټ لیسه کې او ثانوي زده کړې یې د پېښور په اسلامیه کالج کې پای ته رسولي. بیا یې پر (۱۹۸۶م) کال د پېښور د انجینرۍ او ټیکنالوژۍ له پوهنتون څخه د الکتریکل انجینرۍ سند بشپړ کړی دی. ایمل امین له (۲۰۰٤م) کال څخه تر (۲۰۰۵م) کال پورې د افغانستان د ښار جوړونې په وزارت کې د ستر سلاکار په توګه کار کړی دی.

---

اتل امین د پروفیسور امین زوی دی، چې منځنۍ زده کړې یې په پېښور کې پای ته رسولي، اتل امین د سوداګرۍ په اداره کې د لیسانس سند ترلاسه کړی، نوموړی د امنیتي خطر مدیریت کې ډیپلوم هم لري، اتل امین د ATAL واچز بنسټ ایښودونکی هم دی. په افغانستان کې یې د پروفیسور رسول امین بنسټ هم رامنځته کړی، چې له بېوزلو کورنیو سره مرسته او همکاري کوي. اتل امین په استرالیا کې یو بریالی سوداګر دی او اوس د استرالیا په میلبورن ښار کې امنیتي کمپنۍ چلوي. اتل امین له (۲۰۱۲م) کال څخه تر (۲۰۱۳م) کال پورې د افغانستان له پانګونې څخه د ملاتړ اداري (آیسا) کې د تمویل کوونکو د اړیکو د همغږي کوونکي په توګه کار کړی او له (۲۰۱۳م) کال څخه تر (۲۰۱٤م) کال پورې د افغانستان د انتخاباتو د خپلواک کمېسیون د ستر سلاکار په توګه کار کړی دی.



---



کوچی امین د پروفیسور رسول امین تر ټولو کوچنی زوی دی، لومړنۍ زده کړې یې پر (۱۹۹۳م) کال په پېښور کې پای ته رسولي، نورې زده کړې یې د پېښور په ایډوارډز کالج کې بشپړې کړې دي، چې اوسمهال په استرالیا کې د مهاجرت د استازي په توګه دنده ترسره کوي.



ډګروال نېک محمد امین

(د پروفیسور رسول امین وراره)



پیلوټ جمال آمین

(د پروفیسور رسول امین وراره)



ډګروال خوشحال امین

(د پروفیسور رسول امین وراره)



رحمت الله امین

(د پروفیسور رسول امین وراره)



(د پروفیسور رسول امین لمسی)

خیبر امین د کونړ ولایت پـه وټـه پور ولســوالۍ کې زیږېدلی دی. لومړنۍ او منځنۍ زده کړې یې په کابل کې بشـپړې کړې او بیا یې د کابل له پولیسـو اکاډمۍ څخه د لیسانس سند ترلاسه کړ. د خپل علمي افق پـه تعقیـب یې لـه امریکـایي پوهنتون څخه د ســوداګرۍ اداره کې د ماسـترۍ سـند ترلاسـه کړ. په مسلکي توګه ښــاغلی خیبر له تېرو (۲۵) کلونو راهیسې د نړیوالو بشـري سازمانونو په ځـانګړې توګـه د ملګرو ملتونو پـه دفترونو کې کار کوي.



(د پروفیسور رسول امین زوم)

فاروق زما نې د سلیمان خان زمانی زوی د لوی خـان غـازي میرزمـان خان لمسی دی. په کونړ ولایت کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې د کونړ ولایت وټه پور ښوونځي کې او منځنۍ زده کړې یې د کـابل پـه عمر شـهید لیسـه کې بشـپړې کړې دي. د لیســانس ســند یې د کابل پوهنتون لـه کرنې پوهنځي څخـه ترلاسه کړی دی.